# ملي هينداره

اول، دوهم او دريم ټوک




مؤلف

محمدګل نوري

## د چاپ ټول حقوق په خپرندویه ټولنه اړه لري



**کتاب پېژندنه :**

د کتاب نوم :: ملي هينداره (اول، دوهم او دريم ټوک)
مؤلف :: محمد گل نوري
مهتمم :: مطيع الله روهيال
خپرندوی :: علامه رشاد خپرندويه ټولنه - کندهار
کمپوز او ډيزاين :: م. روهيال
د پښتۍ طرح :: ع. افغانزی
چاپ کال :: ۱۳۸۷ ش - ۱۴۲۹ ق - ۲۰۰۸ م
شمېر :: ۱۰۰۰ ټوکه
د خپرونو لړ :: (۲۲)



**اړيکي**

m_rohyal2006@hotmail.com
mrohyal@gmail.com

**ګرځنده**

۰۰۹۳(۰) ۷۰۰۳۲۶۰۱۱

# مننه او کورودانی

د دې کتاب د چاپي لګښت له پاره د هوښيارزي مرستندويه ټولني په نوښت او ابتکار له هيواد څخه د باندې دغو هيوادوالو خپلي پېرزويني راسره شريکي کړي دي :

- ښاغلی ميراحمد صافی
- ښاغلی حاجي اشرف ترين
- ښاغلی عبدالوهاب
- او ښاغلی حاجي حبيب الله

علامه رشاد خپرندويه ټولنه د هوښيارزي مرستندويه ټولني د مسئولينو د دغه نوښت او يادو سوو درنو هيوادوالو له پېرزوينو څخه ډېرې ډېرې مننه کوي، چې د اروا ښاد استاد محمدګل نوري يو ډېر درانه اثر (ملي هينداره) له پاره يې د چاپ موقع برابره کړه، دوی هر يوه ته سوکاله او د کاميابيه ډک ژوند غواړو !

**علامه رشاد خپرندويه ټولنه**

**کندهار**

# فهرست



## لومړی ټوک



## دوهم ټوک

## دریم ټوک

# د خپرندوی یادښت

پښتو ژبه د شفاهي ادب له پلوه خورا غني ژبه ده، د دغه شفاهي ادب پراخه لمن ده، چې زیاتو څېړونکو ته یې دا موقع برابره کړې، چې د دې ژبې د یادي سوي څانګې په باب په زړه پوري څېړني وکړي. په دې برخه کې نکلونه، متلونه، لنډۍ، نارې او اصطلاحات د دغې ژبې خورا په زړه پوري نمونې دي او د دغې ژبې یوه خورا غني برخه تشکیلوي. په هره هغه ژبه کې چې د ویونکو زیاته فیصدي یې نالوستې وي، د ادب تر نورو څانګو شفاهي برخه ډېره غوړېدلې وي، دا ځکه چې د ویونکو د حافظو څخه د شفاهي ادب بېلابېلې برخې سینه پر سینه له یوه نسل څخه بل نسل ته رانقلېږي.

زموږ د ژبې په شفاهي ادب کې نکلونه او بیا د نکلونو په سر کې د ملي هینداري نوم تر بل هر اثر ډېر مشهور او د څېړونکو او ویونکو له خوا ډېر تقدیر سوی دئ. د ملي هینداري دوه لومړي ټوکونه له نن څخه تقریباً پنځه شپېته کاله مخکې خپاره سوي دي، په دغه شپېته کلن اوږده جریان کې د ملي هینداري کتاب تر بل هر کتاب زیات چاپ سوی دئ، چې د چاپ زیاتوب یې له بده مرغه د کتاب اصل ته زیان هم رسولی دئ، ځکه دغه چاپونه د پښتونخوا په بېلابېلو برخو کې تر سره سوي او هري سیمي د کتاب لهجه، اصطلاحات او نارې د خپلې لهجې تابع ګرځولي دي، چې په دې کار سره زموږ د شفاهي ادب د دغه غوره نمونې رنګ هم پیکه سوی او په ښکاره ډول د دغه ملي او نړیوال اثر په متن کې مداخله سوې.

علامه رشاد خپرندویه ټولني د دغه اثر د بیا چاپېدو له پاره ښه

# د سریزي پر ځای

پښتو ژبه د فولکلوریکو ادبیاتو له مخي د نورو خپلوانو او ورڅرمه ژبو په پر تله بډایه ده او د شفاهي ادب یوه درنه زېرمه لري. د دې بډايي ځنګ ته دغه تریخ واقعیت پروت دئ، چي شفاهي ادبیات په وروسته پاته ټولنو کي، په هغو ټولنو کي چي د لیک لوست له نعمته بې برخي وي، ډېره وده کوي. پښتانه له بده مرغه د مدنیت او ترقۍ له کاروان څخه وروسته پاته ساتل سوي دي، له سواده محروم ساتل سوي دي، له ښارو څخه لیري په ژوند کولو باندي قانع ساتل سوي دي، او تر ټولو یې بیا د خواشینۍ خبره دا ده، چي همدغه وروسته پاته والی بیا د دوی په خیر او ښېګڼو کي ور ته حساب سوی دئ. د ډېرو پښتنو ژوند له کلیو او باندو سره تړلی راغلی دئ. کلیوالي ژوند او کلیوالي مناسبات د فولکلور په ایجاد او وده کي مرستندوی واقع کېږي. ښاري مناسبات او ژوند د فولکلوریکو ادبیاتو د ودي له پاره تر زیاتي اندازې برابر محیط نه وي.

نکلونه د فولکلوریکو ادبیاتو یوه غوره برخه ده او په ټولنه کي یې د رواج عنعنه تر پښتني چاپېریال دباندي هم خپره ده. د نړۍ زیاترو اولسونو پخپل فولکلور کي ور ته ځای ورکړی دئ. نکل د ادبي آثارو د تقسیم بندۍ په وخت کي د هغو ادبیاتو په لړ کي راوړل کېږي، چي په بې سواده پرګنو اړه لري. څکه نو د نکلو ژبه، جمله بندي، اصطلاحګاني او لغتونه زیاتره په هغه ژبه اړه لري، چي د نالوستو پرګنو په منځ کي ویله کېږي. نکلونه زیاتره د ساتېري د یوې وسیلې په توګه عمومیت لري، خو د هغو په محتوی کي داسي سایکالوجیک اغېز سته، چي پر ساتېري سربېره په نورو مواردو کي هم کار څني اخیستل کېږي. میندي خپل ماشومان د نکلو په ویلو باندي ویده کوي او پر ځینو نکلو باندي د اخلاقي نورمونو د ښوولو او عبرت

ډېره موده وړاندې هڅې پيل کړې او دا يې پټپيلې وه، چې د دغه اثر هغه امانت شکل چې په لومړي ځل د افغانستان د مشهور او تکړه فلکلوريست استاد محمدګل نوري (۱۳۵۲ ش مړ) په همت راټول سوي مواد دوباره خپل ولس ته د يوه امانت په توګه وسپاري، د هر راز لاسوهنې او مداخلې څخه يې يو ژغورلی او اصلي شکل ترتيب او د چاپ په ګېنه سمبال کړي.

موږ تر خپله وسه په دې باب کار وکړ، او د ملي هينداري د درو واړو ټوکونو له لومړيو چاپونو څخه مو اصلي متن رانقل او درې واړه ټوکه مو په يوه ټوک کې ترتيب کړه، موږ باور ولرو، چې د ملي هينداري دغه وروستی شکل به تر نورو ټولو چاپونو بشپړ او د هر راز لاسوهنې څخه خلاص وي او زموږ راتلونکي څېړونکي به د پښتو شفاهي ادب د يوې خورا غوره نمونې په توګه کار ورڅخه واخلي.

په درنښت

**علامه رشاد خپرندويه ټولنه**

کندهار

اخیستلو ګټه بنا وي.

تر کومه ځایه چي ما د پښتنو نکلونه اورېدلي یا لوستلي دي، ځیني یې د پښتنو د خپلي ټولني او چاپېریال محصول وي، ځیني یې بیا له نورو کلتورو څخه راغلي نکلونه وي، خو پښتني عناصر و هم لار ور ته موندلې وي او ځیني نور یې بیا له نورو کلتورو څخه راغلي وي خو ډېر لاس یې نه وي خوړلی او پر خپل حال پاته وي. په نکلونو کي د محتوی او شکل تغیر هغه وخت زیات پېښېږي، چي له سینو څخه د کاغذ مخ ته رانقل سي. په تېره بیا که ناقل یې د خپل مسئولیت په حدودو باندي سم پوه نه وي. موږ پوهیږو، چي ځیني نکلونه په یوه مشخصه جغرافیایي اورشو اړه لري. نو که یې ثبت د همدې اورشو د اوسېدونکي پر لاس وسي، د مسخه کېدو امکان یې ورسره محدودېږي خو که تر دې اورشو وتلی یو څوک یې د ثبت کار ته لیځي راوغږي، نو یې په شکل و محتوی کي د بدلون امکانات ډېر سته.

د پښتني ټولني نکلچي د شاعر، انځورګر، لوبغاړي، سندرغاړي په شان د هنر د لاري د لاروي په مقوله کي ځای موندلای سي. زه لا دا هم ویلای سم په هغو نکلچیانو کي، چي ما یې د نکلو د اورېدو موقع موندلې ده، یو نیم داسي کسان هم ول، چي د څو هنرونو څښتنان به ول. ښه آواز به یې و، ښه ایکټربه و، ډېر دراک او روانشناس به و. کله چي به یې په اورېدونکو کي له نکل سره د دلچسپی کمزوري ولیدله، په یوه خورا ماهرانه شیرغلت به یې بل نکل شروع کړ او د اورېدونکو پاملرنه به یې ځانته وراړوله. نکلچي به پر نورو کمالو سربېره د افادې مهارتونه هم درلودل. د ده الفاظ، کلمات، د لاسو، سترګو او خولې حرکات، د آواز زیروبم او نور حرکتونه و تمثیلونه به له داسي هنریت څخه برخمن ول، چي اورېدونکی به یې د سترګو په رپ کي له کیسې سره سم د نکل د ماجرا یوه برخه وګرځاوه. اورېدونکي به سمدلاسه د نکل په اتلانو کي له یوه سره خواخوږي (سیمپاتي) پیدا کړه په بري او ښه ورځ به یې خوشاله او په ناکامي به یې خوابدی کېدی...

زه چي د پښتو نکلو د ثبت کار ته ګورم، نو تر ټولو لومړی راته "ملي هینداره" مخې ته راځي. یو علت به یې ښایي دا وي، چي زما ستر ګي واردواره د نکلو په همدې کتاب باندي روښانه سوي دي. له دې کتاب سره

مي د ور کتوب ډېري خوږې خاطرې تړلي دي. خو خبره يوازې پر همدې ځای نه درېږي، کله چي مي په نسبي ډول د نکلو د نورو کتابو د لوستلو موقع موندلې ده او بيا مي د هغو د ثبت کار له ملي هينداري سره پر تله کړی دئ، راته ثابته سوې ده، چي "ملي هينداره" د پښتو نکلو د کتابو په سر کي راځي او پر ځنګ مې په دې خبره هم سر ښه پوره خلاص سوی دئ، چي د ملي هينداري مقبوليت د هغې د راټولوونکي، ارواښاد محمد ګل نوري (۱۳۵۲ش مړ) له شخصيت او اهليت سره تړلی دئ. د ارواښاد محمدانور نوميالي(۱۳۸۵ ش) دا خبره ډېره پر ځای ده، چي ويلي يې دي:

"موږ بايد د نېکو تاريخي تصادفاتو احسان ومنو، چي د دې فولکلوريک نکلو ثبت د ژبپوهني د کوم ډاکټر په پچه ونه ختی ځکه په داسي بېګانه سبک به يې ليکلي وای او داسي ناوړه املايي او انشايي لاسوهني به يې پکښې کړي وای، چي خلک به يې له خپلي ژبي ځخه بېزاره کړي وای او د فولکلور په څېړنو کي به يې د تصنع له درکه ډېر مشکلات پيدا کړي وای" (وګ: د امير کروړ ياد، ۴۸۲مخ، ۱۳۶۴ ش، کابل).

## نوري څوک و؟ او بريالیتوب يې په څه کي و؟

د نوري پلار ونيکه د کندهار ښار په جنوب ختيځ کي د منارې د کلی اوسېدونکي ول. د منارې کلی د ميا نورمحمد صاحب نورزي د اوسېدني او بيا په هغه ځای کي د ښخېدني له اسيته د "منارې" په نامه باندي مشهور سوی دئ. ميا نورمحمد صاحب د نوري نيکه و. پلار يې عبدالواحد صاحبزاده نومېدی. ده خپل تخلص هم د همدې نيکه د نامه په ارتباط ټاکلی و. نوري د خپل وخت علوم لوستي وه او کله چي په کندهار کي د ادبي انجمن تاسيس سو (۱۳۱۱ش) نوري يې له لومړنيو همکارانو او غړو څخه و. کله چي د طلوع افغان د چلولو چاري د علامه عبدالحي حبيبي(۱۲۸۹ - ۱۳۶۳ ش مړ) پر غاړه ولوېدلې نو د نوموړي علامه په نوښت د اخبار خپروني ټولي په پښتو ژبه سوې. د پښتو ژبي د پرمختيا په معاصر تاريخ کي د طلوع افغان پښتو کېدل يوه ستره پېښه ده. د دې اخبار فاضل چلوونکي د خپل وخت اکاډميکي ژبنی اړتياوي په ژوره توګه تشخيص

کړي وي او د دغه اکاډمیک بهیر په وظایفو کې یې فولکلور هم له یاده نه وایستلی. د دې چارې د سر ته رسولو له پاره یې پر ارواښاد نوري باندې لاس کښېښود او چې رشتیا سي خورا غوره انتخاب و. نوري خپل ټول ژوند پښتو ته وقف کړ. فولکلور یې راغونډ کړ (تکلونه، محاورې، اصطلاحات، متلونه، ...) او د خپل مثمر ژوند په اوږدو کې یې دا لاندې آثار ولیکل (د دغه لیست په لیکلو کې "د مینو ستاینه" رسالې (د ۱۳۶۳ش چاپ څخه استفاده سوې ده) :

- ملي هنداره (۳ټوکه)، چاپ ۱۳۱۸ - ۱۳۲۵ - ۱۳۵۲ ش
- لیک ښوونکی
- پښتو اصطلاحات او محاورې
- ملي سندرې
- متلونه
- پښتو قاموس دوه ټوکه (ښاغلی ډاکټر پالوال وایي، چې دغه قاموس د ښاغلي نوري په نامه نه سو خپور. وګ : پښتو چاپي آثار ۲۶۳مخ).
- د پوهني د تدریسي پروګرام له پاره
- طبیعي پوهني (ژباړه)
- دینیات (ژباړه)
- مدني اخلاق (ژباړه)
- مدني معلومات (ژباړه)
- رحمت اللعالمین (له عربي څخه ژباړه)

**ناچاپ آثار** :

- ملي بدلې
- ملي دود
- پښتوآهنګونه
- خوږ باندار
- د خوشحال خان حل اللغات

- د خوشحال خان منتخبات
- د عبدالقادر خان منتخبات
- د احمدشاه بابا منتخبات
- پښتو یاد
- د مینو رساله
- د احد غزا
- د یارلس نکلونه
- د نوري دیوان
- زوړ کندهار
- د شینخالو ناري
- دواویا ډیالوګه او ډرامې
- د سنګلیچی، واخي، اشکاشمي او منجي قاموس پښتو معادل

او نور آثار چې له بده مرغه د مړیني په شپو کې یې له مقاماتو څخه د زړه ماتېدو تر اغېزې لاندې له منځه یووړل.

کله چې د کندهار ادبي انجمن د کابل له ادبي انجمن سره یو ځای سو (د ښاغلي هاتف صاحب په نظر د دې دوو انجمنو په یو ځای کېدو کې د وخت د حکومت هدف دا و، چې منورین په کابل کې تر خپل نظر لاندي وساتي) او ورپسې پښتو ټولنه جوړه سوه (۱۳۱٦ ش)، ارواښاد نوري د پښتو ټولنی غړی سو. خو تر ډېرو کلونو زیار او زحمت وروسته له دغې پښتني ټولني څخه په خوړین زړه راووت. نه چا د مرستي لاس ورکړ او نه یې چا د آثارو قدر وکړ. حتی د تقاعد قانوني حق یې هم څني وتروښاوه او نوري یې د مرګ پر وخت د ختو مزدورۍ ته اړ کړ. نه یې چا پر مړینه اوښکي توی کړې او نه یې چا پر مزار غونډې جوړي کړې. د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ له ریاست څخه زما هیله دا ده چې د نوري مزار جوړ کړي او له زلمیو څخه مې هیله دا ده، چې د نوري پر مزار باندي د ادبي غونډو او مشاعرو رسم جاري کړي او پسې ویې پالي.

د نوري مرحوم د ژوند طرز د یوه کلیوالي پښتانه و. ژبه یې هماغه د

د نورو چاپو په تمه دي[1]".

په یوه ولس کي په دغونه مقبولیت د یوه کتاب منل دا ثابتوي، چي دا په حقه سره ملي هینداره ده، او ټولو هغو ملي نوامیسو ته درناوی پکښې سوی دئ، چي د پښتانه ولس په قاموس کي رانغاړلي دي، خو په هیواد کي دننه د دغسي یوه مغتنم اثر د ژر نه چاپېدو له کبله دغه کتاب تر هیواد دباندي په پېښور او کوټه کي څو څو واري چاپ سو. دغو چاپونو پخپل ځان کي د ملي هینداري اصلي رنګ پیکه کړ، او ښاغلو چاپوونکو یې هغه اصالت تر پښو لاندي کړ، چي د ملي هینداري په لومړي چاپ کي ور په برخه و، د کتاب په متن کي د تغیراتو کچه دې مرحلې ته ورسېده، چي یو ځل د کتاب د مؤلف نوم د محمدګل نوري پر ځای محمد کامل نوري چاپ سو، په دې باب ارواښاد عطایي داسي لیکي:

"باید په خواشیني ووایو، چي پښتو ټولنه په دې برخه کي دونه بې علاقې وه چي د (ملي هینداره) دوه ټوکه چي د ده په نامه وه په پېښور کي د ده بې اجازې څو واره چاپ سوه او حتی لیکوال یې په جګ سر ژوندی و، خو نوم یې هم غلط سو یعنی د محمدګل پر ځای محمد کامل ور ولوېدی دا چي په متن کي یې نوري څه مداخلې سوي دي هغه لا بله خبره ده خو دغه زموږ د ملي ادب پالونکي او ساتونکي موسسې په دوو توروهم د دغي غلطۍ یادونه ونه کړه[2]".

د دغه ډول جفاوو لړۍ له ډېره وخته د ارواښاد استاد نوري سره راپیل سوې وه، چي ځینو یې اثار پر خپل نامه چاپ او ځینو یې د دوی له زیار او زحمت څخه داسي استفاده وکړه، چي د دوی ټول زیار او زحمت یې په اوبو کي لاهو کړ، او دا یې هم نه سوه پر پېرزو چي د دوی په زیار پر لیکل سوي،

---

[1] د همدې اثر "د سریزي پر ځای" لیکنه، (ز) مخ، چي ښاغلي استاد محمد معصوم هوتک زما په غوښتنه د ملي هینداري د نوي چاپ له پاره لیکلې دئ او د دې تر څنګ یې د ملي هینداري د نوي چاپ له پاره ډېري په زړه پوري مشورې هم راکړې دي، (م. روهیال).

[2] ملي هینداره، دریم ټوک، ۱۳۵۲ ش، د ارواښاد نوري د پېژندني (ق) مخ.

اولس ژبه وه. د اولس اصطلاحات او وراشې ورمعلومې وې، په پوهېدلو کې يې ستونزه نه درلوده او پخپله يې هم کارولې. د مثال په توګه، دی پوهېدی چې "روړه مست" څه معنالري؟ ځکه يې په ثبت کې غلطي نه ده کړې. د ملي هنداري د (۱۳۶۴ش) چاپ ترتيبوونکی چې په دې اصطلاح نه پوهېدی، هغه يې (ړوړمست) ثبت کړې ده (وګ :د فتح خان برېښي نکل-۵ مخ). نوري ته په نکل کې د "شپانه" اصطلاح او وظيفه معلومه وه، چې نکلچي ته بايد د مرستندوی په توګه "ښه، ښه" ووايي. د "امير کروړ ياد" کتاب ترتيبوونکي ته چې دا عنعنه او اصطلاح ورمعلومه نه وه، هغه يې د مقالې د ليکوال د ليکني پر خلاف "شانه" په نظر ورغلې او همداسي يې ثبت کړې ده (۴۷۹مخ). دې تېروتنې "د پښتو نثر اته سوه کاله" کتاب (۱۰۸مخ)ته هم لار موندلې ده. نوري مرحوم د دغسي غلطيو سړی نه و. ځکه ده پخپله په وارو وارو د نکلچيانو په باندارو کې له خپلو کليوالو سره يو ځای ګډون کړی و[1].

د نوري ژبه له خپل کليوالي کلتور څخه بېګانه سوې نه وه، ځکه نو د نکلچي د ژبي او کلتور په پوهېدلو کې يې ستونزه نه درلوده. ښوونځي ليدلي پښتانه او د چا خبره متخصصين له دغه راز کلتور څخه ورو ورو ليري سوي وي، پر ژبه باندي يې د نورو کلتورو سيوري لوېدلي وي. د فولکلور په ثبت کې له مواغېزو څخه ځان نه سي خوندي ساتلای.

نوري په "ملي هينداره" کي د "عذر" تر نامه لاندي ويلي دي :

له اميانو څه ليکلي ما قصې دي

د مينو ښې خوږې ناري پکښې دي

---

[1] د امير کروړ ياد" نومي کتاب په (۴۷۴مخ) کي له محلي اصطلاحاتو سره نابلدی د مقالې د ليکوال له "آ! بي بي لايکي" څخه "ابی ابی لايکي" جوړه کړې ده. د کندهار په محيط کی پر نجونو باندي "بي بي لايکه" نوم زيات اېښول کېږي او د کوچنيانو د لوبو په دغه سندره کي يوې نجلی خپله هم لوبه ملګرې د "آ! بي بي لايکي" پنامه مخاطب کړې ده.

# يو څو خبري

ملي هينداره د ارواښاد استاد محمدګل نوري (۱۳۵۲ ش مړ) په تألیفاتو او آثارو کې د لر او بر پښتنو تر منځ د خورا پراخ شهرت څخه برخمنه ده، د دې شهرت انګازې تر ليرو تللي او بهرنيو ليکوالو يې هم پر خوند او مزه باندي ژبې ټکولي دي، ارواښاد نوري د خپلو نورو ډېرو ګټورو آثارو تر څنګ د پښتو د ملي نکلونو په ثبت هغه مهال لاس پوري کړی و، چې د وخت په يوازينۍ او فرهنګي ټولنه (پښتو ټولنه) کې د پښتو ژبې د بېلابېلو اړخونو پر راغونډولو کار کېدی، د پښتو ژبې د بډايني له پاره د ارواښاد نوري زيار او زحمت تر لمر روښانه دئ او د پښتو ژبې د شفاهي ادب په برخه کې تر بل هر چا زيات کار کړی دئ. زه د ملي هينداري د ارزښت او څرنګوالي په باب هيڅ نه وايم، فقط د دغه ګټور کتاب د اوسني چاپ د ضرورت او د پخوانيو ځينو چاپونو پر توپيرونو باندي يو څو خبري کوم، چې دغو توپيرونو ته ښاغلي استاد محمد معصوم هوتک هم پخپله ليکنه کې اشاري کړي دي:

د ملي هينداري لومړی ټوک په ۱۳۱۸ ش کال د پښتو ټولني له خوا خپور سو، په سر کې د (لومړۍ خبري) تر سرليک لاندي د مؤلف يوه لنډه يادونه راغلې، او دا کتاب يې د خپلو آثارو دوهم چاپي اثر بللی دئ. د ملي هينداري په لومړي ټوک کي اووه نکلونه راغلي، چې د فتح خان بړېڅي، ښادي او بيبو، مرد او نامرد، زبزبانه شاپېرۍ، موسی جان او وليجان، مومن خان او شېرينو او جلات خان او شمايلي نکلونه پکښې شامل دي.

د دې سلسلې دوهم ټوک لومړی وار په کابل مجله کې په پرله پسې توګه خپور سو، چې ورپسې په کتابي بڼه په ۱۳۲۵ ش کال خپور سو،

نه زیادت او نه کمبود مي پکښې کړی
د هم هـغه نقلچي د خولې جـملې دي
دی د خپلي دغي ادعا په باب په بشپړه توګه صادق دئ. ده د ننیو ادعا لرونکو ماهرانو په توګه ځان ته دا حق نه وورکړی، چي د کومي اولسي وراشې، لغت او اصطلاح پـه بـاب دي پـه جرئتمنـدۍ سره د "غلط" حکم صادر کړي. ده تـه د خپـل نکلچـي (انفارمینټ) انتخـاب او وینګ مهم و او هغۀ څه یې ثبتول، چي اولس یې پخپله ورځنۍ محاوره کي کارول. دا کار زه اکاډمیک دیانت بولم او نوري همدا دیانت درلود. تاسي وینئ چي د همدې دیانت نتیجه ده چي د "ملی هینداري" د کتاب په خطاطۍ باندي د خطاطانو اوږې کړوپي او پـه چـاپولو بانـدې مطبعې سْتړي سوې خـو لوستونکي یې ستړي نه سول او د نورو چاپو په تمه دي.

## د نوري پاک روح دي ښاد وي

محمد معصوم هوتک
۲۸ اپریل ۲۰۰۸ع

لومړۍ خبري يې لوی استاد علامه حبيبي د يوې يادوني په ډول کړي، چي ورپسې د ملي هينداري متن پيلېږي، په دوهم ټوک کي هم اووه نکلونه راغلي، چي د ملا عباس او ګل بشرې، ظريف خانۍ او مابۍ، خشکيار او شاتريني، قطب خان او نازو، دلي او شهو، آدم خان او درخانۍ او قلندر جان او ميرا جان نکلونه پکښې شامل دي.

د دې سلسلې دريم ټوک تر نسبتاً اوږده ځنډ وروسته په ۱۳۵۲ ش کال له کندهاره خپور سو، دا مهال ارواښاد نوري په کندهار کي ډېري د غريبۍ شپې او ورځي سبا کولې، چي وروسته د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدير ارواښاد کانديد اکاډميسين محمدابراهيم عطايي (۱۳۸۰ ش مړ) په ځانګړې پاملرنه د کندهار په دولتي مطبعه کي د مصحح په توګه په کار وګمارل سو، چي د دې تر څنګ يې د ارواښاد نوري د ملي هينداري دريم ټوک هم د احمدشاه بابا د کتاب چاپولو مؤسسې له خوا ورخپور کړ. ارواښاد عطايي د دريم چاپ له پاره د نوري صاحب په غوښتنه يوه مقدمه او د ارواښاد نوري لنډه پېژندنه هم ليکلې، چي د ملي هينداري پر ارزښت، د پښتو په شفاهي ادبياتو کي د دغي هينداري پر ځلا، د ارواښاد استاد نوري د ژوندانه پر وروستيو ببوزليو او د هغه سره د وخت د حکومت او پښتو ټولني پر بې غوريو رڼغېدلی دئ.

د ملي هينداري په دريم ټوک کي د خانان، شاتر حسن، انار ژړان او سېب خندان، د باچا زوی، مالداره او سپی، عليبېګ او شاپاڼۍ، لمبولال يا نيمبولال، دوه وروڼه په يوه رنګ، ککرۍ، شرمښ او سره بزه، د سوداګر زامن يا درې هوښياران وروڼه، حلاله مزدوري، مسګر او نجار، ګيدړه او پړانګ، خمرۍ، د زعفرانو سوداګر او سپېر کونډه او پيل تر سر ليکونو لاندي شپاړس نکلونه راغلي دي.

د ارواښاد نوري ملي هينداره په ولس کي دونه مقبوله وه، چي په اړه يې ښاغلی استاد محمدمعصوم هوتک ليکي :

"د (ملي هينداري) د کتاب په خطاطۍباندي د خطاطانو اوږې کړوپي او په چاپولو باندې مطبعې ستړي سوې خو لوستونکي يې ستړي نه سول او

راټول سوي او ترتيب سوي كتاب دي د دوی نوم هم وليكل سي، هغه كتابچه چي ښاغلي استاد نوري په ۱۳۲۷ ش كال كي خپل ټول آثار، مقالې او ترجمې پكښې يادابښت كړي دي، ما ته يې يوه كاپي د هغه د زوی ښاغلي نورالهادي نوري له خوا راكول سوه، استاد نوري د دغو جفاوو يادونه پخپله پكښې كړې او هغه كتابونه يې په ګوته كړي دي، چي په ليكلو او ترتيبولو كي يې دوی خولې توی كړي خو نومونه د نورو ښاغلو پر ليكلي دي[۳].

د اروابښاد نوري په ملي هينداره كي د ډېرو نورو مداخلو تر څنګ يوه تر ټولو لويه مداخله دا وه، چي د ملي هينداري د لومړي چاپ څخه وروسته په نورو ټولو چاپونو كي، حتی د (۱۳٦۴ ش كال) په چاپ كي هم چي په كابل كي تر سره سو او د ترتيب كار يې ښاغلي بسم الله ولسپال تر سره كړ، يو بسته نكل غورځول سوی دئ. د ملي هينداري د دوهم ټوک وروستی نكل د قلندر جان[۴] او ميراجان[۵] په نامه دئ. ټولو هغو ښاغلو چي نوموړی نكل يې له ملي هينداري څخه غورځولی دا نه ده روښانه كړې چي ولي؟ او دا كار يې د څه مقصد له پاره كړی؟

د ملي هينداري اوسنی چاپي متن د لومړي چاپ څخه ترتيب سوی دئ، ما له ډېره وخته غوښتل چي ملي هينداره په داسي ډول چاپ ته آماده كړم، چي بايد د اروابښاد نوري ټول امانتونه پكښې ساتلي وي، د دې كار له پاره مي تقريباً څلور كاله مخكي په كار شروع وكړه، او هغه مهال مي د ملي هينداري د لومړيو چاپونو په پيدا كولو پسې لېږي راونغښتې، خو له بده مرغه د ملي هينداري له لومړيو چاپونو څخه د كرك هګۍ جوړي سوي وې،

---

[۳] زه د اروابښاد استاد نوري د مشر زوی ښاغلي نورالهادي نوري څخه مننه كوم، چي د اروابښاد استاد نوري عكسونه او د دوی د يادابښت د كتابچې كاپي يې راكړه.

[۴] قلندر اپرېدی د پښتو ژبې يو نازكخياله او حزين شاعر دئ، چي په پښتو كي يې ډېره د سوزه ډكه شاعري كړېده، دېوان يې د ښاغلي سرمحقق زلمي هيوادمل په سريزه او تعليقاتو په ۱۳۵٦ ش كال كي پښتو ټولنې خپور كړ.

[۵] ميرا د قلندر مرشد دئ، چي سوانح او د كلام نمونه يې په لومړي ځل لوی استاد علامه حبيبي د پښتانه شعراء د لومړي ټوک په ۲۵۳ مخ كي راوړېده.

# لومړۍ خبري

د سړي په خټه کي اخښلې ده، چي تل وس کوي چي د شيانو په حقيقت ځان پوه او خبر کي، او همدغه د حقيقت پلټنه د علومو او افسانو او د مدني او بشري د نورو سلو موضوعاتو د پيدا کېدو سبب ګرزېدلې ده، چي هره يوه يې لويه ګټه او ښېګڼه لري، يو له دغه شيانو څخه همدغه افسانې دي چي د وګړو د تمدن د لومړي سره څخه تر اوسه پوري د هر توکم او هري ټولۍ په نېز يو لوړ ځاى او حيثيت لري، ځکه چي همدغه افسانه جوړول خامخا يو سبب لري، نو د دې افسانو د جوړولو سبب همدغه د قوم او اجتماع د ژوندون حالات او مقتضيات دي، چي وګړي يې دې ته اړ کړي دي، چي د خپل قوم او ټبر له حالاتو او مقتضياتو سره سم يوه افسانه جوړه کي، او په همدغه افسانه کي د خپل محيط حالات او مقتضيات وښيي، نو هر څونه چي يوه افسانه معقوله او جذابه وي هغونه د هغه قوم د لوړوالي استازې بلل کېږي. د افسانې ماهيت او څرنګه والى د جامعې پر معنوي او روحي عواملو پر ماهيت باندي دليل ګڼل کېږي.

مثلاً : په غرني ملکو او ملتو کي داسي افسانې مينډلي کېږي، چي د زړه ورتوب او دلاورۍ او بېړي او ډار او غرور څخه ډکي وي، او د هواري مځکي افسانې د عشق او بېلتون او بې وفايۍ وي، او د تودو ملکو او ځنګلو لرونکو ملتو افسانې د شکايت، ګيلې او مرورتوب وي، نو له همدغه لامله همدغه افسانې د وګړو پېژندنکو (پوکلور) يو لوى مهم غړى بلل کېږي.

په دې پورته بيان کي شک نسته، ځکه تاسي وګورئ او همدغه افسانې ولولئ، تاسي به بله نتيجه ځني وانه خلئ پر ته له همدغه د پښتنو د خصوصياتو څخه چي خاص په دوى پوري اړه لري، لکه عشق، مينه، ورور ګلوي، زړه ورتوب، توره، توريا ليتوب، جنګياليتوب، ننګياليتوب،

دینداري، ناموس داري، وسیله رحمي، زړه سوی، ډوډۍ ماري، وفاداري او پر وطن ځان قربانول او نور ... ځکه چي د افغانستان پاکه خاوره له همدغو جګو جګو غرو، سپینو دښتو او ګڼو ځنګلو څخه جوړه سوې ده. هم تودې خواوې لري هم سړې او په همدغه پاکه خاوره کي همدغه تأثیر پروت دئ چي زموږ د سپېڅلو وګړو د پورتنیو مزایاوو سبب ګرزېدلي دي او دوی همدغه خپلي مزایاوي پخپلو افسانو کي څرګندي کړي او ښوولي دي.

څرنګه چي زموږ د تېرو مینانو او جنګیالیو ننګیالیو افسانې په زړو او خولو کي د عنعنې پر ډول پاته دي چاپ سوي نه دي او که ځیني چاپ سوي وي هم ځینو کتاب خرڅوونکو شعراوو ته ویلي او شعراوو یې یو کښ اروېدلی دئ، نوره قصه یې د ځانه په نظم کړې او د خپل نظم تابع یې ګرزولې ده. له همدې لامله ما تر خپله وسه پوري په غونډولو کي د دې افسانو هاند کړی او زیار کښلی دئ، چي دا دئ د المتوکل علی الله په رونه دوره کي چاپ او نشر سوې او هم دا مي د تألیف دوهم لمبر دئ، زیات پر دې د الله تعالی څخه د ځلمي ټولواک ډېر عمر او د ملت لوړتیا او و ځان ته د ملي ژبي په خدمت کي مرسته غواړم، چي نوري ملي افسانې هم راغونډې کم او دوهمه پلا چاپ او نشر سي.

محمد ګل نوري نورزی
د قندهار د منارې د میا صاحب لمسی

# فتح خان برېڅی

یو باچا و، د دې باچا نوم اسلم خان او په خته برېڅی و، پایتخت یې کلابس (قلعه بست) و، چې د کندهار د ښار د لمر لوېدو خوا ته تقریباً څلوېښت کروه بیر ته دئ. د دې باچا یو وزیر و[1]، کارونه د خدای دي نه باچا زوی درلود، نه وزیر.

یوه ورځ یوه ملنګ د باچا د حرم سرای په دروازه کې هل کړه، چې خیر راوړئ. د باچا مایني کور وویل، چې ویش اور دي در وسي، په تاسي ډېرو ملنګیانو په یوه کې دونه تأثیر نسته، چې خدای باچا ته یو زوی ورکي او د ورځې نو شل دروازې ته روږه مست ولاړ وي.

مینځه راغله ملنګ ته یې وویل چې بي بي داسي وایي ... ملنګ وویل، چې بي بي ولي؟ خدای به یې آسانه کي، دغه زما لکړه واخله باغ ته ورسه دغه لکړه د منو ووني ته ور وغورځوه هر څو منې چې راولوېدې راټولي یې که را یې وړه چې زه یې در دم کم.

مینځې لکړه راواخیستله راغله باغ ته د منو ووني ته یې لکړه ور وغورځوله، شپېته داني منې راولوېدې، مینځې منې راټولي کړې را یې وړې ملنګ ته یې ورکړې، ملنګ ور دم کړې نو یې ور ته وویل چې ور یې وړه بي بي ته یې ورکه، ور ته ووایه یوه ته او باچا وخورئ او دا نوري چې زړه دي دئ هغه چا ته یې ورکه، خدای به و ټولو ته زامن ورکي.

مینځې را واخیستلې بي بي ته یې راوړې چې ملنګ داسي وویل ... د بي بي هم یقین پر راغی، یوه منه دې او باچا سره وخوړه، او یوه یې مینځې ته

---

[1] ځیني وایي چې وزیر نه و، ځکه چې په هغه وخت کي قومي حکومت و، بلکي د ده مشاور او مجلسي او ورتېر و.

ورکړه چې دا هم د باچا سریته ده او نوري یې د خپلي عملې و ماندینو ته ورکړې، چې هره یوه دي یوه یوه ماښام د خپل مېړه سره وخوري، دغه نورو ښځو هم منې واخیستلې هري یوې ماښام د خپل مېړه سره یوه دانه منه وخوړه، د وزیر ماینه دمخه تر دې لا برالبه وه، دا منه چې یې وخوړله غبرګه برالبه سوه. و، و، و[2]، عمر دئ تېرېږي چې نه میاشتي نه ساعته نه ګړیه تېر سوه، الله تعالی ټولو ته زامن ورکړه، په دغه سهار شپېته نارې وسوې، د وزیر ماینه غبرګه لنګه سوه، یو زوی او یوه لور یې وزېږول، د زوی نوم یې پردل خان کښېښو او د لور نوم یې بي بي رابیا کښېښووه، او د باچا دوه زامن پیدا سوه د اصلي ماینې د زوی نوم یې (فتح خان) کښېښو او د مینځې د زوی نوم یې (کرم خان) کښېښو[3].

څه سر دي ګرځوم دستي یې بي بي رابیا و فتح خان ته په نکاح ورکړه، ښادي او خوشحالي ده، دا ښادي او نکاح چې تېره سوه باچا حکم وکی، چې د دغو ټولو هلکانو ښه تربیت او حفاظت کوئ. خو ټوله د خانانو زامن دي په استراحت دي، چې لږ څه غټ سوه، فتح خان او کرم خان او دا نور اته پنځوس (۵۸) هلکان ټول سره همزولي دي، یو ځای سبق وایي په یوه سلا سبق ته ځي او په یوه سلا رخصتېږي، او ټول یو ځای ډوډۍ خوري یو ځای لاسونه مینځي، ها ها خو ټوله غټ سوله، بچه مرده زلمیان سوله، مینځه چې لاسونه ور پرې مینځي اول د فتح خان لاس مینځي بیا د کرم خان او بیا د نورو یارانو دا، او که موچني ور ته سموي هم لومړی د فتح خان بیا د کرم خان او بیا د پردل خان او بیا د نورو یارانو دا.

خیر هلکان ټوله همزولي دي پر یوه هاڼ دي ټوله په یوه سلا ګرځي لکه ورونه یو تر بله سره ګران دي، یو ورځ فتح خان و پردل خان و کرمي[4]

---

[2] و و و بمعنی بود، بود، بود.

[3] څوک وایي چې کرم خان د فتح خان مخصوص مریی و او د ده همزولی و، د حبشي زوی و، وروریې نه و، مګر دا غلطه ده د فتح خان ورور و.

[4] کرمی د فتح خان یاد سوی مېړېزی ورور دئ، چې کرم خان نومېږی، د فتح خان د نازه او د ډېر استعمال څخه کرمی سوی دئ.

او نور یاران یې دباندې په ښکار راوتلي دي خپل سات تېروي، که ګوري د ماز دیګر وخت دئ ښځو د ولې څخه منګي ډک کړي دي او خپلو کورو ته یې وړي، یو وار د کرمې ورته پام سو، ویل یې فتح خانه راسئ چې د دې ښځو منګي په ګټو ور مات کو، چې پر دوی دا اوبه څنګه بهېږي، سیل به یې وکو.

فتح خان ویل ښه دئ، بس دستي ټولو هلکانو ګټي ډېري واخیستې کړپ کړپ د ښځو منګي یې ور مات کړه اوبه یې توی سوې، ښځې لندې خیشتې سوې، په دا سبا ښځې راغلې پر اسلم خان باچا یې عرض وکی، چې فتح خان داسي کار کړی دئ.

باچا ورته وویل چې زما دغه یو زوی دئ، زه څه نه سم ورته ویلای، تاسي به ژې جوړ کی چې په لوټو او ګټو نه ماتېږي نو په اوبه پکښې راوړئ، نو بله ورځ ښځو بیا ژې د اوبو ډک کړي دي را اخیستي یې دي، کور ته راځي بیا د فتح خان ډله پر پېښه سوه بیا کرمی ورته وایي چې فتح خانه راسه، چې دغه ژې یې په غشیو او لېندو ور سوري کو، چې دا اوبه څنګه داری وهي، بیا دوی غشي ورته ونیول ژې یې ور سوري کړه، ښځې لندې سوې، ښځو بیا پر باچا عرض وکی، باچا فکر یووړی چې د دې چاره یې څه، خو دغه یو زوی یې و، هیڅ یې نه سوای ورته ویلای، وروسته یې هغه مېنځه چې دوی ته یې ډوډۍ وروړه راویې غوښتله، باچا ورته ویل چې ته چې لاسونه مینځې اول د چا لاس مینځې؟

دې ورته وویل اول د فتح خان. باچا ورته وویل چې نن د فتح خان لاسونه اول مه ور مینځه. ښایي چې په دې باندې د ده عبرت سي او پوه به سي چې پلار مي خبر سوی دئ، بیا به د ښځو منګي نه ورماتوي، مینځه چې راغله په دغه ورځ یې د فتح خان لاسونه اول وار نه ورپرېوله، د پر دل خان لاسونه یې ور پرېوله، د فتح خان فکر ډېر بد سو سر یې کښته وځړاوه، ډېر خوابدی سو، کرم خان ورته وویل :

فتح خانه په دې پوهېږې؟ دا خو د ورکي جواب دئ، چې یعني پلار دي وایي چې راځخه ورک سه. فتح خان ورته ویل چې پای مو څه؟ کرمي ورته ویل چې پای دي دغه دئ چې ځني ولاړ سه، مه پاتېږه سبا به په خوله

در ته ووايي ټوله همزولي به راباندي خاندي.

د فتح خان زړه ته نه لوېده د خپل زړه د تسلی له پاره ماښام پلار ته ور رهي سو، چي زه علم راولم چي رشتيا ده که نه؟ فتح خان چي پلار ته سلام ور واچاوه پلار يې سلام بيا نه کی، وروسته و تخت ته ور پور ته سو، غوښت يې چي د پلار پر اړخ کښېني، پلار ځای نه ورکاوه، نو وروسته د فتح خان و زړه ته ولوېده چي دا خبره چي کرمي وکړه رشتيا ده.

نو په دا سهار فتح خان هم دستي حکم وکی چي ډېر پاخه سراجان چي ښه ځينان جوړوي رايې ولئ چي ځينان راجوړ کي. خو سراجان يې راوستل ور ته ويې ويل، چي شپېته ښه ځينان راجوړ کئ او نور د آس سامان په همدغه هفته کي له تاسي څخه غواړم. سراجانو هم په دغه هفته کي شپېته ځينان، شپېته ملونه او نور سامان ور برابر کی، را يې ووړ بيا فتح خان حکم وکی چي ورسئ د کمند څخه شپېته داسي آسان راولئ چي خاوري يې پر شا ور ودوړوې او دغه آس شا ورېږدوي هغه خاوري توی سي، يعني چي بېسده ښه مست آسان وي.

دغه آسان يې دستي راوستل، فتح خان پر خپلو يارانو بږغ وکی چي په نيمه شپه کوچ دئ، تر دې مابين يې بي بي رابيا ته سړی ور ولېږی چي فتح خان ځي راځه ! سړی چي راغی بي بي رابيا د کلا پر سر ولاړه ده، سړي ناره پر وکړه :

که کوتري د کلا پر سر کوتري

فتح خان وايي يا مي خوريې يا راووزه دروازه که دړي وړي

چي يعني فتح خان وايي زه ځم که راسره ځې خو ښه که نه وي زه ولاړم، خو دې جنه جنه کړه، سړی بير ته راغی چي هغې جنه جنه کول، زړه يې لکه چي نه غوښت، ده ويل ښه دئ چي ماښام ځو د دې پر کلا به ورسو را رهي بې کو.

لنډه دا چي نيمه شپه سوله، دننه په ښار کي نغاره وډنگېدله چي کوچ، د فتح خان پلار اسلم خان چي دا نغاره واورېده پوښتنه يې وکړه، چي دا څه نقل دئ، چا ور ته وويل چي فتح خان ځي، پلار يې دغسي راوغورځېدی چي دا يو زوی مي دئ ولي ځي او څه سوي دي؟ څو چي راغی که ګوري آسان يې

ټوله ځين کړي ولاړ دي، شپېته سره زلميان د ګامه ولاړ دي و سپرېدو ته ګوري.

پلار چي يې دا حال وليد ناره يې وکړه :

څه کي څه کي دا هوډ دي فتح خان څه کي
پر نيمه شپه يې نغارې وډنګولې، لويه خدايه خان پر کوم لوري واته کي

خو فتح خان ته يې وويل څه کوې؟ زويه څه سوي دي؟ چيري ځې؟ ده ورته وويل چي څه مي کوې؟ ما او خپل کار سره پرېږده، وروسته فتح خان د ګيلې پر ډول پر پلار دا ناره وکړه :

ما سلام در و اچاوه را بيا دي نه کي
چي پر تخت در و ختم ځای دي رانه کي

پلار يې په جواب کي ناره پر وکړه :

په يوه لاس کي مي جام په بل کلام دئ
اسلم خان خو مي پر تېر ويل پښېمان دئ

چي يعني زه پر هغه پښېمان يم، چي سلام مي در بيانه کی او و تخت ته مي پرې نه ښوولې، او يا مي مينځي ته څه خبري کړي وې، خو پلار چي يې هر څه زارۍ ورته وکړې چي مه کوه زويه مه ځه، خو فتح خان نه پاتېدی.

آبس فتح خان او نور ټول ياران يې راسپاره سوه، تر دې مابين يې مور خبره سوه، چي فتح خان ولاړ. مور يې راغله، د کلابس دروازه يې ورته ونيوله، چي زوی مي راڅخه تېر نه سي، زه به يې د آس تر ملو ونيسم.

فتح خان خبر سو، چي مور دي راغلې ده په پلانۍ دروازه کي ولاړه ده نه دي پرېږدي، د (کلابس دوې دروازې وې)، فتح خان پر بله دروازه ځني ووت، چي مور يې خبره سوه چي فتح خان پر بله دروازه ووت، نو يې ناره وکړه :

که دوې دي لويه خدايه کلابس دروازې دوې دي
پر دا يوه مي فتح وزي پر دا بله يې د مور، مور سوي نارې دي

مور يې دالته پاته سوله، فتح خان دوی د پردل خان او د بي بي رابيا کلا ته راغله "چي و دغي کلا ته (مختر) کلا وايي، چي د کلابس څخه څلور

کروه د شمال شرق و خوا ته ده"، دلته د فتح خان پلار څو کسه غټ غټ د بړېڅو سپین بږیري د مختر کلا ته ورولیږل چي تاسي ورسئ پر مرکه سئ چي ګوندي راوګرځي.

سپین بږیري چي راغله فتح خان ته یې نصیحت وکی، چي مه کوه د پلار یو زوی یې چي ته هم ولاړ سې نو دا ملک و چا ته پرېږدې؟ یه نه به ځې ! خو هر څه نصیحت چي یې ورته وکی (پښتون و) فتح خان ورته وویل چي هیڅکله نه پاتېږم ځم، سپین بږیرو وویل ښه دئ چي ځې نو د مکې شریفي و خوا ته ولاړ سه، ده ویل هري خوا ته چي ولاړم، ولاړم، مګر نیت مي و هند ته دئ.

سپین بږیري بیر ته راغله د فتح خان مور و پلار ته یې ویل چي نه پاتېدی. مور چي یې دا خبره واروېدله نو یې ناره وکړه :

که اور ګډ کړې د بړېڅو په سپین بږیرو

مرور یې پخلا نه کی لا د لاسه ورښیي، ورښیي یاغي ملکونه

لنډه دا چي فتح خان راغی پر بي بي رابیا یې ناره وکړه :

که پوځي دا رابیا خولګی مي پوځي

فتح ځي د هند و لور ته، دغه ګل رابیا مي ځي که دلې اوسي

رابیا چي دا ناره واروېده نو دې پر فتح خان ناره وکړه :

که ځوړاندي د کرنګ ورځي ځوړاندي

فتح چي ځي د هند و لور ته، دغه ګل رابیا مي ځي تر تا د وړاندي

چي یعني زه هم درسره ځم، چي ته ځې نو زه څنګه پاته سم؟ فتح خان سپور سو، دلته د فتح خان مور پسې راورسېده، پر بي بي رابیا یې ناره وکړه:

که بلبلي رابیا ژیړي بلبلي

فتح ځي د هند و لور ته په جلو یې لګوه دواړه منګولي

رابیا ور حمله کړه د فتح خان د آس جلو یې په دواړو لاسو ټینګ ونیو، چي مه ځه!

د فتح خان لړ څه زړه نری سو، غوښت یې چي کښته سي او پاته سي، د میني ناز دئ اغېزه یې پر وکړه، کرمي چي فتح خان ولید چي پاتېږي، نو یې ناره پر وکړه:

که تاک دئ د هندوستان په سر کي تاک دئ

فتح ځي نه راستونېږي، اچولی يې د بي بي رابيا طلاق دئ

چي يعني تا خو طلاق اچولی دئ، څنګه به پاتېږې؟

فتح خان فکر وکی چي ښه وايي، خو بيرته پر آس سم سو ړغ يې وکی چي سپاره سئ. ټوله ياران پر آسانو سپاره سوه، بي بي رابيا فتح خان ترشا سپره کړه، دلته بيا د رابيا مور ناره پر وکړه:

فتح خانه لاس پر خپل زړګوټي کښېږده

که رابيا درسره ځي پردل راپرېږده

خو فتح خان په چرت کي سو، چي څه وکم؟

کرمي بيا فکر وکی چي پردل خان پرې نه ږدي، ځکه چي دغه هغه غښتلی سړی دئ، نو يې ناره پر وکړه:

لاس مي پر خپل زړګي دئ ايښی هم بې کښېږدم

دا پردل که ناوکی ده زه بې پرېږدم

چي يعني که پردل خان نجلی ده خو زه به يې پرېږدم، مګر زموږ هغه توريالی ملا تړلی ورور دئ، دی څنګه پاته سي؟ دلته پردل خان ته غيرت ودرېده، پر کرمي يې ناره وکړه:

که اوتر کړم نن دا ستا ناري اوتر کړم

د دې لور به پاته نه سم، مګر خدای پر مصری توره برابر کړم

فتح خان وويل چي زه يې هم نه پرېږدم، آبس فتح خان او نور ياران يې را رهي سول، خو ناوخته دئ د مختر د کلا څخه لږ څه بيرته يو باغ دئ، دلته يې واړول، چي شپه تېره سي سهار به ځو، خو دغه شپه تېره سوه، سهار وختي د رابيا همزولي راټولي سوي دي، چي درځئ چي ورسو دغه اوستری ديد خو د رابيا سره وکو، خو اويا اتيا ښځي دي، ښې ښې پېغلاني دي چي سترګي نه پر رونېږي، دا دئ سهار وختي په باغ راکښېوتې، بي بي رابيا ته راغلې سره کښېنستې، يو ګړی يې مجلس سره وکی وروسته بي بي رابيا ورته وويل، چي ورسئ يو ګړی په باغ کي وګرځئ خپل سيل و اتڼونه وکئ.

دوی هم راولاړي سوې خپل سيل و اتڼونه کوي شاوخوا ګرځي، فتح خان کرمی راوغوښت، کرمي ته يې وويل چي ته ورسه د باغ پر دېواله

کښېنه تر هغو پوري ګوره پام کوه، چي دې نجونو ته ږغ ونه کې په نشه کي يې ور ونه خېژې، څو دوی خپل سات تېر کي، هر وخت که کورو ته تلې نو پر ما ږغ وکه، کرمي ويل ښه دئ.

کرمی راغی د باغ پر دېواله کښېنوست، نجونو چي اتڼ واچاوه، بازئ کوي، کرمی ورته ګوري، خوند يې ورکی خو د توانه يې ووتله نور څه يې نه سوای کولای دستي راغی پر فتح خان يې ناره وکړه :

سر د سره پلنګه هسک کړه فتح خانه

لو يه خدايه سيلاني بلبلي والوتې د باغ

بس فتح خان پر خپلو يارانو ږغ وکی چي درځئ، يوه يوه نجلۍ چي خوښه مو سوله د آس تر شا يې سپره کئ. دستي ټولو يارانو نه پنځوس پېغلي نجوني خوښي کړې، هر يوه، يوه يوه تر شا پسې سپره کړه، که په رضا وه که په زور.

فتح خان و راپيا هم پر آس سپاره سوه، د دغه ځايه ټوله ياران راکوچ سوه ولاړه. و اسلم خان ته حال ورغی خلکو عرض پر وکی چي فتح خان داسي کار وکی، زموږ نجوني سيلاني ورغلي وې ټوله يې بوتلې. باچا وويل چي زما په واک نه کښېوزي زما يو زوی و راڅخه ولاړ هر څه چي مي وکړه نه پاتېدی نو څه وکم، اوس هم هغه ټوله پېغلاني وې خپل مېړونه يې پيدا کړه او تاسي هر يو د خپلي لور يا خور زما څخه پوره ولور واخلئ زياته نو څه غواړئ[٥].

فتح خان دوی را رهي سوه، هله هله هله تر مازيګره يې مزل راوکی بيا يې يو چيري پر دښت واړول، فتح خان کرمي ته وويل چي ته نن شپه دلته يوه سانګه جګه که سهار چي دا سانګه پر هره خوانړېدلې وه پر هغه خوا به ځو.

کرمی راغی يوه لښته يې پيدا کړه را يې وړه يو ګوښه ځای يې سانګه

---

[٥] ځيني خلک وايي دا چي ښځي يې ويلي دا محض ملحقات دي، که نه وي فتح خان يوازي خپله بي بي راپيا ورسره بوتله، نوري ښځي يې نه دي بېولي، او خپلو يارانو ته يې په هندوستان کي ښځي ورکړي دي او هم دا صحيح ده.

جګه کړه، خو ماخستن سو ټوله ستړي وه بیده سوه، کرمی پر نیمه شپه راویښ سو راغی و سانګي ته، که ګوري سانګه د مکې شریفي و خوا ته کږه اونړېدلې ده، کرمي سانګه د هندوستان پر خوا کږه کړه، بلکي قصداً یې ونړوله، نو راغی صبح صادق دئ پر فتح خان یې ناره وکړه :

سر د سره[٦] پلنګه هسک کړه فتح خانه
یو مي سانګه د هندوستان پر لور کږه ده

فتح خان چرت یووړی، بیا یې نه وکی کرمي بیا ناره پر وکړه :

سر د سره پلنګه هسک کړه فتح خانه
یاغي سوي هندوستان رعیت ملکونه

فتح خان راپورته سو، سهار وختي دئ لمونځونه یې وکړه که ګوري سانګه د هندوستان پر لور کږه ده، فتح خان وویل کړه د خدای دي یارانو درځئ مخ پر هندوستان باندي کوچ دئ، ټوله یاران یې تیار سوه مخ د هندوستان پر خوا را رهي سوه، هله هله هله تر مازیګره یې مزل وکی دا دئ یو چیري یې و یوه کښت ته نژدې واړول، شپېته سره آسان یې ایله کړه، ځینان یې واخیستله و کښتو ته یې وشړل، چي ماړه سي، د دې کلي خلک ټول په اتفاق وه، ډېر ښه اتفاق یې و، دستي یې آسان ګرد راټول کړه بیر ته یې ورته راوستل، په خپلو کښتو کي یې نه پرېښووله، فتح خان وویل چي د آسانو د ایله کېدو څخه زما مقصد دا و، چي ما د دې خلکو اتفاق او بې اتفاقي معلومولې، مقصد مي د دوی د کښتو پوول نه وو، ځکه چي موږ باید داسي ځای ته ولاړ سو چي مخلوق یې بې اتفاقه وي، او د دوی له بې اتفاقۍ څخه موږ پوره نتیجه او ګټه واخلو، موږ باید تل په اتفاق یو، ټوله یاران خپل ځانونه یو تن وبولو او بې اتفاقي ډېره بد شی ده.

خیر سهار بیا راکوچ سوه، هله هله هله ګرد ورځ یې مزل وکی ماپښین قضا مازیګر غټ یې بیا په یوه کلي کي واړول، بیا یې آسان ایله کړه چي څر وکي، دا کلی هم په اتفاق و، بیا یې آسان ټوله غوټه ورته راوستل، څوک یې په خپله مځکه او کښت کي نه پرېږدي.

---

[٦] وایي د فتح خان پلنګ د چندنو و او سور و.

خیر سهار بیا راکوچ سوه دا دئ د هند په علاقه کي یې په یوه کلي کي واړول، آسان یې ایله کړل د دې کلي خلک بې اتفاقه او بلرغو عالم دئ، یو یې آس د خپله کښته وباسي د هغه بل په کښت کي یې ایله کي، آبل یې د آ بل و کښت ته وشړي، خیر آسان یې ماړه سوه، بیر ته یې آسان راوستل فتح خان و کرمي و پردل خان ته وویل چي زموږ ځای هم دا دئ، دلې به اوسو ټولو یارانو یې ورسره خوښه کړه، چي هو کې دا کلی بې اتفاقه دئ اتفاق نه لري، نو زموږ همدغه ځای وړ دئ، ځو چي قوه پیدا کوو. په دغه کلي[7] کي یوه ټینګه کلا وه، خورا جګ جګ دېوالونه یې وه، ډېره محکمه وه، یوه دروازه یې وه دا هم تړلې وه، خورا یې محکمه ټمبه کړې وه، لوی لوی غټ تیران یې ورته درولي وه. فتح خان وویل چي دا کلا به په څه چم خلاصه کو، چي موږ پکښې واوسو، کرمي وویل چي زه به ورسم ور ږغ به کم دروازه به راخلاصه کي، که یې نه راخلاصوله نو بیا به ګورو، فتح خان ویل ښه دئ.

کرمی راغی دروازه یې ور پوري وهله، دروازه نه خلاصېده، کرمي ته غیرت ورغی چي زه د فتح خان ورور او نوکر یم نو زه بیر ته ځنګه ورځم چي دروازه نه خلاصېده نو یې ناره وکړه :

دروازه ژر رابنیا[8] کړئ ګواریانو

اور به بل کم د ګوارو د ګوارو پر سرونه

چي یعني اور به درباندي بل کم، که نه وي دروازه راخلاصه کئ، ګوارو چي دا ناره واورېده د بېري یې دروازې ته بل تیر ټمبه کی، ښې محکمه کړه چي دا څه بلا ده، خو کرمی ورته ولاړ دئ، دروازه نه ور خلاصوي، فتح خان پر پردل خان ږغ وکی چي ته ورسه د کرمي حال راوړه، کرمی خوشي یو ورګډی سړی دئ یو اور به یې لټولي وي، ډېر وخندېدی، پردل خان چي راغی که ګوري کرمی و دروازې ته ولاړ دئ، ورسره ږغ یې دئ، نو پردل ناره پر وکړه :

---

[7] دا کلی د ګواریانو دئ، د هندوستان په مغل کوټ کي، او ګواریان یوه طایفه ده په مغلو کي.

[8] بنیا : خلاصول، دروازې ته چوله ورکول.

دروازه ژر رابهیا کړه ګواریه
اور خو به بل کو د ګوجریو[۹] پر سرونه

چې پر ګوجرو به اور بل کو یا به کلا ته اور ور واچوو، دوی د بېړي بله ټمبه ورته کښېښووه، دا پلا بیا بېخي وبېرېدل چې دا څه بلاوي دي او څه کوي؟ خیر، خو کرمي و پردل خان و دروازې ته ولاړ دي دروازه څوک نه ور خلاصوي، فتح خان فکر وکې چې دا څونه وځنډېدل، پخپله پسي را رهي سو، چې راغی ویل کرمیه ولي ورته ولاړ یې دروازه در خلاصوي که یه؟

کرمي ویل یه نه یې راخلاصوي.

فتح خان ورته وویل چې تا څه ورته ویلي دي؟ بږغ دي ورکړی دئ که یه؟ کرمي ویل هو بږغ مي ورکړی دئ ما داسي ورته وویل هغه خپل سوال و جواب یې ورته ووایه. وروسته فتح خان پخپله دروازې ته ورتېر سو، پر ګوارو یې بږغ وکی :

دروازه ژر رابهیا کړه ګواریه
مسافر یو بې ولاته خاصګي تتهوان[۱۰] مو تپ دي درېدلي

خو ګواریانو دروازه نه کړه ور خلاصه، ګوارو خپل تر خپله سره وویل چې ودئ یو دوه کسه پر کلا وخېژوو، چې وګوري چې دا څنګه خلک دي؟

ګوار چې پر کلا راوختل چې کښته یې وکتل فتح خان یې ولیدی، چې برېتونه یې د لیري څر کېدل او تر غوږو تېر وه، فتح خان د دې خوا بږغ پر وکی:

دروازه ژر کئ راخلاصه ګواریانو
راپسې د زرغونو زرغونو توتیانو سیل دئ

چې یعني دروازه راخلاصه کئ که نه وي یرغل مو دروړو، په زور یې خلاصوو.

هغه دوه کسه ګواریان په تاخت راکښته سوه، ورته وې ویل چې داسي شېربرېتی ولاړ دئ، چې د سړي روح ځني قبض کېږي، نه یم خبر چې

---

[۹] ګوجریو قوم دئ.

[۱۰] تتهوان : آسان. یعني لم غوټه د جنګ آسان، یو یې تتهو بولي.

باچا دئ که نور ځو ک، دوباره یې دروازه ور خلاصه کړه، فتح خان سره له نه پنځوسو يارانو و کلا ته ورننوتل، هر يوه جلا جلا يوازي کوټه ونيوله، پلنګونه یې پکښې کښېښوول، چي ډوډۍ یې وخوړله، ټوله سره پر ځای سوه، آخر ته فتح خان چرت وواهه، چي موږ خو دا ځای ټاکلی دئ چي نه به ځو، اوس یې د دې پای څه، فکرجن سو.

آخود[11] و آخر ته یې و رابيا ته وويل چي ته ورسه و کرمي ته ووايه چي فتح خان دي بولي، رابيا راغله و کرمي ته یې وويل چي راسه فتح خان دي غواړي.

کرمی راغی سلام یې و کی کښېنستی، فتح خان ويل چي کرميه موږ خو دا ځای ټاکلی دئ چي نه به ځو اوس یې څنګه کوې؟

کرمي ور ته وويل چي زه نه پوهېږم ته به یې پخپله بند تړې.

فتح خان کرمي ته وويل چي ته ورسه ګرده ياران راټول که، چي سلا ورسره وکو، کرمی ولاړی پردل خان د فتح خان اخښی او نور ياران یې ټوله راوستله، فتح خان و يارانو ته وويل چي دا به څنګه سي؟ دا زموږ نيت او دا ګواريان (مغول) څنګه به یې کوو؟

ټولو يارانو یې وويل چي خوښه ستا ده، هر ډول چي یې کوې زموږ درسره خوښه ده، آبس فتح خان ور ته وويل چي بانې او چم خم نه دئ په کار، سهار ور ته وواياست چي د کلا څخه ټوله ګواريان ووزي، که نه وي بيا مو ګيله د ځانه ده.

خو شپه تېره سوه سهار سو کرمی راغی ګواريانو ته یې وويل چي تاسي به چټک نن د کلا څخه وزئ، کلا را ايله کئ، ګواريان هم ناعلاجه سوه کلا یې ور ايله کړه. ټوله ووتل پر يو دښت یې واړول، فتح خان دوی په کلا کي پاته سول. ګواريان سره راټول سوله راغله پر شمس الدين باچا یې عرض وکی، چي داسي يو شېربرېتی ځوان دئ او نور ډېر توريالي ځوانان هم ورسره دي موږ یې د کلا څخه په زور وايستلو کلا یې راڅخه ونيوله، دوی

---

[11] آخود، آبس، نو آخر، بس چي دئ، بس و غيره اکثره د جملې په اول کي د تکيه کلام پر ډول مستعمل سوي دي.

پکښې واړول.

باچا فکر یووړ، وروسته یې معلومات وکی، وپوهېدی چې هغه داسي غښتلي او تر سر تېر توریالي ځوانان دي چې په هیڅ بند نه دي، نو باچا فکر وکی چې د دې څخه به یوه لو شخړه جوړه سي، نو یې ګواریانو ته وویل چې پرې یې بړدئ مسافر دي، حق لري تاسي ته به بل ځای درکم، ګواریان یې راضي کړه، بل ځای یې ورکی، ګواریانو ته یې وویل چې تاسي به د دوی ډوډۍ کوئ، پخلا کوئ به یې. څو شپې باد ګواریانو د فتح خان دوی ډوډۍ وکړه، به روځ یې فتح خان دوی ډوډۍ وکړه، سره خوشحاله سوله.

یوه ورځ کرمي و ګواریانو ته ویل چې ستاسي څخه د کاله څو محصول او غم اخلي؟ ګواریانو ویل دوه دوه زره روپۍ د کاله غم راڅخه اخلي، کرمي ویل د دې پلا چې سپاهیان راسي، محصول اخلي ما خبر کئ، زه به مو ځني خلاص کم، دوی ویل ښه دئ.

بله ورځ و فتح خان ته همدغو ګواریانو وویل چې زموږ او د دغه بل کلي سره بدي ده، هغه مو هم سکه تربرونه دي، که ته دونه راسره وکې چې موږ او دغه کلی سره جوړ کې، چې بیا بد نه راسره کوي، ډېر به ښه سي، موږ به تر ابده ستا خدمتګاره یو. فتح خان ویل ښه دئ. دستي یې پر یارانو ږغ وکی آسان یې ځین کړه دا دئ و دې بل کلي ته راورسېدل، د کلي سپیانو پر را الا کړه ورته غاپي، کرم خان ناره پر وکړه :

سپي درتم کړئ ګواریانو لویه خدایه
پر دې لاري د فتح سپاهیان تېرېږي

نو خود ګواریان راغله سپي یې وشړل، چې دا مېړونه دي ډېر عزت یې وکی د هر یوه څخه یې جلا جلا آس ونیو، ټوله شپېته سره یاران کښته سوه، ګواریانو ډوډۍ ورته راوړه، ډوډۍ چې یې وخوړه فتح خان ورته وویل چې زموږ به یو ناز اخلئ.

ګواریانو ویل پر غبر ګولېمو ! هر څه چې وایاست موږ یې منو، فتح خان ورته وویل چې ستاسي او د دې کلي خو سره بدي ده، نو موږ ټوله په مرکه راغلي یو، تاسي به دوباره بیا بد نه سره کوئ، دوی ورسره قبوله کړه ویل یې ښه دئ.

وروسته فتح خان دوی را رخصت سول، کرمي فکر وکی چي که دغه ګواریان پر خپل قول ودرېده خو ښه او که ونه درېده بیا یې بد ورسره وکړه نو په موړ کي څه پاته سول، یه د دې خلکو عمري چاره په کار ده. نو خود کرمي د فتح خان په غلا د بېسدۍ دارو پیدا کړه بیر ته راغی و دې ګوارو ته یې وویل چي موږ او تاسي مجلس سره ونه کی، راسئ چي یو د مسافرۍ چلم سره ډک کو، وې څکوو، خو کرمي چلم ور ډک کی دا دارو یې پکښې واچول، لنډه دا چي ټولو ګواریانو چلم وڅکاوه، ټوله بېسده سوه.

کرمی پر راولاړ سو ټوله یې مړه کړه، وروسته په فتح خان دوی پسې راغی، نو یې پر فتح خان ناره وکړه :

ما یو داسي تړون وکی، لویه خدایه

لویه خدایه د قیامت تر ورځي پوري

چي یعني ما ټوله مړه کړه، ټوله ځني بېغمه سول. کرمي و ګواریو ته وویل چي ما داسي تړون وکی چي تر قیامته پوري ځني بېغمه سواست.

د فتح خان فکر خراب سو، مګر کرمي ته یې څه نه سوای ویلای، ډېر پر ګران و، ویل باره دغسي کار مه کوه. کرمي ویل له دې جهته مي مړه کړه چي ما ویل دوی به پر خپله وعده ونه درېږي، زموږ آب به کم کي.

خیر د هغه کلي ګواریان چي پاته وه، ولاړه پر شمس الدین باچا یې عرض وکی، چي داسي نکل دئ. باچا فکر وکی چي خبره او شخړه ډېرېږي نو یې خبره پټه واچوله و فتح خان ته یې خط راولېږی چي دغه شاوخوا مځکي یې ستا او محصول او غم هم در ایله دئ، خو دغسي باره مه کوه. "فتح خان ډېر باوجدانه سړی و، په ډېر شر نه و خوشحاله"، خو هیڅ جواب یې ور نه کی.

بله ورځ محصلان و ګواریو ته راغله غم ځني غواړي، ګواریان راغله کرمی یې خبر کی چي راسه هغه دي سپاهیان راغلي دي، څه جواب یې کوې؟

کرمی راغی توره یې راواخیستله درې کسه سپاهیان دي، دوه یې ځني مړه کړه، د یوه یې ژبه ور پرې کړه، نو یې ایله کی، هغه سپاهي ولاړی و شمس الدین باچا ته یې ګرهار دئ، خو څه نه سي ویلای، باچا یې په ژبه هم

نه پوهېږي چي څه وايي څه سوي دي.

لنډه دا چي نور درې کسه سپاهيان يې وګواريو ته د غم له پاره راولېږله، سپاهيان چي راغله، ګوارو بيا کرمی پسې خبر کی، کرمي بيا توره راواخيستله دوه يې ځني مړه کړه، يو په تاخت ځان ځني خلاص کی راغی پر باچا يې ناره وکړه :

دوري يو داسي باچا ناست دئ لويه خدايه
شمس الدين يې د نوکر پر ځای ولاړ دئ

باچا اريانی واخيست چي دا څه نکل دئ، سپاهي دا کيفيت او هغه دمخه حال ټوله ورته ووايه، خو باچا فکر يووړی، هيڅ څرک نه سي تر ايستلای، ږغ يې ونه کی چي پر کراره به يې چاره کوم.

دلته فتح خان خبر سو چي کرمي داسي کار بيا کړی دئ، کرمی يې راوغوښت ناره يې پر وکړه :

کرميه چي غم نه وي ته غم راوړې
کرميه پر لم غوټه سپرو واوړې

خو کرمي ته يې ډېر نصيحت وکی چي بله پلا داسي مه کوه.

بله ورځ د باچا خزانه تېرېږي، سره او سپين زر پر کچرو بار دي، ګوار راغله کرم خان يې خبر کی چي د باچا خزانه ده تېرېږي. کرمي د فتح خان په پټه توره راواخيسته راغی د خزانې پر کاروان يې ناره وکړه :

دا کاروان د شمس الدين په طلا بار دئ
دغه ټول د برېښانو برېښانو کوکی ښکار دئ

بيا کاروانيانو په جواب کي پر کرمي ناره وکړه :

دا کاروان چي د شمس الدين په طلا بار دئ
دغه ټول د برېښانو برېښانو خون بها ده

خو کرمي توره پسي راښنته کړه، هغه کسان چي د خزانې سره وه، مړه يې کړه چا ځني الا کړه، کرمي کچري راوستې ټوله يې زغم[۱۲] کړې، هغه

---

[۱۲] زغم–تم کول، پټول.

کسان چي د کرمي څخه يې الا[۱۳] کړي وه ورغله باچا ته يې عرض وکی، چي کچري او خزانه يې راڅخه وګرځوله، او زموږ ټوله سپاهيان يې مړه کړه، خورا بده ورځ ده. شمس الدين باچا دستي د شپې پوځ جوړ کی، ورته راوايې ستاوه، په دغه شپه پر دغه د فتح خان پر کلا يې شاوخوا سپيني خېمې ونجتلې، سهار سو، بي بي رابيا په مکڼ[۱۴]، کي شاوخوا ګوري، چي نابېره يې سترګي پر دې خېمو وموښتې، فکر يې وکی چي دا خو د پاچهی د جنګ سامان دئ او هم دي د شمس الدين باچا، دستي د بام څخه راکښته سوه راغله پر فتح خان يې ناره وکړه :

سر د سره پلنګه هسک کړه

نن څه نجتي د شمس الدين کافر[۱۵] خېمې دي

فتح خان چي راکښېنوست راغلی د خپلو يارانو سره يې سلا وکړه چي څنګه يې کوئ؟ تاسي جنګ کوئ که يه؟ ټولو وويل، چي موږ جنګ ورسره کوو، فتح خان هم حال ورکی چي شمس الدينه د جنګ ځای معلوم که.

خير د جنګ ځای يې سره وټاکی فتح خان سره د نه پنځوسو يارانو و جنګ ته جوړ سوه، په ډېر شوق شپېته ځوانان د بسته لښکر په جنګ ور ورواته، په جنګ ورکښېوتل د سپينو تورو خرپی دئ، فتح خان برېتونه تاو کړه جنګ او دا تورو خوند ورکی، ناره يې وکړه :

چي پر ډال پتري وهي نامت يې جنګ دئ

راپسې د زرغونو، زرغونو توتيانو سيل دئ

هله هله هله دوولس ورځي يې پرله پسې جنګ وکی.

آخر ته د شمس الدين لښکر ستړی سو، باچا حال و فتح خان ته وکی چي موږ او تاسي ستړي سولو، دا څلور شپې يې زموږ و ستاسي مهلت، بيا به

---

[۱۳] الا کړه : دويد.

[۱۴] مکڼ : دربچه.

[۱۵] ځيني خلک شمس الدين پاچا وايي او ځيني چي درد يې ورته راسي شمس الدين کافر وايي.

جنګ کوو. فتح خان هم ورسره خوښه کړه.
آخوند په دغه شپه ماښام کور ته راغله، رابیا ګوري چې برې یې راوړی که ماتې، فتح خان دوی چې ورننوتل رابیا پوښتنه ځني وکړه، چې برې مو راوړی که ماتې؟ فتح خان ناره وکړه:

رابیا تور دي لونګین سپین دي رخسار دئ
د شپېتو برېخو ږغ پر هندوستان دئ [16]

چې یعني شپېته سره ژوندي یو، برې دئ.
خو څه سر دي ګرځوم پنځمه روځ بیا فتح خان سره له نورو یارانو و جنګ ته راووتل، کرې روځ یې جنګ وکی آخر ته د پردل خان پر لاس د یوه دښمن توره برابره سوه په اوږه کي یې لاس ځني پرې کی، خو تر ماښامه یې جنګ وکی، هر څو چې یې دښمنان وژلي وه، وژلي به یې وي، خو ماښام کور ته راغله، رابیا چې ورته وکتل د پردل خان یو لاس دئ، نو یې پر فتح خان ناره وکړه:

که یکرنګ دي د فتح خان سپاهیان یرنګ دي
دا پردل لالا مي ولي خدایه ولي په یو څنګ دئ

لنډه دا چې شپه تېره سوه، سهار بیا جنګ ته ټوله وواته، ګرده ورځ یې جنګ وکی وکی، داسي د خرپ توري یې ووهلې چې د شمس الدین پر لښکر یې اوربل کی، مګر پردل خان په یوه لاس و ضعیف سوی هم و خو بیا ټپي سو، پردل خان کرمي په شا پوري ټینګ وتاړه آس یې په ځان پسي شاتوری تناو کی، ماښام کور ته راغله، رابیا چې د خپل ورور آس ولید، نو یې ناره وکړه:

خدای دي خیر کي فتح خانه کرم خانه
د پردل نیلی کوتل رامعلومېږي

خیر ماښام دئ پردل خان یې کښته کی، ټوله کښته سول یو ګړی چې وسو، پردل خان په عذاب سو، خو لنډه دا چې په دغه شپه شهید سو (خدای دې وبخښي). سهار بي بي رابیا وویل چې زه خپل مړی دباندي نه ښخوم، د

---

[16] نقلچیان په دې نقل کي دا ناره تر هري نارې وروسته د کسر پر ډول کوي.

دښمن ملک دئ دلې يې کور پر خپل پلنګ ايږدم، دوی هم ورسره خوښه کړه. نو يې د پردل خان نس څيري کی، شيان يې څني وکښله پاک يې پرېوی، نس يې د لونګو ورډک کی پر خپل پلنګ يې کښېښو، شال يې پر وغوړاوه، دلته شمس الدين باچا فکر وکی چې څه به کوم لښکر يې پايماله کی، خو منصبداران يې راټول کړه چې د دې پای يې څه؟

دوی ورته وويل چې بله چاره نه لرې ښېله دې چې ته مرکه ورواستوه، چې راسه صلح راسره وکه، هر څه چې غواړئ او هر څه شرط چې لرئ زه يې قبلوم، هر کله چې دوی ټوله راغله دستي به يې موږ لاسونه د ټولو وتړو، څکه فتح خان داسي سړی دئ چې هسي بربټونه يې څوک ووينی غړي يې ښويږي، زهره يې چوي. "وايي چې رشتيا چې د فتح خان داسي غټ لکه د زمري شک شک بربټونه وه چې په هسي ليدو يې د سړي زړه لوېدی، او د وامه څخه به يې نفس خوت"، له همدې لامله ده خپل بربټونه د سرو زرو په شپېلی کې اچولي وه، بل وخت به يې شپېلی نه څني کښله، څو د جنګ ميدان ته ور ګډ سو نو به يې شپېلی څني وکښله بربټونه به يې تاو کړه، نو په ميدان به ور ګډ سو. شمس الدين باچا مرکه ورته راوساتوله، چې زما درسره قسم دئ راسئ چې سوله سره وکو، هر څه چې غواړئ زه به يې درکوم.

مرکه چې راغله دا يې ورته وويله فتح خان ويل ښه دئ، تاسي ورځئ موږ به سبا درسو، مرکه ولاړه. کرمي و فتح خان ته وويل چې زمانه ده خوښه، زه سلا نه درکوم.

فتح خان ويل يه زه ورځم، کرمي ويل ښه دئ چې ورځې نو ياران راسره ووېشه، نيمي ته درسره بوزه، نيمي دي دلې زما سره وي. فتح خان ويل ښه دئ.

ياران يې سره ووېشل فتح خان سره له خپلو ملګرو ور رهي سو، چې فتح خان رهي کېده کرمي ناره پر وکړه :

فتح خانه باور مه کړه، د مغول په کلامونه
د مغول اول کلام پسې تېپونه

فتح خان سره له خپلو ملګرو راغلی، باچا ورته وويل چې که رښتيا

سولي ته راغلي ياست، نو د جنگ اسباب کښېږدئ. فتح خان دوی د جنگ اسباب کښېښووه، چي نژدې راغله باچا دستي پر سپاهيانو حکم وکی او ناره يې وکړه:

لاس يې وتړئ ځوانانو نوکرانو
فتح خان د پاچهانو گنهکار دئ

سپاهيان پر راوغورځېدله، د ټولو لاسونه يې وتړل دلته فتح خان ناره وکړه:

کرم خانه چي تا ويل هغه بيا وسوه
سره مغول خو مي د لاس پر لگېده سوه

هلته کرم خان هوښياري کړې وه، سم په فتح خان دوی پسې سره له نورو ملگرو راوتلی و، چي په دښمن باور نسته، دلته چي راورسېدی که گوري چي د فتح خان دوی لاسونه يې ور تړلي دي نو يې پر مغولو ناره وکړه:

اوس به جوړ کړم د مغولو پر سر ځلي
چي تړلي يې فتح خان نازک لاسونه

خو ټولو په مغولو پسي توري لښتي کړې، داسي چړ يې په گډ کړی چي گرده يې مړه کړه او هغه چي په ځغاسته يې ځان خلاصولای سو په تاخت ځني ولاړه، کرم خان د خپلو يارانو لاسونه ور خلاص کړه، کور ته سره را رهي سوله، راغله ماښام فتح خان وويل چي اوس يې نو نه پسي پرېږدو، څو يا گرده مړه نه سو يا پوره بری يو نه سو، ځکه چي دا منافقان دي داسي بې وفايي يې وکړه، پر قول و قسم و نه درېدل.

لنډه دا چي پس له دغه هره ورځ و جنگ ته ورتله، جنگ يې کاوه او يو يو به د دوی شخه ټپي کېدی، هغه به يې کور ته راوړی (وايي چي په جنگ کي د فتح خان د يارانو شخه يو نه دئ مړ، هره ورځ به يو يو ټپي کېدی هغه به يې کور ته راوړی کور به مړ سو، نو به يې نس ور ځيري کی د لونگو او نورو جاذبه شيانو به يې ور ډک کی نو به يې پر خپل شخصي پلنگ کښېښو، شال به يې پر وغوړاوه، هغه به وچ سو نه به ورستېدی).

لنډه دا چي ټوله په دغه ډول شهيدان سوله، يو فتح خان او کرم خان او

ځو کسه نور پاتـه سول، فتح خان ماښام و کرم خان تـه وویل چې سبا به داسې د خرپ جنګ کوو چې یا مړه سو یا سوبه او بری یوسو.

سهار چې د جنګ میدان تـه راغلـه، فتح خان شپیلۍ د برېښتو ځخه وکښلې، برېښتونه یې تاو کړه، نو یې توري پسې لښتي کړې، د ځو کسو مغولو سرونه یې پرې کړه، مګر مغول ښخي ډېر وه نه تمامېده نو فتح خان ناره پر وکړه :

هندوستان مې د مچیو ګریینی دئ

هر ځو چې یې وهم نه تمامېږي، د شپېتو برېځو ورځ په ورځ کمی دئ

لنډه دا چې هره ورځ یو یو کمېدی ځو ټوله شهیدان سوه، پر هم هغه ډول یې پر خپلو پلنګو کښېښوولـه، یوازي فتح خان او کرم خان پاتـه سوه.

په دې بله ورځ یوازي فتح خان و کرمی و جنګ تـه راووتـل، جنګ تـه یې پیل وکی، خو مغول پر ډېر سوه پر کرم خان راټول سوه، کرم خان یې وواهه زخمي او ټپي یې کی، کرم خان چې یې وواهه ده ناره وکړه :

که وخورئ دا د سر کسي مو وخورئ

که ما مړ کی دا زما بادار ژوندی دئ

چې یعني کـه مو زه ووهلم بادار مې ژوندی دئ، پـه سرو بـه مو مځکه ډکه کي، خو دی ولوېدی دلته فتح خان ناره پر وکړه :

آفرین کې پر دا هسې نوکر باندې

ځان یې واچاوه د دې بادار د وړاندې

خـو فـتح خـان پـه یـوه سـر د تـوري زور ورښکاره کـی، چـې کـرم خـان راځخه پاتـه نه سي، خو مغول یې د توري پـه زور سره تیت و پـرک کـړه کـرم خان یې پـه شا پسې وتاړه کور تـه یې راوړی، خو کرم خان هـم شهید سو، پـر هغه ډول یې پر خپل پالنګ کښېښو. ماښام دی و رابیا ناست دي، خو بیده سوه، سهار فتح خان سترې دئ بیده دئ، پر بي بي رابیا باندې پښتني جوش او د ملیت جذبې غلبه وکړه، نو یې پر فتح خان ناره وکړه :

سر د سره پالنګه هسک کړه فتح خانه

رابیا ګلې پنده ورتـه کړه سپره سوه

یعني یاران خـو ټـولـه مـړه سوه، نو مـوږ ځـه کـوو چـې ژونـدي یـو درځـه

جنګ ته زه هم درسره ځم، فتح خان چرت يووړ، رابيا بله ناره پر وکړه :

سر د سره پالنګه هسک کړه فتح خانه

رابيا ګلي پنده ورته کړه سپره سوه

يعني زه دا يم ولاړم اوس نو زه جنګ کوم راځه راپسې.

فتح خان دستي ملا وتړله توره يې راواخيستله، رابيا فکر وکی چي فتح خان يوازي دئ، دا دي څه بد کار وکی چي جنګ ته يې يوازي ور وباسم، خو پښېمانه سوه ناره يې پر وکړه :


PROPERTY OF ACKU 13892

زه عورته ملامته لويه خدايه

و جلو ته دي ولاړه يم روی داره

چي يعني يوازي يې، مه ځه بيا فتح خان ناره پر وکړه

که تتي د ګواريو سانګي تتي

يا مي خوريې يا مي موريې، ځو يې نه کړم پر دا سپينه سينه پڅي

خو را رهي سو، تر يو ځايه چي راغی بيا يې ناره پر رابيا وکړه:

که ښه که رابيا نجل که له ما ښه که

دا جنګي زغره دي مخي لره راوړي

رابيا فکر وکی چي ځي نه پاتېږي، نو يې ناره پر وکړه :

فتح مي يار، پردل مي ورور دئ

څوک چي داسي ياران وخوري هغه نجل که ښايسته وي مخ يې تور دئ

رابيا ويل په ماکي نو څه پاته سول، د شپېتو بېړخو څخه يو نه سو راپاته.

خير! خو فتح لکه زمری يوازي د جنګ ميدان ته راغلی، د جوشه يې ناره وکړه:

يو که بوتي هندوستان مي بوتي بوتي

په سپيتانه کي خلاص نه سي اوس راواړوه د سپينو چړو موتي

فتح خان دوې ورځې پرله پسې يوازي جنګ وکی، ډېر يې مړه کړه ماښام کور ته راغی، بله ورځ بيا جنګ ته ووت، يوازي دئ، د سپينو تورو خرپی دئ، فتح خان ته د بېکسی او يوازيتوب ارمان ودرېدی، نو يې ناره وکړه:

زمو ړ مرګ په سپينو تورو لويه خدايه
اسلم خان بابا مي ولي ناخبر دئ

دی خو په جنګ کي دئ، بي بي رابيا په کلا کي ده، فکر وهي چي دا وار به فتح فتح وکي که به يې ونه کي، نو يې ناره وکړه:

د فتح کرنګه نال به دي زرين کم
که دي دا وار فتح راوی، زما امېل به ستا د غاړي لونګين کم

فتح خان ماښام کور ته راغی، بي بي رابيا ولاړه سوه شاوخوا پر وګرځېده خپل امېل يې د غاړي څخه وکيښ، د فتح د نيلي په غاړه کي يې واچاوه، خو شپه تېره سوه سهار و فتح خان ته وطن ور په ياد سو، نو يې ناره وکړه:

که پاخه دي لويه خدايه د کندهار انار پاخه دي
اسلم خان بابا دې خوري پر ما ترخه دي

سهار بيا فتح خان جنګ ته ورووت، ستړی هم و خو تر غرمې يې جنګ وکی، د ماپښين و خوا ته تېي سو، خو دښمن يې په ځان نه کی پوه، مخ يې د کور پر خوا راونيو، کور ته چي راورسېدی، د کلا په منځ کي غوځار سو، په وينو کي لژند دئ، يو ګړی باد يې روح د خدای په رضا وسپاره، شهيد سو.

(خدای دې وبخښي)

رابيا راغله د ده نس يې هم ځيري کی پاک يې پرېوی د لونګو او نورو خوشبويی يې ور ډک کی پر خپل پلنګ يې کښېښو، د خپل سر شال يې پر وغوړاوه.

نو يې شمس الدين ته حال ور واستاوه، چي راسه اوس نو نارينه زمريان مو ټوله شهيدان سوه، موږ کونډي او يتيمان پاته سوو.

شمس الدين باچا راغی چي کلا ته ورننووت، ورغی هر يو يې پر پلنګ لکه نر زمری بيده وليد، ډېر افسوس يې وکی، چي د فتح خان پلنګ ته راغی شال يې ځني پورته کی، که ګوري په مړني د سړي روح ځني الوزي، برېتونه يې د سرو زرو په شپېلۍ کي نيولي دي، ډېر يې خوښ سو، نو يې د افسوس پر ډول ناره وکړه:

فتح بریت دي د سرو زرو په شپیلۍ کي
ته لایق د مرګي نه وې فتح خانه ته لایق وې د ډیلي د پاچهۍ
وروسته یې بي بي رابیا ته هغه وطن چي مغل کوټ یا امان کوټ ورته وايي وروباخښه، دلته بي بي رابیا ناره وکړه :
مغول کوټ به چا ورکړي و یتیمانو ته
دغه هم د فتح خان د توري چوټ دئ
شمس الدین باچا ولاړ، بي بي رابیا هلته خپل شهیدان ټوله ښخ کړه، هدیره یې پر جوړه کړه او د دوی نجوني او هلکان یې یو د بله په نکاح ورکړه، خپل ژوندون یې کاوه و بس !

## تبصره :

(۱) تر هري ناري وروسته دا ناري خلک کوي :
رابیا تور دي لونګین سپین دي رخسار دئ
د شپېتو برېخو ږغ پر هندوستان دئ
دا تر یوې ناري وروسته وايي او دا تر بلي ناري وروسته وايي :
د خدای شپې ورځي به وي یاران به نه وید کندهار بازار به وي سودا به نه وي
(۲) خلک دا نکل خورا په شرنګ کوي، ناري یې خورا اوږدې دي، مثلاً وايي :
که دوې دي دوې دي د کلابس کلابس دروازې دوې دي
پریوه مي فتح وزي پر دې بله یې د مور خدایه د مور سوي ناري دي
یا :
که دوې ای دي لویه خدایه کلابس، هوی هوی هوی یو که دوې دي کلابس، کلابس دروازې دوې دي، پریوه، ها مي فتح وزي، هوی هوی، هوی پر دا بله یې د مور خدا د مور سوي ناري دي.
بیا وايي :
رابیا تور دي لونګین لونګین سپین دي رخسار دئ، هوی هوی هوی
د شپېتو برېخو ږغ، خدایه ږغ پر هندوستان دئ
د نارو په منځ، په آخر کي وای وای – هوی هوی هوی یا وی وی د وزن او نغمې له پاره ورزیاتوي.

# ښادي او بيبو

تـه وا ښه !

چي وه دوه ورونه وه، د يوه نوم ولي محمد او د بل دا علي محمد و، چي په کندهار کي د بکوا د دل آرام د تلخک په کلي کي اوسېده. د ولي محمد يو زوی و، چي نوم يې "ښادي خان" و، او د علي محمد يوه لور وه، چي "بيبو" نومېده.

ښادي خان او بيبو دواړه کوچني دي، يو ځاى سره گرځي، يو ځاى لکه دوه ښه گلان بازی سره کوي، د دوی دواړو يو د بله په همدغه کوچنيوالي په زړو کي مينه سره پيدا سوه، او دواړه خورا ښايسته وه.

څه سر دي گرځوم هله هله څو دواړه ښه لوی سوه. يوه روځ ښادي او بيبو دواړه په کونډوکو پسې ځنگله ته تللي دي، په ځنگله کي کونډوکي تولوي، غرمه ده، پر بيبو باندي خوله راغلې ده، پر مخ يې لکه سپيني مرغلري دانه دانه خولې بهېږي، ښادي خان چي ورته وکتل ميني غلبه پر وکړه، دمخه يې هم د ميني اور په زړه کي و، دې کتلو يې هغه مخنی اور په زړه کي بل کی، خو د ميني اور دئ، د توانه يې ووتله د خولې جلو يې سست سو.

ښادي خان : بيبو جاني ! دا ستا سپينه مرغلره خولگی به يو وار نه کې را؟ چي زړه مي ستا د ميني په اور تور تلب وسو.

بيبو : لالکه ! زما خوله، بلکي ټوله ځان دي تر تا جار سي، مگر زه تا ته يوه خبره کوم که خوانه بدوې.

ښادي : ووايه څه وايې؟

بيبو : دا خو په اکثرو پښتنو کي تل وي چي کاکا خپله لور و وراره ته ورکوي، ته ماښام کاکا ته ووايه چي بيبو ما ته راوغواړه، نو ما به کاکا د پلار

ځخه در وغواړي، ستا ماینه به سم، هره شپه به زما خولګۍ اخلې، ځوک به بد او تهمت نه راباندي وايي.
ښادي : اې بیبو جاني ! ستا تر دغه پاک زړه جار سم، دونه اوږدې مودې مه ایږده، زما اوس ستا د میني ځخه زړه چوي، "آه ویې ژړل"، ته د سبا کارونه پرېږده خدای خبر سبا مړه یو که ژوندي؟ که مي اوس یو واري په سپینه خولګۍ موړ کې ډېر به ښه سي.
بیبو : ښادي جانه! ته خو ښه وایې زما زړه هم ستا د میني په اور کباب دئ، مګر دا دوولس کاله زه او ته جوړه سره ګرځېدو، یو ځای کښېنستو، یو ځای ولاړېدو، نه تا خوله غوښته او نه ما ځه ویل او د ټولو خلکو په زیاته بیا د کاکا دوی په سترګو کي لکه خور او ورور داسي ایسو، او اوس موږ داسي بد کار په پټه وکو، خامخا به اوستري ته رسوا سو، مور او پلار به مو را خبر سي، راځخه بېزاره به سي او په مرګ به مو خوښ سي، نو ښه دا ده چي ته صبر وکې، زه خوله نه در کومه او ناره یې پر وکړه:
چي دا ښادي هلک و ما یې تل اودې ځړې
اوس چي دا ښادي را لوی سو اوس له ما غواړي خولګۍ
ښادي چي دا خبره واروېده، اوه یې کړه د بیبو د میني د اور دودیې تر ککرۍ وخوت د ځانه سره یې ری وواهه، چي ما خو خوله ځني وغوښته را خو یې نه کړه نه بایده چي دا ورسي او مور و پلار ته ووايي، زه به شرمنده سم، تر دې شرمندګۍ نو دا ښه ده چي د وطنه ورک سم، او پر دغه مخ ولاړ سم، بس ځني رهي سو.
بیبو : ښادي جانه ! تر تا جار سم، دخیره چیري ځې؟ خوابدی سوې؟
ښادي : زه نو ځم زما ځخه دا وطن پاته دئ.
بیبو : ښادي جانه ! مه کوه مه ځه ! "ښادي خان یې تر لاس ونیو".
ښادي : یه ! ځم نه پاتېږم.
بیبو : ښادي جانه ! ته زما خبري ته غوږ ونیسه، زه به اوس خوله در کم، مګر سبا به مو رنګ بد سي، خدای د کراري مل دئ زه خو ستا یم، ته راځه چي کور ته سره ولاړ سو دستي په ماښام ته کاکا ته ووايې ما به در وغواړي، او پلار مي هم در کوي.

ښادي : بيبو جاني ! دا دونه عمر ما ستا ناز وړی، او ستا د رضا څخه نه يم وتلی او تـانـن زما د زړه مراد نه واخيست، خوله دي نه کړه را، او زما د توانه وتلې ده په زړه مي اور لګيږي، زياته صبر نه سم کولای، ښه دا ده چي د وطنه ورک سم، ګوندي څه د مسافرۍ او جلاوطنۍ خوارۍ رابانـدي تېري سي او په همدغو زحمتو مي د زړه لمبه څه سړه سي.

بيبـو : ښادي دغسي مه کوه (خو دا ورتـه ګـډه ده)، ښادي خـان لاس ځني کش کی، لاس يې د بيبو د لاسه وکښی او ځني رهي سو، مخ يې ورتـه راواړاوه چي زه اصـفهان تـه ځـم، زياتـه يې څـه ونـه ويـل، خـو د ځنګلـه چي راووت مخ پر کوی دز[1] باندي رهي سو او دغه غره ته نژدې يو کلی دئ چي دلارام ورته وايي. ښادي خان دې کلي ته راغی په دې کلي کي يوه لويه لار تېرېږي، په دغه لار کي يوه کاروان اړولي دي.

ښـادي خـان کـاروان تـه راغـی د کـاروان څښتـن تـه يې سلام واچاوه، کاروان باشي وعليک ورته ووايه د دغه کاروان باشي نوم تاج محمد خان و.

تاج محمد خان : سړيه نوم دي څه دئ؟

ښادي : ښادي.

تاج محمد خان : چيري ځې او په څه کار پسې يې؟ د کم ځای يې؟

ښادي جان : زه د بکوا يم او په نوکري پسي ګرځم. "ښادي جان خو ډېر ښه زلمی و د تاج محمد خوښ سو".

تـاج محمـد خـان : ښـه دئ زه بـه دي نـوکر کـم، راځـه زمـا سـره، زه د هندوستان يم، او اصفهان ته ځم، مال مي بار کړی دئ، خورا ښه بـه درسره کوم.

ښادي جان : ډېر ښه دئ، زه به دي هم ښه خدمت کوم.

خـو لنـډه دا چي ښـادي جـان د سوداګر سره و اصـفهان تـه رهي سو، "دوی نو پرېږده چي اصفهان ته ځي"، بيبو پسي راواخله.

ښادي خـان چي د بيبو څخه ولاړ، بيبو پر هغـه ځای پر مخي غوځاره سوه، يو ګړی پرته وه، خو راپورته سوه، "هر څونه چي يې ژړلي وي ژړلي به

---

[1] کوی دز يو لوی غر دئ د خاشرود د رود لمر لوېدو خوا ته.

يې وي"، شاوخوا يې وكتله ښادي جان نه و، ناچاره سوه را ولاړه سوه مخ د كور پر خوا را رهي سوه، خو تر څو غونډيو راواوښته، بېلتون زور پر وكى تر شا يې وكتل ناره يې وكړه :

خدايه د دې پوټې په آخوا دا بل پوټې په دې خوا زما او د ښادي وه سره ناسته – سپينه
خولګۍ يې له ما غوښته ور مي نكړه، زما ارمان سوې د ښادي او ستريه خواسته

خو هر څه چي پور ته كښته سوه، ښادي جان يې ونه ليد، ناچاره سوه كور ته راغله، پر مخ يې د بېلتون خاوري پرتې وې، ښه يې تكه ژړه ده، شونډان يې وچ كلك دي. مور يې پوښتنه څني وكړه چي بيبو جاني ولي دي داسي مخ سپېره او ښه دي الوتې ده؟

بيبو ناره پر وكړه :

ادې موري څه به درته وايم، زما مرګ په سنګرېزو درته روا دئ، ښادي جان مي
خولګۍ غوښته ور مي نه كړه، زما موري دی مي ولاړ و اصفهان ته

مور : بيبو جاني ! ښادي جان څنګه ولاړ؟ ته ښه بيان وكه.

بيبو : زه او ښادي جان سهار څنګله ته تللي وو، چي غرمه سوه ښادي جان راته وويل چي زړه مي ستا د ميني څخه چوي توان مي ورك دئ، كه يو وار ته دغه ستا خولګۍ راكې، زه به ستا تر ابده پوري مريې يم.

"ادې جاني ! زما دي خوله د لحد د خاورو ډكه سي !" ما خوله ور نه كړه او بد مي ورته وويل، دی مرور سو، وې ويل چي زما څخه نو دا وطن پاته دئ، و اصفهان ته ځم، خو ما بيا ډېري زارۍ ورته وكړې، دی نه پاتېدی راڅخه رهي سو. "اوه، آه څه وكم؟ زما عمر يې په دار كی، عشق دئ نه پټېږي"، پر مور يې ناره وكړه :

موركۍ ورسه بابك خبر كه زړه مي ډوبېږي او ر رالګېږي
ښادي جان ورك سو نه راستنېږي چي ښادي نه وي دلته ژوند هيڅ نه دئ بيبو ته

مور يې راغله پلار او اكا او نور خپلوان يې خبر كړه، چي ښادي ولاړی ورك سو، او بيبو بېسده پر ته ده نژدې ده چي زړه يې وچوي، خو دا نكل يې ټوله ورته وكی چي داسي ... داسي ...

پلار او اكا چي يې راغله، كه ګوري بيبو تكه ژړه ښه الوتې لاس و پښه پر ته ده، "د پلار يوه لور وه، زړه يې پر تور دود سو"، دستي يې سرې شاوخوا

ولېږل چي ګوندي نژدې يې يو ځای څرک معلوم کي، "د دوی په خيال کي دا و چي دلې به يو ځای وي"، سړي چي هر څه پسي وګرځېده پيدا يې نه کی.

د بيبو چي هيله د ښادي خان څخه وختله، دغسي سر ګومه پرېوتله، لکه ژړبت تنه يې سته، بړغ يې نسته.

په دغه بله ورځ يو سړی راغی وې ويل چي ښادي خان ما وليدی د بکوا د دښت پر لو لار د کريکنښ سره رهي سوی و تلی. بيبو چي دا خبره واروېدله ناره يې وکړه :

د بيبو د اريانيه د کريکنښ د خوشاليه

که به ناز د بيبو اخلې په دنيا کي کريکنښ مه کې د روزي

دا ناره يې وکړه بير ته هغسي بېسده پرېوتله.

د مور و د پلار دغه يوه لور ده، هغه هم بېسده پر ته ده هيڅ بړغ و بړوغ نه کوي، روځ په روځ يې ځان ويلېږي، تکه ژړه او تار و نار سوله، مور و پلار يې خورا ورسره اوګاره دي، خو هيڅ چاره يې نه کېږي.

يوه روځ يې مور راغله د بيبو و سر تـه کښېنستله، بړغ يې پر وکی چي بيبوګلي ! سر راپورته که، تـه ورسه وګوره، د دلارام پر لار يو لوی کاروان تېرېږي چي ښادي ورسره سته که نسته؟

بيبو چي دا خبره واروېده دغسي راپورتـه سوه، ژر را ولاړه سوله راغلـه د دلارام د لاري سره پر يو لو غونډۍ کښېنستله، يو لوی کاروان تېرېږي، دا ورتـه ګوري څو ټوله کاروان تېر سو، ښادي خان نه و ورسره، نه يې وليـد، دلتـه لا بېلتـون زور پر وکی نو يې ناره وکړه، "څـه بـه يې ويلي وي وابـه يې روې"[۲]:

کاروانونه د بکوا پر دښت تېرېږي – کاروانونه د بکوا پر دښت تېرېږي

ښادي جان ورسره نسته، په دا نور کاروان مي مينه نه ماتېږي

زما ارمان ښادي مي بايلو

[۲] دا په نقلچيانو کي قانون دئ چي نکل کوي يو له سامعانو څخه شپانه کي چي يعني دا شپانه و نکل چي ته ښه ښه او هو هو لري، هر کله چي نقلچي د نکل ناره کوي، شپانه ورتـه وايي څه به يې ويلي وي؟ نقلچي وايي، وابه يې روې.

نو هغه و، چي بير ته کور ته راغله، هغسي بېسده پرېوته، هيڅ بږغ نه کوي نه د چا سره خبري کوي. "څه سر دي ګرځوم" په دې منځ کي ډېر کلونه تېر سوه، د ښادي جان هيڅ درک و خرک نه معلومېږي.

يوه ورځ د اصفهان څخه ښادي جان يو خط وليکی د يوه سړي په لاس يې و خپل پلار ته راولېږی. سړي خط راوړ د ښادي پلار ته يې ورکی. د ښادي پلار راغی پر بيبو يې زېری وکی چي "زېری مي درباندي د ښادي خط راغی"، بيبو دغسي راوغورځېده، يو نوی روح په ننووت، ورته وې ويل چي کمه دئ؟ پلار يې خط د جيب څخه راوکيښ، خلاص يې کی د خط په سر کي يې دا ناره ليکلې وه:

کاغذه ورسه پر بيبو مي سلام وايه، په صورت روغ يم په زړه بيمار يم
بيبو ستا د بې نيازيه، د بې نيازی دا ژړی ښادي بندي د اصفهان دئ

نور يې نو خپل پلار، اکا او نورو خواخوږو ته سلام ليکلی و، او د خط په اوستري کې ليکلي وه، چي اوس ما خورا ډېري روپی ګټلي دي، پخپله سوداګر يم، د يوه ښار څخه و بل ښار ته مال وړم او راوړم او ځای مي په اصفهان کي دئ او بل دا چي زما څخه هيله وشلوئ، زه بيانه درځم او که بابا دونه وکي چي يو واري راسي او زما ځای ووينې او زه دی ووينم ډېر به ښه سي.

د ښادي خان پلار هم دستي ولاړ سو، د خپل سفر کاروبار يې سم کی، ډېر خوشحاله دئ، په دې ترځ کي چي د ښادي پلار رهي کېدی بيبو کاغذ وليکی راېې وړ د ښادي جان پر پلار يې ناره وکړه:

کاکا چي ځې کاغذ مي يوسه، ښادي له يې وروړه ورته وايه
بيبو پرته ده تر زړه يې څاخي، ستا د ښلتون ويني زما ارمان سوي

نو هغه و چي بيبو ډېره ښتابه وه، دغسي کورنځی[٣] يې پر ميدان وهلې چي دغه کاغذ مي يوسه، يا ما هم در سره بوزه. خو د ښادي پلار و بيبو ته د زړه ډاډ ورکی چي زه خامخا په هر ډول چي وي ښادي خان راولم نه يې پرېږدم.

---

[٣] د ډېره غمه تيپېدل او په ژړا پر مځکه ګرځېدل.

بیبو یې پر آرامه کړه، د ښادي پلار رهي سو، هله هله څو روځې وروسته و اصفهان ته راورسېدی، پوښتنه پر پوښتنه یې د ښادي جان د ځای څر ک وایست، راغی یوه ښه مانۍ یې ولیدله، یو سړی یې په درګاه کې ولاړ دئ، پوښتنه یې ځني وکړه چې د ښادي خان ځای چیري دئ؟

سړی : ته څوک یې او څه کوې؟

د ښادي پلار : زه د ښادي خان پلار یم، د بکوا څخه په ده پسې راغلی یم، سړی ورغی پر ښادي خان یې زېری وکی چې پلار دي راغلی!

ښادي خان دستي د مانۍ څخه راکښته سو، راووت چې پلار یې ولید دغسي په پښو کي ور پرېووت، پلار راپورته کی په غېږ پوري یې ونیو، نو یې یو ګړی سره وژړل وژړل ...

"هر څونه چې یې ژړلي وه، هغونه به یې ژړلي وي".

وروسته ښادي خان پلار تر لاس ونیو و مانۍ ته یې وخېژاوه، و خپل ځای ته یې وروست، سره کښېنستل د جوړ او روغ پوښتنه یې وکړه. یو څو ورځي چي تېري سوې، پلار یې د سفر د ستړیا څخه هوسا سو، نو یوه روځ د ښادي خان پلار و ښادي خان ته وویل چې : زویه ښادي جانه ! درځه چي خپل کور او خپل وطن ته سره ولاړ سو، خامخا دوست او دښمن لرو، راباندي خاندي به چي زوی او پلار دواړه د بې ننګۍ څخه د خپل وطنه ورک سوه، نو یه دا ښه کار نه دئ چي دلې اوسو.

ښادي جان : بابا جانه ! زړه مي نه غواړي چي زه ولاړ سم.

پلار : ولي زویکه!

ښادي جان : بابا جانه ! زه د کاکا څخه ډېر شرمېږم، نه سم پر مخ ورتلای.

پلار : زویه ! ستا کاکا خو ستا د بېلتون څخه لېونی دئ، که ور نه سې نو خامخا به دی درپسې راسي.

ښادي : بابا صاحب ! تا ته څه نه سم ویلای، مګر ناچاره یم چي در ته ووایم.

پلار : ووایه زویه ! مه شرمېږه چي هر څه ته وایې چي زما او د کاکا په وس وسي وبه یې کو.

ښادي جان : زه وطن او کور ته نه سم درسره تلای، ځکه چي په کور کي زما ښادي ښادي نسته، تا ته هم معلومه ده چي زه ولي د کوره را ورک يم.

پلار : ښادي جانه! ما ته معلومه ده چي ته پر بيبو د کوره څخه ورک يې، مګر بيبو جانه خو د وخته لا کاکاو تا ته درکړې ده او بيبو هم ستا د غمه لېوني ده، نو که ته نه سې ور، خامخا به مړه سي.

ښادي جان چي دا خبره واروېده د ډېري خوشحالۍ باغ باغ سو، لکه ګل سره وغوړېدی، وې ويل چي بابا ښه دئ.

آخود، ښادي جان دوه ښه آسان رانيول، د سفر څوري يې برابر کی، په دا بله روځ مخ پر دلارام را رهي سول، پر يوه آس ښادي سپور سو، پر يوه آس يې پلار سپور سو، چي د اصفهان څخه راووتل پر ښادي جان د بيبو ميني غلبه وکړه، ناره يې وکړه :

نن مي د يار پر لور سفر دئ–نن مي د يار پر لور سفر دئ
خدايه که لنډ کې دا د بکوا "وی" دا د بکوا اوږده مزلونه

"څه سر دي ګرځوم"، هله هله هله مزل پر مزل مزل پر مزل دا دي و فراه ته راورسېده، دلته د ښادي خان بادار تاج محمد خان سوداګر د هندوستان د خوا را رهي سوی دئ، په فراه کي په مخه سره ورغله يو ځای يې شپه سوه.

چي سهار سو تاج محمد خان و ښادي جان ته وويل چي زما د يو نيم لکو روپو سندونه کور پاته سوي دي، ته به چابک د دغه مخه هندوستان ته ځې هغه سندونه به زموږ د کوره راوړې او بيا به بله پلا و خپل کور ته څو شپې ولاړ سې. ښادي خان ويل ښه دئ.

خو دستي ښادي خان د پلار څخه رادمخه سو، پلار يې ورته وويل چي پر دغه مخ يواري کور ته ورسه چي هغه خپلوان او مور وويني بيا به بير ته رهي سې، سندونه به راوړې.

ښادي خان ويل ښه دئ، ته به کرار کرار پسي راځې زه نو ولاړم، خو خپل آس يې پونده کی په يوه تاخت ماپښين ته کور ته راغی، نو د کور په دروازه کي ودرېدی، ور ږغ يې کړه چي دا د چا کور دئ؟

نو د بيبو مور ور ته راووته وې ویل چي دا د ښادي خان کور دئ.

"د بيبو مور ښادي خان نه پيژني ځکه چي په دې مابين کي ډېر عمر تېر سوی دئ، او ښادي خان يې پيژني".

د بيبو مور : سړيه ! ته څوک يې؟ د کومه راځې؟

ښادي : زه مسافر يم، او خورا د ليري ځای څخه راځم، ډېر ستړی يم که څوک وي چي يو چلم راته راوړي چي وې څکوم.

"د بيبو د مور څه شک په رسېږي په زړه کي وايي چي د دې مسافر رنګ خو دغسي دئ لکه د ښادي خان".

د بيبو مور کور ته ننوته، بيبو پر ته ده، بل څوک نسته پر بيبو يې ږغ وکی، چي بيبو جاني ! بيبو جاني !

کښېنه په دروازه کي يو ښه ځوان مسافر دئ، پر آس سپور دئ، خوار ستړی دئ، او رنګ يې کټ مټ لکه د ښادي خان داسي دئ. يو چلم غواړي که يواري دا چلم ور ډک کې، ثواب به دي سي، ځکه چي دی هم دغسي مسافر جلا وطنه دئ لکه ښادي خان.

بيبو چي دا ږغ واروېدی، دغسي لکه هوسۍ راوغورځېده دستي يې چلم واخيست ښه يې تازه کی او ښه يې ډک کی، سر کول[۴] يې راواخيست راغله نغري ته چي اور پر کښېږدي، خو ګوتي يې نازکي دي چي سکروټه واخلي ګوتي يې وسوځل سي بير ته ځني ولوېږي.

خو اوستري ته يې د ښادي د ميني تر اور پوري دا اور هيڅ نه وباله، سکروټي ته يې ور امله کړه.

"څه د ښادي د ميني اور و، څه دا اور و".

خو ګوتي يې وسوځلې "اله وی" يې کړه، چي اوه ګوتي مي وسوځلې، ښادي خان په دروازه کي دغه د دې "اله وی" او اوه ږغ واروېده، نو يې ناره پر وکړه :

که ورو ځي بيبو جانه په څه شان په کرشمو ځي
د يوه ښادي له پاره بخملي ګوتي سيځي پر چلم اور ږدي

---

[۴] سر خانه چلم.

بیبو چي دا ناره واروېده وپوهېده چي خدای ږو ښادي جان دئ خو د ډېري خوشحالۍ په سرای کي پرله وځرخېده.

"د ښادي جان ږغ نه و بلکي د بیبو جاني د زړه مهلم و، چي د بیبو پر زړه ولګېدی"، د هغه ځایه یې پر ښادي جان ناره وکړه :

چلم به ډک کړم د لونګو، دا ژړی پېزوان به پاس پر چلم کښېږدم

نو به یو سم دا چلم او سپینه خوله به د ښادي و مخ ته کښېږدم

خو چلم یې چابک لکه د هوا کوتره راواخیست ښادي جان ته یې راوړ، په همدغه دروازه کي ښادي او بیبو دواړه لکه نل او پیروتی سره لاس تر غاړه سول.

دواړو یو ګړی سره وژړل وژړل وروسته کور ته سره ننواته، په کور کي خوشحالي سوه، د اختر ورځ ده.

څه سر دي ګرځوم سره کښېنستل، پوښتنه ګروېږنه یې سره وکړه، ماښام سو ښادي خان خوشحاله دئ چي بیبو خو یې راکړې ده، اوس به یې راولي، اوس به یې راولي، ګوري بیبو نه راغله، نه چا ورته راوسته.

"د ښادي په زړه کي دغسي سوی لاس ګرځي" چي ولي بیبو نه راغله زړه یې ډېر بد سو بیا یې رهی وواهه، چي دا لومړی شپه ده ګوندي سبا ماښام به یې راولي، خو په هر ډول چي وي بیده سو.

لنډه دا چي سبا سو پلار یې هم راورسېدی، "د ښادي د یوې خوا د هغه سندو تلوار دئ، بادار یې ډېر ښه ورسره کړي دي، چي خوابدی نه سي او د بلي خوا یې دلته زړه ګرو دئ، زړه یې نه ځي".

بیا ماښام سو ډوډۍ یې وخوړله، هم هغسي په هیله ناست دئ چي نن شپه خو به بیبو جانه راولي.

"بیبو جانه چیري ده ! دید یې په اوو کوټو کي نه کېږي، کاکا یې نه ورپرېږدي او نه یې ورښکاره کوي، خو بیا یې شپه په یوه چم تېره کړه"، چي هر ډول شپه پر تېره سوې وي هغسي به پر تېره سوې وه، چي سهار سو و پلار ته یې وویل چي بابا !

تا خو ویل چي کاکا دي بیبو در کړې ده، زه دي داسي خطا ایستم ! یه ! اوس نو ځم، بیا به تر مرګه پوري زما دید ونه کې.

پلار : ژویکه ! ته خوا مه بدوه، اوس به یې در وغواړم، او کاکا دي هم ویلي دي چې زما لور د ښادي خان ده.

ښادي : باباجانه ! بس، دا وار مي نه سې خطا ایستلای. که تاسي راغوښتای خو دمخه به مو راغوښتې وای. اوس نو ځم نه پاتېږم.

مور : ښادي جانه ستا تر سترګو دي وګرځم. ته پاته سه، په هر چم چې وي بیبو جانه در غواړو.

ښادي : یه ! ادې نه پاتېږم ځم !

خو ښادي جان ورغی خپل آس یې ځین کی، مور و پلار یې ډېري زارۍ و جګۍ او بلغاکي ورته وکړې چې پاته سه مه ځه خو ښادي ویل : یه، ځم.

هغه وچې مور یې ورغله بیبو یې خبره کړه چې ښادي ځي نه پاتېږي زموږ په قول نه کوي ته راسه ورتهووایه ښایي چې ستا په ویلو پاته سي، بیبو چې دا خبره واورېده پر ککرۍ یې اور بل سو دغسي یې را الا کړه، چې دا رارسېده ښادي جان پر آس پښه واړول سپور سو، نو یې پر بیبو ناره وکړه:

یو آس مي زین ملا مي تړلې – یو آس مي زین ملا مي تړلې

بیبو راووزه چې دا ژړې ښادي مي ځي وی د هند ولات ته

نو بیبو راغله آس یې تر جلو ټینګ ونیو، ورته وې ژړله چې پاته سه، ده ویل نه پاتېږم ځم.

بیبو : ښادي جانه ! مه کوه دغسي پاته سه، مه ځه هر څه چې ته وایې زه یې قبلوم، که دي زما خوله په کار ده خو اوس به یې درکم.

ښادي : یه ! بیبو جاني ! دا د بې ننګۍ ژوندون زه نه کوم. دلته ستا مینه اور دئ چې ما سوځي تر دې دغه ښه دئ چې سترګي مي الونیا وي نو بیبو لاس ور وغځاوه په غاړه کي یې ور واچاوه، دی هم باندي راکوز سو په غاړه کي یې لاس ور واچاوه، وې ژړل نو بیبو ناره پر وکړه :

ښادي جان ګرځوم نه پاته کېږي – ښادي جان ګرځوم نه پاته کېږي

سپینه خولګۍ که ورکوم، ښایسته ښادي مي هم نه راضي کېږي

خو بیا بیبو ډېري زارۍ ورته وکړې چې مه کوه مه ځه، ښادي ورته

ویل چي نه پاتېږم، ځم.

نو بیا پر ښادي جان بیبو ناره وکړه :

یو د ختمو یو د ختو څلی جوړ که ښادي جانه مخ و ما ته شا و تا ته

هر وخت چي را په یاد سې، چي ستا مینه کم په ما ته

نو ښادي یو د ختمو څلی ورته جوړ کی[۵]، دی ځني رخصت سو مخ د هندوستان پر خوا رهي سو.

بیبو څه کوي؟ هان !

بیبو جانه به څنګه وي؟ اوه !

د بیبو په زړه به یو الله خبر وي، چي عمر یې څنګه تېراوه؟

ښادي خان چي د بیبو څخه رهي سو پر بیبو جاني ملک سور اور سو خوب و خوراک ځني پاته سو، بیر ته هم هغسي یې ښه ژړه، شونډان یې وچ کلک سوه، د چا سره یي خبري نه کولې، مګر دونه قدر و چي د ښادي جان مینه یې په هغه د ختمو په څلي ماتوله، او هر سهار به یې زیارت کاوه، ښادي جان څه سو؟ هان !

ښادي چي د دغه ځایه را رهي سو هله هله برابر راغی کوټي "کویټه" ته د کوټي په ښار کي د تاج محمد خان د ورور بازمحمد خان کور دئ، د دې بازمحمد کره راغی. بازمحمد روغبړ ورسره وکی نو یې پوښتنه ځني وکړه چي څنګه راغلې؟

ښادي خان : د تاج محمد خان په سندو پسي چي کور ځني پاته سوي دي.

---

[۵] ځیني وایي چي ښادي خان څلی جوړ نه کی، دغسي ځني ولاړ او ډېر وګړي وایي چي د ځان غوندي یو د ختمو څلی یې ور جوړ کی، نو ځني ولاړ.

او زما په خیال هم دا ده چي د ختمو څلی یې ورته جوړ کړی دئ، ځکه چي د دې بیت څخه د شاعر هم معلومېږي چي ویلي یې دي :-

ډېر ارمان ما ویلي – یار دي دلې شو و ګلي

جوړ کړه بیبو ښادي څلي – ځي په کاروان راسه راسه، الخ

(تولوونکی)

بازمحمد خان : ډېر ښه يو څو ورځي زموږ کره پاتـه سه، ستړيا به واچوې بيا به سندونه واخلې ولاړ به سې.

ښادي خان : يه، صاحبه ! سلامت اوسې زه ځم تاج محمد خان ويل ژر به يې راوړې.

بازمحمد خان : يه، خامخا به پاتېږې، نه دي پرېږدم چي ولاړ سې، لنډه دا چي ښادي جان يې وګرځاوه.

د دې باز محمد خان يوه پېغله لور وه نوم يې (شېرينه) و، يو وخت ښادي جان يوازي په سراچه کي ناست دئ، ځوني يې پر مخ ايله کړي دي ږمنځوي يې، فکر يې نسته، يو وار نابېره شېرين جانه ور ننوتله، کالي يې ټولوله، د دې خيال دا و چي څوک نسته.

ښادي خان لکه د لمر وړانګه چي په خونه کي رالوېدلې وي ناست و.

شېرين جاني چي داسي ورتـه وکتل کـه ګوري يـو زلمی لکـه څـراغ ناست دئ، شېرين جاني زړه پر بايلو، پر مينه سوله.

شېرين جانه : ښادي جانه ! زما خو ستا د ميني څخه د زړه ولي غوټي پرې سوې، څه کوې؟

ښادي جان : شېرين جاني ! ستا تر دغه خوږو خبرو جار سم. ستا پر خبرو مي د بيبو جاني مابت راځي، مګر ته او هغه؟

شېرين جانه : ګله ! ستا تر دغه غټو سترګو جار سم، زما پای يې څه؟ زه خو تا نه پرېږدم زما زړه خو اوس ستا د تورو ځونو په الغه کښېووت. "آه" (اوه) زه بې تا ژوندون کولای سم؟ ډېر ګران دئ.

ښادي جان : شېرين جاني ! دا خبري مه کوه تا په دنيا کي ليدلي دي چي دوه مين دي په ديدن سره ماړه سوي وي؟

شېرين جانه : ته دا خبري پرېږده، دنيا دم همي دم ده، څنګه؟ هان !

ښادي جان : شېرين جاني ! زه خو ستاسي نمک خور يم، او تـه مي ديني خور يې، زه مسافر سړی يم، يوه ورځ به ذلې يم يا به نه يم زما او ستا؟

شېرين جانه : زما خو هم ستا د ميني په اور زړه سوځل کېږي، توان مي نسته نو زما پای يې څه؟

ښادي جان : شېرين جاني ! کـه تـه ښـه کـوې، ورځـه ووزه، اوس بـه

څوک راباندي راسي نوم به مو ناحقه بد سي.

شېرين جانه : ښادي جانه ! زما خو د واکه وتلې ده، چي دلته اوس زما د ميني پر اور ته څه سړې اوبه توی نه کې نه کېږي.

ښادي جان : شېرين جاني ! مه کوه دا ډېر بي مناسبه کار دئ.

شېرين جانه : ښادي ګله ! زما زړه نه صبرېږي، زما د واکه څخه تېره ده، هر څه چي پېښېږي نه در څخه ځم.

ښادي جان فکر وکی چي دا نجلۍ مي اوس دستي رسوا کوي، نه مي پرېږدي نو يې ورته وويل : شېرين جاني ! ته اوس ورځه ولاړه سه، ماښام چي تورتوله بيده سي نو زه به د کلا تر دېواله در واوړم، نو به سره يو ځای سو.

شېرين جاني ورته ويل ښه دئ، زه به وابښکی در وځړوم ته به پر راوخېژې.

ښادي خان ورته ويل چي ډېر ښه دئ.

هغه وچي شېرين جانه ځني ووتله، ماښام چي باز محمد خان کور ته راغلی ښادي ورته وويل : بازمحمد خانه ! ما رخصت که چي ولاړ سم، او تاج محمد خان به هم زما و خوا ته ډېر ګوري، چي زه يې سندونه ور ورسوم، او چي خپل کور هم ډېر کارونه لرم.

بازمحمد خان : ډېر ښه دئ ! زه به سبا د لالا کره ولاړ سم، هغه سندونه به د لالا د کوره راووړم نو به دي رخصت کم.

ښادي : بازمحمد خانه زه هم درسره ځم.

د ښادي جان غرض دا و، چي د شېرين جاني څخه يې ځان خلاصاوه.

بازمحمد خان : يه ! زه يوازي ښه دئ چي ولاړ سم د لالا زامن په کور کي يو څه ستر کوي، بيا خوابدي نه سي.

لنډه دا چي سهار وختي بازمحمد خان سپور سو، د لالا کره ولاړ، ښادي خان فکر وکی چي يوازي پاته سوم ! بازمحمد خان هم ولاړ، اوس به بيا شېرينه راووزي. خو دی په دغه فکر کي و چي شېرين جانه راغله ښه ډوډۍ يې تياره کړې وه (هان ! د مين خواړه دي، نو ته وا څنګه به وه؟)، ډوډۍ يې راوړه ښادي خان ته يې کښېښوول، نو يې ورته وويل :

ښادي خانه ! برايي خو نه راغلې، بې قوله سوې، ولي؟

ښادي خان : شېرين جاني ! زه بې قوله سوی نه يم، خو بازمحمد خان دلې و، نن شپه به ګورو.

شېرين جانه : يه ! اوس څوک نسته، ته دا ډوډۍ ژر وخوره نو به د خپل زړه اور سره سوړ کو.

ښادي جان : ډېر ښه دئ. خو مګر ما اودس نه دئ تازه کړی او نه مي لمونځ کړی دئ، ته دالته کښېنه ډوډۍ پټه که زه به يو وار مسجد ته ورسم لمونځ به وکم بيا به ژر راسم.

شېرين جانه : ډېر ښه دئ.

ښادي جان څني راووت، ولاړی ولې ته اودس يې تازه کی، راغی مسجد ته دوه رکعته نفل يې وکړه لاس يې پورته کی چي خدايه ! زما په زړه کي خو يوازي د بيبو جاني مينه ده، د بل چا مينه خو نه پکښې ځايېږي. د دې بلا څخه مي ژر خلاص کې، نو هلته په مسجد کي پسي پرېوتی.

شېرين جانه هلته ناسته ده، ګوري، چي اوس به راسي اوس به راسي، رانه غی اوستري ته يې د توانه ووته، د کلا و بام ته وختـه شاوخوا يې وکتل ښادي جان يې ونه ليد، د ځان سره يې وويل چي هغه خدای خبر پر کومه تللی وي، خو هيله يې څني وختـه، دالته پر بام کښېنسته سر يې وغوړاوه، پرې يې ولی بيا يې د توانه ووته، راولاړه سوه د کلا د بام تر دېواله لاندي يې وکتله "مسجد په کلا پوري او د کلا او د مسجد دېوال يو و".

ښادي جان د دېوال و ګيرو ته پروت دئ، شېرين جاني وليد، ږغ يې نه سوای ورکولای، چي څوک به يې واروي. نو يې د خپلو کوڅيو اوبه يو دوه درې ځاځکي پر مخ ور وڅڅولې، ښادي جان ورتـه وکتل شېرينه پر بام ولاړه ده، خو هيڅ ری يې نه پکښې وواهه. خو ښادي جان ورتـه ګوري، د شېرين جاني بيا يو کاغذ په لاس کي دئ، کتوي يې غواړي چي پر ښادي يې راوغورځوي.

ښادي جان ناره پر وکړه :

پر بام ولاړې نجوني چي کاغذ په ګوتو نغاړې

زړه مي يو دئ بيبو وړی، دا بالا مېرمني څه د ښادي غواړې

شېرين جاني فکر وکی چي دا سړی دي ناحقه زهير کی، معلومه دا ده

چي د ده زړه بيبو وړی دئ، په ما سر نه کښته کوي او نه ياري راسره کوي، زياته يې غرض په ونه کی پرې يې ښود.

ښادي خان گرده ورځ په مسجد کي تېره کړه، ماښام ته بازمحمد خان راغی د ښادي خان پوښتنه يې وکړ د چي ښادي خان چيري دئ؟ ښځو ورته وويل چي هلک مو پسي واستاوه په مسجد کي و، وهلک ته يې ويلي وه چي زه ناجوړه يم، ډوډی نه خورم، نو موږ هم زياتي سره په ونه گرځاوه.

نو بازمحمد مسجد ته پسي ورغی ورته وې ويل :

ښادي خانه ! ولي دي غرمه ډوډی نه ده خوړلې؟

ښادي خان : چي ته ولاړې زما دستي پر زړه درد سو، په سراچه کي مي توان نه سوای کولای نو راغلم مسجد ته دلته پرېوتم او اوس خاشکي ښه سوم.

نو هغه و چي بازمحمد خان دی کور ته بوت، ماښام شپه تېره سوه سهار وختي يې سندونه ورکړه رخصت يې کی.

ښادي خان د کوټي څخه را رهي سو، هله هله هله څو و گرش ته راورسېدی، شپه يې تېره کړه.

"د خدای کارونه دي" په دغه شپه يې تبه سوه، يوه بله شپه هم دالته پروت و، په دريمه ورځ ناچاره سو را رهي سو خو تبه يې زياته سوله ناجوړی زور پر وکی، خو هله هله هله د زړه په زور يې دغه لنډه مځکه په لس ورځي پرې کړه، څو د نس په خوړو دلارام ته ورسېدی، دلته نو د حرکته ولوېدی پر آس يې ځان نه سوای تکيه کولای، د آس څخه کښته سو شاوخوا يې وکتل هيڅوک نسته، گرمي هم ده د پښو د ترپه ولوېدی، دالته يوه زړه کنډواله وه و دې کنډوالې ته په زحمت ننووت، آس يې هم وړی تږی دالته ورته وتاړه، لنډه دا چي بې خدايه هيڅوک نه دي په خبر، درې شپې درې روځي په دغه کنډواله کي پروت و.

څلورمه ورځ نابېره يو سړی و دې کنډوالې ته راغی، ښادي خان چي دا سړی وليد، ناره يې پر وکړه :

اصفهان نصف جهان دئ - اصفهان نصف جهان دئ

لويه خدايه تلخک هم (وی) بتمي بېبان دئ

پر بيبو مي سلام وايه چي ژړی ښادي جان پروت پر دلارام دئ

دا سړی هم د تلخک و، ښادي خان ډېري زارۍ ورته وکړې چي که دي يو وار بيبو راخبره کړه او يو واري خدای زما او د دې اوسترى ديدن سره وکي، ډېر به ښه سي او که خدای کول تا ته به هم الله تعالی جنت درکي. دې سړي ورته وويل چي پر غبرګو لېمو.

"اوس نو ښادي د مرګ و سګليو ته نژدې دئ".

آبس ! سړی په يوه تاخت راغی، د ښادي خان کره پر بيبو يې ناره وکړه :

که ګمبته دلارام پر سر ګمبته – ښادي جان مي پکښې پروت
لويه خدايه سپينه خوله يې د لحد د ګرزو ډکه

"اوه ! څه د غم ناره وه، خوله دي ماته سه !" بيبو جاني دا ږغ واروېدی، تر ککرۍ يې شين دود وختی (اه) يې کړه ! پرله وګرځېده دغسي يوازي مخ د دلارام پر خوا يې راالا کړه، هله هله هله په يوه تراټ راغله وهغي خرابې ته، دا چي راورسېده په ده کي لا څۀ نفس و، دا چي په خرابه ورننوته، ږغ يې پر وکی ! زما مينه! داسي په سپېرو خاورو کي پروت يې.

اوه ! زه دي تر تا دود سم.

زما مينه ستا تر دغه تورو ستر ګو وګرځم، څنګه يې؟

"بيبو جانه پر ښادي جان باندي شاوخوا ګرځي، کوربل او کورنځی وهي"، چي د بيبو او د ښادي جان پلار او مور پر راروسېده، د ښادي جان نفس و غاړي ته راغی، بيبو جان ته يې وويل :

بيبو جاني ! دا اوسترى ديد دئ. يو وار خو دي خوله راکه !

بيبو جاني خوله پر خوله ورکښېښووه، د ښادي خان د دې پر خوله نفس والووت.

(انالله و انا اليه راجعون)

خدای دې وبخښي. د بيبو په زړه به يو خدای خبر وي. زياته يې څه کوې. لنډه دا چي بيبو پخپله په ستر ګو کي ګوتي ور نيولي لاس و پښې يې ور سم کړه او دا نور خپلوان او اکا يې ټوله باندي راټول دي. بيبو خپل پلار و مور او دا نورو ته وويل چي زه پر تاسي يو ناز کوم، که يې اخلئ.

دوی ورته وويل چي پر غبرګو لېمو ووايه څه وايې؟

دې ورته وويل چې تاسي فقط نيم ګړی د دې کنډوالې څخه ووزئ، چې زه يوازې يوازي د ښادي خان ديد وکم، اوس خو دی هم مړ دئ، څه پروا خو نه لري، بيا به يې ښخ کو.

دوی وويل چې شل کرته !

آ بس دوی چې ووتل بيبو جانه راغله خپله خوله يې د ښادي جان پر خوله کښېښووله پوړنی يې پر ځان هوار کی سمه دمه وغځېده، اوه يې کړه خپل روح يې د ښادي جان په خيرات الله تعالی ته وسپاره.

لنډه دا چې يو ګړی وسو د بيبو مور راغله، پر بيبو يې ږغ وکی چې پورته سه کښېنه، د مړو څخه څه نه حاصلېږي. بيبو ږغ ونه کی بيا يې ږغ پر وکی چې پورته سه ! د مړو څخه څه غواړې؟

دې بيا ږغ ونه کی. مور يې ور تېره سوه، پوړنی يې ځني کش کی، کې کتل د کيها بيا بيبو مړه ده، دغسي يې بغاري کړې يو غم يې دوه سوه، خو کار تر کار تېر و، په لندو غوښو اور نه لګېږي، کارونه د خدای دي هيڅ نه کېده، آخر ته يې دواړو ته په هغه ګومبته کي غسل و کفن ور کی دواړه يې په هغه کنډواله کي يو ځای ښخ کړه، نوې ګومبته يې باندي جوړه کړه.

"اوس هم دواړه يو ځای په هغه ګومبته کي پراته دي، د دوو مينو زيارت دئ، خلک ورځي زيارت يې کوي".

پاک خدای دي دوی او موږ واړه مسلمانان وبخښي، آمېن.

# مرد او نامرد

یو سړی و پر لاري پر یوه خوا پلي رهي سوی و، بل سړی پر آس سپور و، هم پر دغه لار په دې سړي پسې راورسېدی، پلي پوښتنه ځني وکړه چي ته څوک یې؟

سپاره ورته وویل چي زه "مرد" یم.

بیا سپاره ورته وویل چي ته څوک یې؟

پلي ویل چي ته مرد یې، زه "نامرد" یم.

خیر ! خو ویل ښه دئ، پر لاري سره ملګري دي، مرد ورته وویل :

وروره ! راسه پر دې آس ته یو ګړی سپور سه، ته ستړی سوی یې، زه به پلي درسره ځم ولي چي سره ملګري یو، ځای هم لیري دئ، او حق د ملګري هم دغسي دئ.

نامرد ویل ښه دئ.

مرد کښته سو، نامرد سپور سو، مرد پلي ورسره ځي.

خیر ! تر یوه حده چي سره ولاړه، نامرد فکر وکی چي آس خو چابک دئ، راسه ځني ویې ځغلوه نه دي سي لاندي کولای.

بس، نامرد آس پونده کی، ویل مرده ! د خدای په امان، مرد چي هر څه ورته وکړه چي مه کوه زما آس مه بیایه، (خو هغه نامرد چم ورسره وکی)، غوږ یې نه پر ونیوی، آس یې ځني بوت. مرد صبر وکی نور یې هیڅ ونه ویل، خو وخت د مازیګر دئ، سپین کپی دښت (بیابان) دئ، آباتي، کورونه، وداني نژدې نسته، وریخ ده باران اوري، اریانی واخیستی، دوباره ناچاره سو راغی یوه غره ته چي دلته به په ګاره کي شپه تېره کم، چي مردار خواره مي ونه خوري، سهار به ځم که خدای کول.

خیر ! غره ته راغی لمر ولوېدی، ماښام سو، یو اوږد غار یې پیدا کی په

دې ننووت، د غار په پای کې کښېنوست، يو ګړی چې وسو که ګوري زمري غږومب وهل په دې غرا ور ننوتی، د غار په خوله کې يې سر پر ځپېړو کښېښو، پرېوتی.

بل ګړی چې وسو، شرمښ راغی، بيا يوه ګيدړه راغله، دا درې سره په دې غار کې سره انډيوالان دي، خير خو درې سره پرېوتل، (مرد د ببري دم ناست دئ)، دا ګيدړه و زمري ته وايي چې زمری لالا ! چيري يې تمامه ورځ نه معلومېږې؟

زمري ورته وويل چې هو دغه پلانۍ ډبره وينې؟ د هغې ډبري سره دوه خومه بتکۍ ښخي دي، زه چې سهار ورسم تر ماښامه پوري باندي لغړم، په خوشحاله يم طبيعت مي راسته دئ، و شي ته مي فکر نسته.

"مرد هغه ډبره نښاني کړه، ليکن د ببري يو ځر دئ". بيا ګيدړي و شرمښ ته وويل چې ته ولي داسي ډنګر يې؟ سره له دې چې داسي چټک يې په تا څه سوي دي؟

شرمښ ورته وويل چې اې ګيدو انا ! څه در ته ووايم دلته په دغه شېله کي دوه درې زره پسونه دي، چاغ چاغ، يو داسي کافر سپی غټ، خدل ورسره دئ چې زه ستر ګي وښکاره کم دی مي پسي راواخلي، خو لاندي مي کي، خورا مي ومروړي، د دغه سپي د لاسه زه ورځ نه لرم.

ګيدړي ورته وويل چې هو ولچي ما هم ليدلی دئ، دغه خورا خروړوی کوټه دئ، او د دغه سپي ستر ګي او د دې وني پاڼي (چې د غار په غوله کي شنه ده)، دا چې سره ګډ سي د لېونيانو دوا ده، يعني لېونی پر سد کېږي.

بيا ګيدړي وويل چې زه هم داسي ډنګره يم، زما سبب دا دئ چې په پلاني چمن کي يوه مږه ده، شل داني روپۍ لري، هره ورځ چې زه چمن ته ورسم، دا مږه دا روپۍ يوه يوه د غاره څخه راباسي، او هري يوې ته جلا جلا پورته پورته غورځي، څو شل سره راوباسي بيا نو بازی ورته کوي. زه چې سهار ورسم د دې مږي سيل کوم، کوم، څو راباندي ماښام سي، ګاهي وږې، ګاهي مږه سم نه چاغېږم.

خير خو آرام سوه، بيده سوه ... مرد دا ټوله خبري واورېدې، چې شپه

تېره سوه سهار سو، دوی درې سره د غاره راووتل، مرد شکر وکېښ، د ځان سره یې چرت وواهه چي دا حیوانان بې څه نه دي، او دروغ نه وایي، د دې وني څخه یې پاني پرې کړې، راغی اول وهغه چمن ته که ګوري هغه مړه ده، د غاره څخه یې یو وار یوه روپي راوایستله، خوشحالي یې ورته وکړه، مرد ورته کتل. آخر ته مرد ورته پټ سو، دې مږي شل سره روپۍ د غاره څخه راوایستې، خپلي بازۍ ورته کوي. یو وار مرد ور الا کړه مږه وارخطا سوه، خو په دغه حال کي یې یوه روپي څني حمله کړه په غار ننوتله، پاته نونس روپۍ دې مرد راواخیستلې، راغی برابر هغه شېلې لره یو شپانه پسونه پیایي، هغه سپی ورته پروت دئ، مرد ورته وویل چي آشپانه ! دا سپی نه خرڅوې؟

شپانه ورته ویل چي دغه زما دوه درې زره رمه ټوله په دې سپي خوندي ده، نو زه یې څنګه خرڅ کم؟

مرد ویل چي دغه دي نونس روپۍ واخله سپی راکه، و خاوند ته وا چي سپی مردار سو. ته یې پر څه یې؟

شپانه هم نونس روپۍ غنیمت وبللې ویل ښه دئ، خیر ! خو روپۍ یې څني واخیستې، سپی یې ټینګ وتاړه په لاس یې ورکی.

بیا مرد ورته وویل چي راسه مړ یې که. شپانه هم د شپنۍ په کوتک (ډانګ) یو ډانګ پر دا سر وواهه، سپی مړ سو، مرد یې دستي د سترګو اوبه وکښلې د هغې وني د پاڼو سره یې ګډي کړې، ګولی یې څني جوړي کړې، سپی یې هورې پرېښو، نو را رهي سو، هله هله دا دئ یوه ښار ته ورسېدی، په دې ښار کي که ګوري سیدان او ملایان او نور ښه خلک سپاهیانو سره راکوټرم کړي دي، ټوله داسي خوابدي دي چي څه درته وایم؟ مرد راغی پوښتنه یې څني وکړه چي دا ولي خوابدي یاست؟ او څه نکل دئ؟ ها !

دوی ویل څه مو کوې؟ څه کاکا پر خپله تړه، لار دي وهه !

دی ورته ټینګ سو، ویل یه تاسي راته ووایاست. آخر ته یې نکل ورته وکی چي د دې ښار د باچا یوه لور ده، هغه دا ډېر عمر کېږي، چي لېونۍ سوې ده، په خونه کي یې اچولې ده په ځنځیرو یې ټینګه تړلې ده، او

هر څه دواوي او غمخوري چي يې په وکړه خو نه سوه جوړه نو اوس يې پر موږ حکم کړی دئ چي يا به خامخا دا زما لور راجوړوئ، او يا ټول وژنم. اوس اريانی اخيستي يو دا د عمر ليونی د چا د لاسه کېږي چي جوړه يې کي؟

مرد ورته ويل چي دا خو اسانه خبره ده، وار مه خطا کوئ، ما باچا ته ورولئ دا زه جوړوم، زما د لاسه پوره ده.

ليکن زما کالي بيخي سره ټکر ټکر دي، تاسي ما ته يو څه ښوی کالي رابرابر کی، چي د باچا حضور دئ، ښه دئ چي لږ څه خواپاکی ورسم.

ملايان ټوله خوشحاله سوله، چا چپنه ورکړه چا موچني ورکړې چا لنګوټه، چا کوټ ورکی خو څه سر دي ګرځوم دا مرد يې په ښه جامه کي باچا ته ورووست، مرد ور دمخه سو، ويل صاحبه ! زما د لاسه پوره ده، زه د الله په اميد او حکم ستا لور جوړوم.

باچا ويل ښه دئ، حکم يې وکی چي بويې زئ زما لور ته يې ورولئ.

دې مرد يوه کوزه اوبه او يوه لکړه ورسره واخيسته، را رهي سو، راغی د باچا د لور خوني ته که ګوري د باچا لور يې ټينګه تړلې ده، په لاسو کي يې الچکان دي، په پښو کي يې ځنځيران دي، په غاړه کي يې هم ځنځير دئ، داسي ليونی ده چي هيڅوک ځان ته نه پرېږدي، او په خپل ځان خولې لګوي.

مرد راغی ډېر يې زړه پر وسو خو مينځياني يې سره وايستلې، يوازي دی او د باچا لور سره پاته سوله، مرد يو ګړی سر ورته پټ کی، خو سر يې راپورته کی شاوخوا يې وکتله څوک نسته، دروازه يي ټينګه وتړله راولاړ سو د باچا د لور په خوله کي يې لرګی ورکی يوه دانه هغه ګولۍ يې ورکړه، د دې خوا يې کوزه ورپورته کړه، دا خو يې په تېره کړه، يو ګړی وسو د باچا لور لږ څه ښه سوله، بيا يې بله ګولۍ په دغه چم ورکړه، دا چي يې تېره کړه يو وار د باچا لور پر سد سوه، ناره يې کړه چي آمينځي! دا پردی سړی څه کوي چي راسره ناست دئ؟ او د خدای پار دئ را، مو ولي تړلې يم؟ دا پردی

لونډه مو ولي راسره اچولی دئ؟ د باچا د لور د خوني څخه مرد راووتی پلار ته يې راغی چي ورسه لور دي پر سد سوه، څوک محرمان ور وليږه چي د بنده يې خلاصه کي.

باچا ډېر خوشحاله سو، پخپله لور ته راغی لور يې خلاصه کړه، دستي يې په هغه ټپو دواوي وکړلې حمامونه يې په وکړه، وچه کلکه جوړه سوه، باچا مرد راوغوښت ويل آسړيه ! زما خو د دې لور څخه اميد ختلی و، خدای جوړه کړه سبب يې ته سوې دا لور ما و تا ته بخښلې ده.

مرد هم ويل زما قبوله ده، بيا نو باچا ته مرد وويل چي زه مسکين يم، ته ما ته څه روپۍ راکه چي زه يوه کلا په جوړه کم، نو به نه زما طبيعت خراب وي نه ستا د لور ! باچا ويل ښه دئ، حکم يې وکی چي دوې غاتري په روپو بار کئ. مرد خزانې ته راغی روپۍ يې بار کړې، سره له څو کسو، برابر يې راوړې پر هغه ځای چي زمري خزانه ښوولې وه پر هغه ځای يې واچولې، دستي يې ليکه کش کړه مزدوران يې ور واچوله، شاوخوا يې پر دغه ځای کلا راوګرځوله.

يوه ورځ دغه مرد بازار ته راغی مزدوران د ختو له پاره بيايي، که ګوري هغه نامرد يې وليدی چي د مزدورانو په جم کي ولاړ دئ، مرد وپېژاند نامرد يې نه پېژني، مرد ور ته وايي ځوانه مزدوري نه کوې؟ دی وايي ولي يې نه کوم.

خو دا نامرد يې د نورو مزدورانو په ډله کي ختو ته راوستی، دې مرد و خپل اشپز ته وويل چي دغه سړي ته چي هر وخت ډوډۍ غواړي ور کوئ به يې او تر دې نورو مزدورانو به هم زياته مزدوري ور کوئ. يوه ورځ نامرد پوښتنه څني وکړه چي اې سړيه ته داسي ښه راسره کوې او ته ځان راوښيه ته څوک يې؟

مرد ور ته ويل چي ځوانه زه هغه مرد يم چي په پلاني وخت، پلاني ځای زه او ته سره ملګري و، تا ويل ته څوک يې ما ويل زه مرد يم او تا ويل چي زه نامرد يم، او زما څخه دي آس بوتی، نو اوس زه هغه مرد يم هغسي تر پايه مړانه درسره کوم، اوس کرار کښېنه خوره و چښه حساب مه منه.

نامرد تعجب يووړی ويل دا څنګه خدای در کړه؟

مرد خپل تېر سوی کيفيت سر تر پايه ورته بيان کی، چي يعني داسي ستا څخه پاته سوم داسي و پلاني غره ته ورغلم په پلانۍ ګاره کي داسي زمري و ګيدړه او شرمښ او داسي و داسي، څنګه و څنګه او ... نامرد ويل ښه دئ.

بله ورځ نامرد راغی اشپز ته وايي ژر سه ماته ډوډۍ راکه. هغه وايي خو اومه ده. دی وايي په زه يې غواړم، خير ! خو اشپز ته مرد هم ويلي وه چي هر وخت دی ډوډۍ غواړي ته به يې ورکوې.

اشپز هم وختي ډوډۍ ورکړه، نامرد ډوډۍ وخوړله خو د روه را رهي سو، هغه غره، هغې ګاري لره راغی، په هغه غار ننوتی، په پای کې کښېنستی، (مقصد يې دا دئ چي زه به هم ورسم په هغه غار کي به کښېنم، زه به هم داسي سم لکه دی)، ماښام سو، بيا هغه زمری، ګيدړه او شرمښ درې سره راغله پرېوتله، دا ګيدړه وايي:

زمري لالا نه يمه خبره دمخه داسي چاغ وې او اوس ډنګر سوی يې، چي ناجوړه يې که څه سبب دئ؟

زمري ورته ويل چي دا څو عمر کېږي هغه خزانه چي ماليدلې وه، پر هغه ځای کار کېږي، کلا يې پر جوړه کړې ده، زه نه سم ورتلای، طبيعت مي خراب دئ نو ځکه داسي ډنګر يم، شی مي و خوا ته نه کېږي.

بيا ګيدړي و شرمښ ته مخ راواړاوه چي ته څنګه چاغ سوی يې؟

شرمښ ورته ويل چي د هغې شپې راهيسي چي تا پوښتنه راڅخه وکړه، چي ولي ډنګر يې په دې بل سهار چي هغې شپلې ته ورغلم هغه پخواني کوټه سپي نه و، په رمه ور ګډ سولم، څو پسونه مي سره څيري کړل، اوس هره ورځ ورځم خپل ښکار کومه، خو نور سپي هم سته هغه چي راسي هغه هم سره ومروړم، سره زخميان يې کم زه پر غښتلی يم، نو خود چاغ سولم.

بيا ګيدړي وويل : زه هم د هغې ورځي راهيسي په هغه بل سهار هغه چمن ته ورغلم هغه مړه ټنډه پرته وه، يوه دانه روپي ورته پرته وه، نوري نه وې، هغه مړه مړه سوې وه اوس زه په خپل ښکار پسې ولاړه سم، او نس ښه

موړ کم، داسي چاغه سوې يم.

يو واري زمري سر راپورته کی چي دا کار بې انسانه نه وي، په هغه شپه چي موږ خبري کولې لکه چي يو سړی دلته راته پټ و.

گيدړي ته وگوره چي اوس خو څوک نسته؟

گيدړه چي په غار کي شاوخوا وگرځېده نامرد يې پيدا کی، ويل زمري لالا ! دا دئ راکش يې کی، زمري دستي څيري کی، نامرد يې مړ کی و بس.

(دا وه د مردۍ او نامردۍ نتيجه)

# زبزبانه شاپېرۍ

چي و يو باچا و، دې باچا زوی نه درلود فقط يوه لور يې درلوده، چي خورا پر ګرانه وه، دا لور يې لو سوه، د ښځي تر ځايه ورسېده، يو وخت يې پلار ورته وويل چي لوري، ته خو اوس لو سوې يې، که دي مېړه ته هوا کېږي خو هغه دئ ته يې په خپله خوښ که، چي زه دي په حلاله نکاح ورکم.

دې ورته وويل چي مېړه خو يوه پيکړه ده، زه مېړه نه کوم، ستا سره کراره کښېنم، پلار يې وويل ښه دئ. پلار يې تر ښار دباندي يو ښه ګل باغ ور جوړ کی، د ښار د مامورينو لوڼي د دې همزولي سيلانياني نجوني يې ورسره کړې د باچا لور په دغه باغ کي ځای ونيو، دالته عيش و عشرت کوي.

يوه ورځ تر يوه ونه لاندي دغه د باچا لور پر ته ده، که ګوري په دې ونه کي يو توتي او يوه مينا راغله کښېنسته، دې مينا خپل رېز شروع کی، خپل رېز کوي، توتي يې سيل کوي. توتي يو وار خپل وزر په مشوکه وګروی، دستي بېسده سو، مينا هم خپل رېز پرېښو خو توتي ته اريانۍ واخيستله، يو ګړی چي وسو توتي بير ته پر سد سو، مينا پوښتنه ځني وکړه، چي ولي بېسده سوې؟

توتي ورته ويل چي زما وزر د زبزباني شاپېرۍ په غوړو ککړ سوی و، چي ما ځان وګراوه هغه بوی يې زه بېسده کړم او هر وخت چي زه خپل وزر بوی کم بېسده کېږم، دا خبري يې سره وکړې دواړه والوته.

د باچا لور دا خبري وارو بدې خو داغسي راپور ته سوه، چي د دې زبزباني شاپېرۍ غوړي به څنګه وي. راغله پلار ته يې وويل چي ما ته به د زبزباني شاپېرۍ غوړي را پيدا کوې، او هر چا چي در ته راوړه هغه زما مېړه دئ. باچا هم دستي حکم وکی، خلک يې پسي ولېږله چي د زبزباني غوړي

راوړي. هر سړی وس کوي چي ګوندي زه یې پیدا کم، چي د باچالور وګټم، د باچا د وزیر زوی هم را رهي سو، د وزیر زوی یو دښت پسې اخیستی دئ، په هر ځای کي په هر کاریز کي ګوري خو راغی د یوه غره لمني ته، یو خورا ښایسته ګوروان (غوبه) خپل ګورم پیایي، د دې ګوروان ور ته فکر سو، ویل سړیه ! څه کوې چي داسي ګرځې؟ د وزیر زوی ور ته وویل چي داسي نکل دئ، باچا حکم کړی دئ، څنګه و څنګه ...

دې ګوروان ور ته وویل چي ته د وزیر زوی یې دونه خواري پر ځان ولي تېروې؟ دولت دي ډېر دئ د باچا تر لور به ښایسته وکې، څه ولاړ سه کور ته کرار کښېنه، ته د زبزباني ځای بې مانه سې پیدا کولای.

د وزیر زوی هم ستړی سوی و، راغی کور ته باچا ته یې وویل چي هلته یو ګوروان و هغه داسي ویل چي ... باچا ګوروان راوغوښت ویل ښه ګوروانه! ته د زبزباني ځای پیدا کولای سې؟ ده وویل هو ! باچا وویل په څو میاشتي؟ ده ویل په شپږ میاشتي. باچا هم ورسره خوښه کړه خوشحاله سو. ګوروان را رهي سو، ګوروان ته هم نه وه معلومه چي زبزبانه چیري ده، خو الستي رهي سو، ګورم یې پرېښو هله هله مزل پر مزل، دا دئ یو بل ښار ته راورسېدی، په دې ښار کي د یوه سپین ږیري چمیار[1] مزدور سو، دا ګوروان خورا ښایسته و.

د چمیار دوکان داسي په چل کي سو، چي په یوه میاشت کي چمیار موړ سو. د دې موچي سره یې شپږ میاشتي تېري کړلې، د دې موچي یوه ښایسته لور ده، یوه ورځ دې ګوروان فکر وکی چي خدای دي خوار که وطن درڅخه پاته سو، تا شپږ میاشتي دلې تېري کړې نو که ورغلم باچا به مي مړ کي او زبزبانه خو ما ته هم نه ده معلومه، دوباره یې وژړل، دې موچي و مایني ته وویل چي راسه دا لور به دې هلک ته ورکو، مایني یې ور ته وویل ښه دئ لور یې ور ورکړه، یو وخت د دې نجلۍ مور ور ته وویل چي ورسه د دغه هلک په سر کي ور وګوره، نجلۍ هم راغله د ګوروان په سر کي ګوري، ګوروان ژاړي، دې موچي ولیدی، ویل هلکه ولي ژاړې؟

---

[1] چمیار : موچي، پینه دوز.

هلک ورته وویل چي دا شپږ میاشتي ما درسره تېري کړې او تا هیڅ یوه پوښتنه هم ونه کړه، چي ته و کوم ځای ته ځې، څنګه راغلی یې؟

موچي ویل دا ده اوس پوښتنه درڅخه کوم، څنګه راغلی یې؟

ګوروان دا خپل تېر بیان ورته وکی چي داسي د زبزباني د سر په غوړو پسي باچا رالېږلی یم.

موچي ورته وویل :

زویه ! موږ دېبان یو، د انسان په بڼه سوي یو، دلته خپله ګذاره کوو او زه په خپله د دوو سوو کالو یم، د دیارلسو کالومزلو علاقه مي د دې بیابان پر پی ده، ما خو د زبزباني شاپېرۍ نوم نه دئ اروېدلی، تا دي خدای نه خوابدی کوي راځه هلته تر ما بل یو مشر ورور دئ چي د هغه هم د دیارلسو کالو مزلو مځکه پر پی ده، ګوندي هغه ته معلومه وي، ګوروان ویل ښه دئ. دې موچي دېب پر څټ کنبېناوه ویل سترګي پټي که ! ده هم سترګي پټي کړې که یې کتل په بله دنیا کي ناست دئ، دوباره دې موچي دېب په کاغذ کي سلام و دعا او د ده ډېر سپارښت پر ور ولیکی، چي ډېر ښه به ته ورسره کوې، ولي چي زه د آدم زادو په وطن کي یم، دا مي د آدم زادي زوی دئ نو یې دا خط په لاس ورکی لار و لیکه یې ور وښووله ایله یې کی، موچي بیر ته ځني را رخصت سو.

ګوروان را رهي سو، هله هله مزل یې وکی خو دا دئ د هغه دېب ځای ته راورسېدی، د روه یې کاغذ دېب ته ورکی دېب چي کاغذ وکوت خورا تعظیم او روغبړ یې ورسره وکی، نو یې پوښتنه ځني وکړه چي ته څنګه راغلې؟

ده ورته ویل چي پر زبزباني شاپېرۍ مین یم، که دي یوه لار و لیکه په لاس راکړه.

دېب ویل چي زه د درو سوو کالو یم او د دیارلسو کالو مزلو مځکه مي په تصرف کي ده، ما د زبزباني نوم نه دئ اورېدلی، ته درځه چي زموږ یو بل مشر ورور دئ چي هورې ورسو، بیا دواړه دې بل ته راغله، هغه یې عزت وکی دې دېب ویل چي زه د پنځو سوو کالو یم، زه یې هم نه پېژنم، درځه زموږ تر ټولو مشر ورور دئ ګوندي هغه ته معلومه وي، ولي هغه د کوه قاف

په پردو کې اوسي، بيا دواړه را رهي سوه راغله د دې مشر دېب ځای ته، دا هلک يې يوازې ايله کی لار يې ور وښووله کاغذ يې ور کی، دی راغی دېب ته ودرېدی، سلام يې وکی کاغذ يې دېب ته ور کی، دېب چې کاغذ وکوت، د ده يې ډېر عزت وکی، چې ډوډۍ يا يې نور څه مېوه وخوړله، آخر ته ګوروان ور ته وويل چې ما ته زبزبانه شاپېرۍ راوښيه.

دېب ويل چې زه خو زبزبانه نه پېژنم، زه د شپږو سوو کالو يم ما يې نوم نه دئ اروېدلی او د دغه غره تر آخوا د شاپېريانو پاچهي ده، دوی پر موږ غښتلي دي زه نه سم ور اوښتلای وزر مي سوځي، زه به دي تش تر غره ور واړوم نو به زه د غره پر سر در ته کښېنم ځار به کوم که کومه سختي درباندي راغله که زما په وسه وه، خو کومک به درسره وکم، ګوروان ويل ښه دئ.

بس دېب تر لاندي سو په چاچو غاړه کي يې واخيست تر غره يې ور واړاوه.

دېب د غره پر سر ور ته کښېنستي.

ګوروان را رهي سو، سپين کپی دښت دئ لکه ارغوی هله هله دا دئ يوې کلا ته راورسېدی، داسي کلا وه چې سر يې بېخي اسمان ته رسېدلی دئ، ښويه ښالاکه ولاړه ده، چې هيڅ قابو د ورننوتو نسته او نه لار لري نه دروازه لري، نه يې سر و پای معلومېږي.

ګوروان را رهي سو چې ګوندي لار يې پيدا کي خو نه يې سوای پيدا کولای، نه يې لار وه آخر ته يو کوچنی د مېږيانو غار دئ په دېواله کي و دې غار ته وجوړېدی چې سوری يې کي، خو په ډېر زحمت يې په څو روځو دېوال سوری کی چې ورننوت که ګوري چې يو باغ دئ، چې په خوب چا نه دئ ليدلی، چرت يووی خو را رهي سو. دا دئ راغلی د يوه حوض پر غاړه يوه سپين سرې ښځه ناسته ده، سلام يې ور واچوی هغې چې ور ته وکتل انسان دئ، ويل څوک يې؟ ده ويل ته څوک يې؟ دې ښځې ويل زه انسانه يم. ده ويل څنګه دلته راغلې يې.

دې ښځې ور ته وژړل چې زه شاپېريانو د زانګو څخه د مور و پلار څخه راوړې يم نه يمه خبره چې زما وطن چيري دئ؟ او زه انسانه يم دلې دا ډېر

عمر کېږي چي اوسم، يوه لور لرم چي لور مي ګل خندانه شاپېرۍ ده د باچا وزيره ده او مېړه مي مړ دئ، دا زما لور که راغله تا به راڅخه مړ کي ته داسي ښه ځوان يې اوس يې نو وخت دئ د درباره څخه راځي، ته يو چيري پټ سه، چي دا ولاړه بيا به نو د زړه حال ښه سره ووايو، ګوروان ويل ښه دئ نو پټ سو.

"دلته چي ګوروان هغه دېب تر غره وراړاوه نو يې يوه خولۍ ورکړه چي دغه خولۍ پر سر کې نو به دي هيڅوک نهويني، نه دېب نه شاپېرۍ". د ګوروان څخه هغه خولۍ ورڅخه وه نو چي د ګل خنداني د راتګ وخت نژدې سو، دې ګوروان الا کړه يو ګوښه ځای يې خولۍ پر سر کړه هيڅا نه ليدی کښېنستی، يو ګړی چي وسو ګل خندانه راغله تخت يې نورو دېبانو را اخيستی دئ چي تخت يې کښېښو، دستي يې وويل په قهر سره : "بوی د ادم بوی نور کله بوی نه ونن د نوي ادم بوی".

مور يې وويله چي لوري غير له ما څخه بل انسان دلته راتلای سي؟ يوه زه آدم زاده يم اختيار لرې ! بل آدم خو نسته.

ګل خنداني هم ږغ ونه کی خو کښېنستله شپه يې تېره کړله، "دغه باغ يوازي د ګل خنداني د مور دئ او ګل خندانه هم يوه جمعه او بله جمعه و مور ته راځي"، په دې بل سهار بير ته ولاړه. ګوروان بير ته راغی د سپين سري سره کښېنستی نو يې پوښتنه ځني وکړه چي دا ستا لور د چا وزيره ده؟ او پاچهي يې چيري ده؟ او دا لور دي مېړه لري که يه، که يې نه لري نو ولي مېړه نه کوي؟

دې سپين سري ور ته وويل چي دا وطن د شاپېريانو دئ، د باچا نوم يې زبزبانه ده او لور مي مېړه نه لري. ده ور ته وويل چي ته ور ته ووايه چي ولي مېړه نه کوي؟ او که يې مېړه کاوه نو به يې ما ته را رضا کې، ولي چي ته هم يوه آدم زاده يې او زه هم، دې ويل ډېر ښه دئ.

بله جمعه چي ګل خندانه راغله، دې مور يې ور ته وژړل چي اې لوري ! زه خو سپين سرې سوم، تر څو به ژوندۍ يم، يه، نو ته به خامخا مېړه کوې، چي زه به خوشحاله سم، که مړه سم ارمان نه لرم.

دې لور يې وويل چي پر ما يو دېب مين دئ چي په پلاني شېله کي د

اوښ پر ډول دئ، هر چا که هغه مړ کی هغه زما میړه دئ، او بل دا چي تر دغه واله چي په دې باغ کي تېره سوې ده، درې واره به غورځي، که يې دا دوه شرطه پر ځای کړه هغه مي میړه دئ.

مور يې ورته وويل چي دا اوښ په څه چم نيول کېږي؟

دې وويل چي دغه زما دسمال نه وي، هيڅوک يې نه سي نيولای.

خير ! خو په شپه کي يې مور د دې څخه دسمال غلا کی، دا چي سهار راکښېنستله، اوس نو ځي خپلي ټوکرۍ ته چې وکتل دسمال يې نسته، هر څه طلب چي يې وکی، خو مور يې ويل لوري بل واخله هغه خدای خبر چيري وي، گل خنداني هم پرېښو ولاړه.

دې مور يې دسمال راواخيستی و دې گوروان ته يې ور کی، چي دغه دسمال واخله وربه سې اوښ ته به يې وښوروې، دا اوښ خو به مړ کې او تر دې واله به څنګه غورځې؟ ده ويل هغه چم زما زده دئ.

خير خو دا هفته تېره سوه، د جمعې په شپه بيا گل خندانه راغله، دا گوروان دمخه لا ولاړی په هغه شپله کي يې اوښ په دې دسمال ونيوی، اوښ چي پر را الا کړه چي دا آدم زاد څه کوي. ده دا دسمال ورته وښوراوه پر اوښ يې بوی ومښت چي دا خو د گل خنداني دئ، راغی په خپله ورته خې سو، دی پر سپور سو، راغی رايې وستی د گل خنداني دمخه يې د اوښ سر په توره غوڅ پرې کی، گل خندانه تعجب يووړه . . . چي دا څنګه سړی دئ، او دا اوښ يې څنګه مړ کی، نو گل خنداني ويل :

شاباس ! که دي دا يو شرط پر ځای کی، نو زه هم تا میړه کوم !!!

گوروان د روه راغی په دې باغ کي يوه خورا لويه واله بهېږي چي هيڅوک نه سي تر غورځېدلای، ويل زه تر غورځم دا شرط هم پر ځای کوم نو ده به د ليري څخه تاو راوکيښ، چي ولي ته به رانژدې سو، نو په يوه ترخ کي به يې هغه خولۍ پر سر کړه "شاپيريانو به نه ليدی"، ده به الا کړه د دې ولې پر پله به و دې بلي غاړی ته راغی جګ به ودرېدی، خولۍ به يې د سره ايسته کړله، ټولو به وليدی، د دوی په خيال کي به ورغله چي تر واله وغورځېدی خو دوارۀ شرطونه يې پر ځای کړه. گل خنداني هم په خپله رضا د مور په مصلحت دی مېړه کی، د واده شپه يې تېره سوه هر رنګه چي وه، څو دا

ګوروان يې د مور سره وي، ګل خندانه يوه جمعه بله جمعه راځي، خير خو ځو هفتې تېرې سوې، ګل خندانه يې د ځان سره د بېرې نه سي بېولای وايي چې بيا به زبزبانه دواړه مړه کي.

بله روځ چې ګل خندانه تله، نو دې ګوروان هغه خپله خولۍ پر سر کړله، د دې تخت چې دېبانو په هوا کاوه، دی هم د ګل خنداني سره پر تخت سپور سو، دا تخت په هوا سو، دا دېبان وايي : بي بي دا تخت ولې داسې درون دئ؟ دا وايي نه يم خبره. خير خو دا دې راورسېدله د زبزباني دربار ته ! "دې ګل خنداني دمخه و ګوروان ته ويلي وه چې زبزبانه هيڅوک نه سي ليدلای، او نه ځوک ورتلای سي، ليکن دا او يوه بله شاپېرۍ يوه جمعه او بله جمعه په پلاني حوض کې لمبېږي، دوی دواړې په ډول د سپينو کوترو کېږي، نو دغه حوض ته ځي، که دې په دغه حالت کې چمبه پر صافه سوه ښه تر ښه که نه وي دا خبره مشکله ده چې ته به د زبزباني د سر غوړې وړې".

د دې ګوروان خپله خولۍ پر سر ده هيڅوک يې نه ويني خپل سيل و تماشې کوي، له دوی سره خواړه خوري، ليکن زبزباني ته نه سي رسېدلای. د جمعې شپه چې راغله نو دوې کوترې راغلې په حوض کې لمبېږي، ګوروان سم پسې راغلی، چې دوی کالي او پرجامې[٢] وکښلې دواړې اوبو ته ولوېدلې، دی راغی پر کالو يې کښېنستی، خولۍ يې د سر ځخه ايسته کړله، زبزباني او دې بلې چې ورته وکتل چرت يووړې چې دا ځه نکل دئ.

آخر ته يې قهر ورته وکی چې زموږ د کالو ځخه ايسته سه ! او که نه سوې ايسته مړ به دې کو ! موږ خو داسې شاپېرياني يو، پاچهاني يو، دی ورته ټينګ سو وايي نه ايسته کېږم، آخر ته يې جوړې قسمياني کړې چې زموږ کالي او پرجامې راکه چې ته ځه وايې موږ به هغه کوو.

ده ويل ښه دئ کالي يې ورکړه هغو کالي واغوستل ولاړې، دربار ته، ده ته يې وويل راځه راپسې، دی چې راغی پسې زبزباني وويل غواړه ځه

---

[٢] پرجامه د شاپېريانو هغې مخصوصې جامې ته وايي چې هر کله دوی د انسان په بڼه کېږي، نو يې اغوندي او په الوزي او که يې دا پرجامې نه وې اغوستې نه سي الوتلای.

غواړې؟ ده وويل زه تا غواړم ! زيزباني خو قسم کړی و، ناچاره سوه ويل ښه دئ، زبزباني نکاح ورسره وتړله، آخر ته يې دی پر تخت کښېناوه خپل حکومت کوي، زبزبانه و ګل خندانه يې دواړي وکړلې يو څو عمر چي وسو دی وايي زه ځم وطن ته زه خو داسي باچا يم داسي لښکر لرم څنګه و څنګه ...

زبزباني ويل ښه دئ چي ته ځې پر خدای مو سپارلی يې. نو زبزباني يوه سرنده ورکړه ويل هر چيري چي دا سرنده ووهې زه به سره د لښکره در حاضره سم. دا يې راواخيسته بيا راغی د ګل خنداني او مور څخه يې رخصت واخيستی ګل خنداني هم يوه داسي سارنګی ورکړه ويل چي هر وخت ما غواړې دا سرنده وړغوه زه به دستي در حاضره سم.

دا يې هم ځني راواخيسته را رهي سو، هغه غره لره راغی که ګوري هغه دېب لا د غره پر سر ناست دئ، چي دی يې وليدی را په هوا سو دی يې يو دم تر غره راواړاوه، بيرته يې خپل ځای ته راوستی، دې ګوروان دستي هغه سارنګی ووهله، يو ګړی چي وسو زبزبانه او ګل خندانه سره د لښکره په هوا راغلې، خپل څوري يې را اخيستي دي راغلي ودرېدې ويل خدمت. ده ويل خدمت دا دئ چي تاسي چي دا پسونه يا نور حيوانان حلالوئ دا لري و کولمې و سر و پښې يې مه غورځوئ يو ځای يې کښېږدئ. دوی هم ګرده ټول سره ايښوول، خير شپه تېره سوه سهار سو وختي يې ټوله رخصت کړله، شاپېرياني سره د لښکره ولاړې، دی و دېب ته وايي :

کاکاجانه ! خوره يې دا ګرده مي ستاله پاره راغوښتي دي، ته دا دونه عمر پر غره وږی تږی ناست وې اوس نو تن موړ که، دېب هم ورته سيخ سو ګرده يې وخوړله.

بله روځ ګوروان وايي کاکا جانه ! زه خو ځم، دې دېب فکر وکی چي حکمت خو په دې سريندو کي دئ، راسه دا سريندې ځني واخله، که يې نه راکولې نو به يې مړ کم. ولي هره روځ به دغسي استراحت راباندي وي، دوباره يې ورته وويل چي اې زويه ! تانو د شاپېريانو د وطنه و ما ته څه شي راوړل؟ دغه سريندي ما ته راکه !

ګوروان فکر وکی که يې نه کم ور وژني مي، دستي يې وويل ها کاکا

جانه ! دا سرينديږ يې ستا، ديب خوشحاله سو.

دی رهي سو، چي يو څه ځکل ولاړی، بير ته ورته راوګرځېدی ويل اې کاکاجانه چي زه کور تـه ورسم مور و پلار به راتـه وايي چي تـا تـه کاکا څـه درکړه؟ زه به څه ورته وايم؟

ديب ويـل تـا دي خـدای نـه خوابـدی کـوي دوبـاره يـې يـو سوټی، يـو ځنځير، يوه مسئله ورکړه نو يې ورته ويل چي په دې سوټي کي دا حکمت دئ چي ورته ووايې چي "دی سوټيه دئ مه يې سر ګوره مې پښې" او چي پر ځنځير حکم وکې چي تړه يې ځنځيره دستي چي هر رنګه ديب وي ټينګ يې تـړي او سوټی يې وهي څو تـه ورتـه وابس يـا يې مړ کـي او دا مسئله د حضرت سليمان پيغمبر ده چي دوه رکعته نفل وکې او پر دې مسئله کښېږ ورته وايه مسئلې ! پلاني ځای ته مي بوزه، په حکمت د خدای به دې هورې ورسـوي، او هـر څـو کسـه چـي پـر کښـېني هغونـه لـويېږي". ده هـم ځنـي راواخيستله را رهي سو، تر يوه ځايه چي راغی فکر يې وکی چي اول راسنه دا سوټی و ځنځير پر ده واټکلوه، يا به ديب مړ کي خپل سريندږ به واخلم يا به زه هم دلته پسې مړ سم، دا ژوندون نو څه کوم. راغی پـر ځنځير يې حکم وکی، چي ونيسـه تـړه يې ! ځنځيـر پـر ديـب راوپېچـل سو ديب يې ټينګ وتاړه، پر سوټي يې امر وکی چي دی سوټيه دئ مـه يې سر ګوره مې پښې، سوټی هم پر ديب باندي پخپله پور ته کېږي، ډب، ډب ديب يې دالته مړ کی، ګوروان خپلي سارنګی و سوټی او ځنځيـر و مسئله يې راواخيستـه، دوه رکعته نفل يې وکړله، پر مسئله راسپور سو دا دئ تر دې بل ديبه پوري راورسېدی. دې ديب يې ډېر عزت وکی خو د دې ديب سره يې عيناً هغسي رفتار وکی، څو دې ديب هم يو دسمال ورکی ويل چي په دې دسمال کي دا حکمت دئ چي هر څه شيان چي پکښې ايږدې ډکېده نه لري. خو آخر تـه يې دا هم په داغه چم مړ کی. بيا يې دغه خپل شيان راواخيسته را رهي سو، څو دريم ديب تـه راغی، د دې سره يې هم هغسي معامله وکړه، دې ديب هيڅ نه وه ورکړي دا ټوله شيان يې راواخيستله دوه رکعته نفل يې وکړه پر مسئله سپور سو، څو هغه خپل ښار ته راورسېدی، د هغه سپين ږيري موچي ديب کره نه ورغی هغه يې پرېښو.

دلته په ښار کي چوک چکه سوه چي د باچا زوم راغلی دئ، دغه ګوروان د ښار دباندي په هغه چمن کي چي ګورم يې پووی دېره سو، خپلي سرينديې يې ووهلې څو هغه زبزبانه و ګل خندانه سره د لښکره يو ګړی وروسته راغلې، ويل خدمت ! ده ويل نور خدمت نسته، خو زبزباني ته يې دوه بوتله ورکړه چي دغه ستا د کوڅيو غوړي راوباسه، هغې هم بوتلان ځني واخيستل، يوه کوڅی يې پکښي ونښتېځله، بوتلان يې ور ډک کړل، څو ګوروان يې د خوشبويي څخه بې سده سو، "د دې زبزباني د کوڅيو د غوړو داسي خوشبويي وه چي هر چا ته چي به دا بوی ور ورسېدی، هغه به د روه بې سده سو، نو تر هغو به بېسده و څو يې په سر،مو پوري دغه غوړي نه وي ور موښلي، تر هغو نه پر سد کېدی"، دوباره يې شاپېرياني بير ته رخصت کړې، هغه ولاړې نو دې ګوروان دا خپل اسباب د سرينديې و سوټي او ... يې پټ ښخ کړله، سهار را رهي سو هغه بوتلان يې راواخيسته، خلکو و باچا ته حال ور وړی چي زوم دي راغی. باچا يې هم عزت وکی په ډېر درب و دروب يې کور ته بوت، په سبب د دې بوتلو يو وار دروازه وان بې سده سو، نو به ده پزه ور غوړه کړه هغه به بير ته پر سد سو.

څو باچا ته نژدې سو باچا بې سده سو، خو باچا هم پر سد سو، پر باچا ډېر ګران سو آخر ته د ده لور ته حال ورغی چي پلانکي سړي د زبزباني د سر غوړي راوړي دي او ته پلار هغه ته ورکړې يې، دې و پلار ته حال ور واستاوه چي زما بوتل راواستوه، باچا و دې ګوروان ته هم وويل چي ځه ولاړ سه حرم سرای ته، خپل کور دي دئ. ګوروان هم کور ته راغی، باچا هم پسې راغی نکاح يې ور وتړله، باچا بير ته ولاړی.

دې د باچا لور په نيمه شپه ورته وويل چي چابک غور ځه ځه، ستا پلار د ګوروان وغيم، زه د باچا لور او ته ګوروان، زه به نو اوس تا ته ناسته يم؟ "خو ده ته يې خورا بد ښکنځل وکړه د کوره يې په تاخت راوايستی !"، ګوروان ډېري زاری ورته وکړلې چي مه کوه ارمان به وکې، ما په مسخره دا د زبزباني د سر غوړي نه دي راوړي.

خو دې ورته ويل چي يه ! ځه !

ګوروان هم راووتی هيچا ته يې برغ ونه کی پر خپله تړه ولاړی، "په

بازار کي چک چکه سوله چي د باچا زوم ولاړ"، دا خبره تر باچا پوري ورسېدله چي زوم دي ولاړي خوابدی سو، د باچا هم طبیعت خته سو هغه د وزیر زوی یې بیر ته راوغوښتی چي ځه ورسه زما زوم به بیر ته راولې. اول هم تا راوستلی دئ اوس به یې هم ته راولې، د وزیر زوی هم ناعلاجه سو پر آس سپور سو پسې را رهي سو، هله هله په ګوروان پسې ورسېدی ویل چیري ځې؟ هغه ورته ویل چي ته راسه دا زما په لاس کي څه شي دي؟ د وزیر زوی چي رانژدې سو، هغه ګوتمۍ چي یې د زبزباني شاپېرۍ څخه اخیستې وه هغه یې ورښکاره کړله ویل دا ګوره څو قیمت به لري، ده ویل د دې قیمت په دنیا کي پاچهان نه لري. ویل وینې نو راځه چي شاپېریاني در وغواړم ته به د دې پاچهانو څخه څه حاصل کې.

د وزیر زوی هم ورسره را رهي سو، څو دواړه هغه چمن ته راغله، چي پخوا به ګوروان غوایي پکښې پوول، بس هغه خپل شیان چي یې ښخ کړي وه راویې کښله، دوه رکعته نفل لمونځ یې وکی دواړه پر هغه مسئله راسپاره سوه، "هغه خپل آس د وزیر زوی و یو چا ته ورکی"، پر دې مسئله یې حکم وکی چي موږ برابر داسي ځای ته بوزه چي شاوخوا دریاب او اوبه وي، سپاره سوه. مسئله په قدرت د الله تعالی را په هوا سوه، هله هله څو یې داسي د دریاب یوې جزیرې ته راوستله چي شاوخوا اوبه دي، کښته سوله، یوه خېمه یې ودروله ګوروان خپلي سرینديې راواخیستې ویې درنګولې، یو ګړی چي وسو په هوا یوه ګل خندانه ده یوه زبزبانه ده دواړي راغلې، ورته حاضري سولې ویل خدمت! ده ویل خدمت دغه دئ چي کښېنئ دستي یې ګل خندانه طلاقه کړله، د وزیر زوی ته یې ورکړله او زبزبانه ده ته کښېنستله، ماښام سو هر یوه خپلي بازۍ د شاپېریانو سره شروع کړلې، تر نیمو شپو یې خپلي بازۍ وکړلې، خو آخر ته دوی دواړه بېسده سوه.

دې زبزباني و ګل خنداني ته وویل چي راسه سبا سهار به خپل ځانونه خورا ډېر ښایسته سره جوړ کو، خپلي پر جامې به واغوندو نو به رقص ورته وکو که داسي وه چي باچازاده ګان وه نو به نه سي بېسده، هغه دئ ورسره به یو او که نه وه خوشي یو ګوروانان وه نو به بېسده سي خود به یې دغه شیان په دریاب کي وغورځوو، پر خپله لار به ځو، د دې غمه به ځانونه خلاص کو.

ګل خنداني ویل ښه دئ.

سهار سو لمر راوخوت دواړو خپلي پرجامې واغوستلې ځانونه يې ښه جوړ کړه چي ورته کتل کېږي نه، خود رقص يې شروع کی، رخص و خواندن يې وکی، وکی، څو ګوروان د روه بېسده سو، د وزیر زوی هم بېسده سو، لیکن داسي نه و بېسده لکه ګوروان.

شاپېریاني راولاړي سوې، ګرده شیان يې چابک و دریاب ته وروغورځول اما یوه خولۍ او دسمال يې هېر سوه، هغه يې و دریاب ته ور وانه چوله، نو دوی دواړي پُر سو، والوتې ولاړې خپل وطن ته.

ګوروان و د وزیر زوی چي پر سد راغله که ګوري هیڅ نسته، نه شاپېریاني سته نه هغه د دوی اسباب فقط یوه خولۍ و دسمال ورته پاته دي، اریانۍ واخیستل چي دا څه نکل پېښ سو، د وزیر د زوی ډېره خوابده سوه ویل ولي خدای دي خوار که، د وطن و د ځایه دي راورک کړلم، دا دي په څه غضب اخته کړلم؟ ګوروان ویل خوا مه بدوه، د خدای تقدیر و که نه وای خو هغسي مېله دي وکړله او په خپله دي هم ولیده چي د شاپېریانو باچا دلې راغی اوس نو توکل پر خدای دئ هر څه چي پېښه سوه هغه به وسي.

خیر خو راغله په دې جزیره کي ګرځي، "خدای دئ" یوه لو تخته يې پیدا کړه، پر دې تخته سره راسپاره سوله په دریاب کي يې واچوله ګاهي يې باد دوري کي ګاهي يې دوري کي، "خو خدای خدای لري" یو وار يې باد راسته سو راوې وهله څو د دریاب غاړي ته په ډېر زحمت راورسېدله، په یوه چم د چمو د تختې راکښته سوله.

د دې دریاب پر غاړه یو بل ګوروان ګورم پیایي، دوی يې ولیدله دوباره يې دواړه سره را رهي کړله، پوښتنه يې ځني وکړله چي تاسي څوک یاست؟ خو په ژبه نه سره پوهېږي، اخر ته دې نوي ګوروان فکر وکی چي راسه کور ته يې بوزه ښه دئ په اوسابه يې، ګاهي ګاهي به ګورم درسره پیایي، تر لاس يې ونیوله کور ته يې راوستله، و مور ته وایي :

ادې ما دا دئ دوه ورونه پیدا کړه، زما سره به دوباره ګورم پیایي سات به مو ورسره تېر وي، مور يې ویل ښه دئ! خیر خو ډوډۍ موډۍ يې ورکړله، ماړه سوله کرار کرار په ژبه پوه سوله، دواړه هره ورځ ورسره ځي،

ګورم پیدایي. دې د وزیر زوی او خپل ملګري ګوروان فکر وکی چې څو تر څو به موږ دلته ګورم پیدایو، بله ورځ دواړه راوتښتېدله، و یوه بل ښار ته راغله، خورا ډېر وږي دي، هغه ګوتمۍ چې د ګوروان په لاس کې وه د وزیر زوی ته یې ویل چې راسه دا ګوتمۍ به خرڅه کو. نو یې څه کوو، ده هم ویل ښه دئ. دواړه سره راغله و یوه صراف ته چې یو غټ سېټ هندو دئ ودرېدله وایي آسېټه ! دا ګوتمۍ نه رانیسې؟ سېټ چې ګوتمۍ وکتله وایي زه خو د دې ګوتمۍ قیمت نه لرم، نه دا غیر له باچا څخه بل څوک رانیولای سي. دوی ویل هو موږ هم پوهېږو چې خورا قیمت بها ده، خو اوس ور ته اړ یو موږ په وطن کي خورا ډېري لږو، که ولاړ و نوري به په ګوته کو، هغه سېټ ویل ښه دئ په څو ده، ګوروان ویل چې اول به دوه غوري وریجي و غوښي راته راوړې، او بل به دوه ښه ښه آسان راولې، او دریم به یو یو خورجین سرې طلاوي راکوې او یوه یوه جوړه به ښه اعلی دریشۍ راکوې.

سېټ خوشحاله سو، دستي یې وریجي غوښي او نور شیان ور برابر کړل، دوی هم دریشۍ وکړلې ځانونه یې ساټ باټ کړل پر ډوډۍ کښېنستله، دې سېټ دستي الا کړه باچا ته یې دا ګوتمۍ یووړه چې زه به ګټه پر وکم او باچا به ما ته انعام راکي. سېټ چې باچا ته راغی ګوتمۍ یې ورښکاره کړله، باچا چې ګوتمۍ ولیدله، دستي یې سېټ ونیوی چې دا ګوتمۍ دي د څه وه، هغه ور ته وویل چې داسي دوه کسان وه، پر ما یې خرڅه کړه، په دونه روپو یې راکړه، باچا ګوتمۍ په زوره ځني واخیستله، پیره یې ورسره کړله چې ورسره هغه دواړه کسان راولئ. سېټ او پیره چې سره راغله دوی دواړه پر ډوډۍ ناست دي، پیره جګه ور ته ودرېدله، پیرې چې ولیدله دوی ښسده دریشۍ کړي دي، پیره ور ته وایي چې راځئ باچا غوښتي یاست. ګوروان په درد ور ته وویل چې څه وده چې موږ ډوډۍ وخورو پخپله د باچا سلام ته ورځو تاسي ته حاجت نسته.

پیره هم وبېرېدله چې دا لکه چې د یوه وطن باچا زاده ګان یا پاچهان دي، خو بیر ته باچا ته ولاړل عرض یې وکی چې ستا قربان سم هغه باچا زاده ګان وه، ډوډۍ یې خوړله ویل چې ډوډۍ موږ وخورو پخپله درځو تاسي ته حاجت نسته. دوی چې ډوډۍ وخوړله د روه را رهي سوله پر آسانو سپاره

سوه، دا ګوروان د دې وزير زوی ته وايي چي ته خو راخبر يې چي زه ګوروان يم، د پاچهانو مجلسونه مي ډېر نه دي کړي او نه مي داسي خبري زده دي او تا ته معلومه ده، نو دلته به سوال و جواب ته کوې که بير ته و ما ته خدای د شاپېريانو پاچهي راکړه نو بيا خوله زما ده. ويل ښه دئ دا دي دواړه دربار ته راغله، باچا چي ورته وکتل ويل بېشکه باچا زاده ګان دي خو باچا يې عزت وکی سوال و جواب ټوله د وزير زوی ورسره کوي، باچا پوښتنه ځني وکړه چي دا ګوتمۍ مو د څه وه، د وزير زوی وخندل ګوروان هم وخندل "ګوروان د وزير زوی ته ګوري هر رنګه چي دی کوی هغسي ګوروان هم کوي"، د وزير زوی ويل صاحبه ! موږ د پلاني ښار يو، داسي په ښکار راوتلي و، لار راڅخه غلطه سوله، دا دئ قسمت دلته راوستلو موږ سره بې خرڅه سولو، نو خود مو دا ګوتمۍ خرڅه کړله، موږ په خپل کور کي خورا ډېري لرو.

باچا فکر وکی چي دا د څنګه زوره ور دولت خاوندان دي، ور ته کتل يې د دې ګوروان د وزير تر زوی ښه رنګ و، دستي يې وويل چي تاسي به زما سره دوستي کوئ زما يوه لور ده دا يې د ده "يعني د ګوروان"، ګوروان وايي يه صاحبه! زه يې نه کوم ما بيا د وزير و زوی ته بخښلې ده، د باچا يقين سو چي دا بېشکه شاه زاده او دا يې د وزير زوی دئ.

باچا لور د وزير زوی ته ورکړه خو خوشحالي سوه، واده دئ، د واده درب و دروب تېر سو، د وزير زوی خپلي ګردني کوي، کور و کهول سوله، خپلي مېلې او عيشونه کوي يو څو عمر چي تېر سو، د وزير زوی ورځ په ورځ تک ژړ کېږي، رنګ يې خرابېږي دا ګوروان وايي ولي؟ وروره اوس به لا چاغېدلای وړيا ښځه خدای درکړه، عيش و عشرت دي ډېر دئ، څه در کېږي؟ ژر کوه د زړه حال راته ووايه.

ده ورته ويل چي اې وروره نه يم خبر، دا هر څو عمر چي تېر سوی دئ او ماښام زه د دې سره پرېوتلی يم، ما ګوتي نه دي ور وړي، نه مي بازی ورسره کړي دي، نه مي ارمان ختلی دئ. ماښام چي سره پرېوزو دا اسم راباندي ووايي زه بېسده سم بيا نه يم په خبر چي دا څه سي خو زه تر سهاره بيده يم، سهار چي لمر راوخېژي زه ويښ سم دا هم ناسته وي، زياتي نه يم

خبر، ږغ نه سم کولای چي داسي دئ یا داسي دئ.
ګوروان ویل تا ولي دمخه ږغ نه کاوه، درځه چي نن شپه یې درک در معلوم کم. دواړه ماښام کور ته راغله، ګوروان خپله خولی پر سر کړه هیڅوک یې نه ویني خو چي ماخستن سو دې بغره پر سر کړه د کوره راووتله، را رهي سوله، چابکه چابکه ځي هله هله څو راغله د دې غونډۍ څخه یو غټ حبشي تور دېب دئ چي شونډان یې لکه د زاړه غوایي، مخ یې لکه ماښام، غوږونه یې ترازوګان، تور کرغېړن لکه تور کارګه، نوکان یې لکه د ایږ، سترګي یې لکه د بم نو څه ووایم خو یو بدرنګه بد ډوله بد شکله و
...
دا دېب پر راوغورځېدی، چي ولي څونه وځنډېدې؟ یو څو چپلاخي یې ووهله، خو دې ښځي عجز و زارۍ ورته کولې چي نن مي وبخښه مېړه مي نه بیدېدی مېلمانه هم وه.
خیر خو دا ښځه د دې حبشي په څټ کي سپره سوله ګوروان خو څوک نه ویني ور په هوا سو د دې باچا د لور په څټ کي سپور سو، دېب وایي نن ولي داسي درنه یې حمل داره سوې خو نه یې ځني؟
دې ویل په زه هم داسي درنه یم لکه زما په څټ کي چي بل څوک سپور وي، خیر خو دغه خبري سره کوي په غونډۍ کي یو غار دئ په دې غار یې ننه ایستله، ځي، ځي، ځي، ولاړه په دې مځکه کي یو لوی ښار معلوم سو، بل ځای دئ بل ښار دئ، "دا هم د شاپېریانو پاچهي ده، شاپېرۍ یې باچا ده"، دېب برابر راغلی د باچا په مخ کي دا یې کښته کړله، "دا دېب د دې شاپېرۍ باچا مریی دئ، د دې ښځي اشنای دئ"، خیر ! خو سره کښته سوله، ګوروان هم یوې ګوښې ته د خوني ودرېدی یو ګړی چي وسو سازنده راغله ساز سو سوبت سو د دې ګوروان ځای تنګ سو د خوني و سرتاخ ته وخوت په دې سرتاخ کي یو رباب پروت دئ "د دې ګوروان دمخه لا رباب زده و"، شاپېریانو چي ساز وکی او دا د باچا لور هم رقص وکی، بیا شاپېریانو وکی، آخر ته ده رباب هورې په سرتاخ کي سُر کی داسي رباب یې وواهه چي ټوله شاپېریاني یې پر رخص راوستلې، او تعجب اخیستي دي چي دا رباب څنګه پخپله وهل کېږي؟

خیر خو بېقیدي ده یو وار یوه ډله راغله رقص یې دې رباب ته وکی، دې ډلي یوه غټه دانه لعل لکه انار دا یې ور وغورځوله، دا ولاړه نوري راغلې دې وهم رقص وکی وکی دې بیا لکه سېب دونه غټ زمرد ور وغورځاوه، بله ډله راغله رقص یې وکی په دې کي د دې شاپېرۍ باچا لور هم ده، د غاړې امېل یې ور وغورځاوه.

(د دوی خیال دا دئ چي دلته به پراته وي "ولي خو دوی څه نه لیده" سهار به یې واخلو، وچ رباب نو دا شیان څه کوي)، نو دوی چي به دا شیان ور وغورځول ده به دستي په جېب کي واچول پټ به یې کړل.

خیر ! خو یو ګړی چي وسو دا د باچا لور و دې دېب ته وایي چي ورسه و دې اشنای تـه دي یـو څـه انګور راوړه، چـي د انګـورو مېلـه وکـي. دېب هـم ولاړی یوه بېسده پلنده انګور یې راوړله، چي په میدان کـي یې کښېښوولـه ګوروان هغه خپل دسمال ور ته هوار کی، ټوله یې پکښې واخیستله، د باچا لور وایي :

ملا دي ماته سه ! دا څونه نکي انګور دي راوړي وه، خو یوه نـه سوه پـه مړه، ولاړ سه نور راوړه. دېب بیا ولاړی بیا یې تر هغه لو پلنده راوړله دا هم ګوروان څني پټه کړله، څو د شاپېرۍ د باچا لور و دېب ته خشکه وکړه چي ملا دي ماته سه دا یوه اشنایه دي لا په انګورو نه کړه مړه، دېب فکرجن سو.

"څه سر دي ګرځوم" مجلس ختم سو، دېب بیا دغه ښځه په څټ کي سپره کړه، دا ګوروان بیا د دې په څټ کي سپور سو، خو هغه انګور و شیان هم ورڅخه دي تر غونډۍ یې را وایستله نو یې ایله کړه چي څه پـه مخـه دي ښه !

دا ښځه را رهي سوه خو سهار په خړه لا کور ته راغله، ګوروان هم سم په پسې دئ هغه د وزیر زوی لا بیده دئ. ګوروان خپلي خوني ته ولاړ، خولۍ یې د سره څخه ایسته کړله پرېوتی، دا هم ولاړه د مېړه سره پرېوتله، چي سهار لمر راوخوت ګوروان د وزیر پر زوی برغ وکی چي وروره کښېنه !

هغه راویښ سو مخ یې پرېولی نو یې ګوښه کی چي ما خو د دې ښځي درک معلوم کی، یو ګړی چي وسي ما ته به راناري کې چي آ پلانکیه ! ورسه انګور راوړه، چي زه او بي بي یې سره وخورو. زه به انګورو راوړم تـه بـه یې

چختان کي، وا ولاړ سه نور راوړه ! زه به نور راوړم، هغه به هغه چختان کې
ځو په آخر کي مي دوې درې چپلاخي وواهه وا ولاړ سه نور راوړه، زه به نور
ښه انګور راوړم هغه به سره وخوری نور زياتي ږغ مه کوه، که دې در ته
وويل چي دا څه نکل دئ وا دا مي مزدور دئ.

لنډه دا چي د وزير زوی هم داغسي چم وکی. ده هم انګور راوړله، دې
ښځي وپېژندل چي په دې وخت کي خو انګور نسته، دا خو د هغه ديب انګور
دي، خو انګور يې سره وخوړل هيڅ ږغ يې ونه کی، ځو ماښام سو ماخستن
سو.

بيا دا ښځه ولاړه هورې يې دا قصه وکړله چي داسي نکل و. هغو
شاپېريانو چي امېل، ياقوت و زمرد و هغه سر تاخ ته غورځولي وه هغه چې
وکتل هغه هم نسته، فکر يې وکی چي يو حکمت دئ، او دا کار د انسان دئ،
سهار وختي شاپېری حکم وکی چي پوځ دي تيار سي، درځئ چي يا به زموږ
غلا راکوي يا به باچا غل په لاس راکوي.

دا ښځه سهار وختي کور ته راغله، لمر چي راوخوت نو قاصد باچا ته
راغی ورته وې ويل چي يا زموږ مال يا مو غل په لاس راکه ! که نه وي پايماله
مو کړې، باچا د ښار دباندي وکتل وطن ټوله شنو خېمو نيولی و، باچا وارخطا
سو ولي په حقيقت نه دئ خبر چي څنګه نکل دئ. ګوروان پر راتېر سو چي
باچا صاحب ! هيڅ مه وارخطا کېږه، که خدای کول زه به يې يوازي دفع وکم،
ته مي سيل کوه.

ګوروان راسپور سو برابر د شاپېريانو د باچا دربار ته راغی ور تېر سو،
د آس مختبيله يې د دې د خېمي پر فرش ټکوهله، برابر راغی د دې پر
زنګانه کښېنستی، ويل وايه څه وايې؟

دې ويل چي زما دونه شيان چي خورا قيمت بها دي ورک دي، غواړم
يې.

ده ورته ويل چي هغه خو ما غلا کړي دي، غل زه يم.

دې ورته ويل : غل ته يې.

ده ويل : هو !

هغه نخښي يې ټوله اينه پر بينه ورته وويلې. دغه شاپېری په تعجب

کي سوله نو يې ورته وويل چي ما تر اوسه مېړه نه دئ کړی ياره شاباس دئ ستا پر حکمت او دلاوري ! ته زما مېړه يې ! ده هم ويل ښه دئ.

خير ! خو خېمې يې ونړولې پر هغه مخ بير ته ولاړه، د دوی و ښار ته يې د وزير زوی هم ورسره بوتی يو څو عمر يې عيش و عشرت وکی، يو وخت دا گوروان و دې ماينې ته وايي چي ته به دغه ستا په پاچهي کي داسي شی نه لرې چي اوبه سره وچوي، دې ويل چي ولچي زما د نيکه د وختو، چي و هغه ته د سلېمان پيغمبر د وختو لاس ته رسېدلې يوه لکړه سته، چي اوبو ته يې ونيسې اوبه لار وکوي، دا لکړه يې ځني راواخيستله برابر راغی هغه درياب ته چي هغه د ده شيان زبزباني شاپېری ورغورځولي وه، هورې يې لکړه اوبو ته ونيوله اوبو هم لاره ورکړه، دی ورغی هغه خپل شيان يې ټوله راواخيستله بير ته راغی. يوه ورځ ټوله سره ناست دي دباندي په هوا خوري راوتلي دي، خپل سيل و تماشا کوي، ټوله لښکر هم ورسره دئ، د هري خوا څخه سره گډ دي خو آخر ته دا گوروان د خپلي ماينې د څنگه ناست دئ دا شاپېری ده ته وايي چي داسي زړه ور به وي چي تا زما د څنگه ولاړ کي؟ يعني زما خورا زوره وره پاچهي ده، تر ما به بله زوره وره پاچهي وي؟

گوروان ويل هو ! سيل يې کوه يو وار يې هغه خپلي سارنگی راواخيستلې وې وهلې، يو گړی چي وسو لکه اوريځ په هوا د زبزباني او گل خنداني لښکر او پوځ راغله، دغه د دې پوځ ټوله پکښې ورک سو.

دا شاپېری اريانې واخيستله، زبزبانه چي کښېنستله دی يې د دې د څنگه راولاړ کی د خپله څنگه سره يې کښېناوه، ده ورته ويل چي څنگه صحيح دئ که يه؟ هغې ويل بېشکه.

گل خنداني د وزير زوی د خپله څنگه سره کښېناوه، دې شاپېری حکم وکی چي زما لښکر دي راټول سي. گوروان د زبزباني پر لښکر حکم وکی چي راټول کئ د دې لښکر هر چيري چي وي رايې ولئ. دوی يې يو يو پيدا کاوه گرد يې راټول کی.

دې گوروان ويل د وزير زويه ! درځه اول سر ستا پر خسر چي د دې علاج يو وار ور وکو بيا به زما پر خسر ور کوچ سو. د وزير زوی ويل ښه دئ. اول يې هغه باچا چي د وزير د زوی خسر و راوغوښت، باچا راغی نو يې هغه

حبشي هم راووست، باچا تـه يې دا ټېر سرګذشت و خپل کيفيت او د ده د لور آشنايي ټوله بيان کړه، باچا ويل زما يې ګناه څه؟ زه خو نه وم په خبر ګوروان د باچالور راوغوښتله، د دې حبشي سره يې دواړه يو ځاى په دار کړله.

باچا يې بير ته رخصت کی بيا نو پر هغه خپل خسر راکوچ سوله، دی او د وزير زوی بيا پر دې مسئله راسپاره سوه نور لښکر په هوا دئ ځو راغله هغه خپل ښار ته، د ښار دباندي يې په هغه چمن کي چي ده به ګورم پووی واړول، هلته راتا سوله، شپه تېره سوله سهار وختي يې يو غټ دېب ښار تـه واستاوه چي ورسه باچا او کورنۍ يې ټوله راوله او پام کوه چي په انسانانو غرض ونه کې، نوره مېوه که دي خوړه اجازه ده.

دېب را رهي سو خورا وړی سوی دئ په ښار چي ننووت په دکان کي چي څه د خوراک شيان وه هغه يې ټوله وخوړله ځو تر درباره راورسېدی راغی باچا يې سره له ټولي کورنۍ او وزيره بوتله، باچا چي يې ګوروان تـه راوست لړزې اخيستی دئ چي دا څه نکل دئ خوب وينم که څه؟

ګوروان ويل ښه باچا ! زه هغه پلانی ګوروان يم چي تا د زبزباني د سر په غوړو پسي ولېږلم، دغه زبزبانه ده او دغه ګل خندانه ده زه يې باچا يم. بيا يې د باچالور راحاضره کړه ويل ښه ! دغه ستا لور ده چي و ما تـه يې پوچ او رد وويـل، زه يـې د کوره وشـړلم او مـا څـوني خـوارۍ وکښلې تاسي داسي وکړل.

باچا ويل ستا خبره صحيح ده مګر ما خو به بد نه وي درسره کړي زه خو به وعده خلافه سوی نه يم، ده ويل يه ! نو ويل زما يې څه ګناه؟ ګوروان ويل ته معاف يې، پر هغه دېب يې حکم وکی چي دغه د باچالور وخوره، دېب هم ورحمله کړه يوه ګوله يې کړه، دا هم ولاړه و فنا تـه رخصت سوله.

ګوروان ويل وزيره دغه دي زوی دغه مي ماينه ورکړې ده، چي د شاپېری باچا (زبزبانه) وزيره ده، اوس نو اې د وزير زويه اختيار لرې زما سره ځې او که پاتېږې د خپل پلار سره؟

د وزيـر زوی ويـل يـه زه د خپـل مـور او پـلار سـره پـاتېږم، دی او ګـل خندانه سره له نوکرانو يې دلته پرېښووله ګوروان د وزير زوی تـه وويل چي

د ګل خنداني هر وخت د خپل وطن هوا وسوه، هوښ کوه چي منع يې نه کې !
را ايله کوې به يې ... دی ځني را رخصت سو سره له ټوله لښکره هغه بله
شاپيرۍ يې هم بوتله برابر د زبزباني شاپيرۍ و وطن ته ولاړه، هورې يې
خپله پاچهي کوله، خپل عمر يې په عيش تېراوه، د هغه ځای سو او بس !
(کيسی پورته ولاړه زه کور ته راغلم)

# موسی جان او ولیجان

ته وا ښه !

په پخوا وختو کې یو باچا و، د دې باچا نوم سهېلي و، څلوېښت مایني یې درلودې.

د دغه باچا په وختو کې دوه ورونه وه چې د یوه نوم فېروز و د بل نوم نوروز و، د دې فېروز اوه لوني او د نوروز اوه زامن وه، دوی دواړو سوداګري کوله، خورا ماړه او دولتمن وه، خورا ډېره دنیا یې درلوده.

یو وخت فېروز او نوروز دواړه په سوداګري ولاړل، دوی چې تله د دواړو مایني حمل داري وې، دوی پر لاري سره ووېل چې : هر یوه ته چې خدای زوی ورکی او هغه بل ته یې لور ورکړه دغه لور به یې د دې بل د زوی وي. دوی نو پرېږده ! خیر بله ورځ سهېلي باچا په خپله بنګله کې ولاړ دئ، دوربین یې اچولی دئ شاوخوا ګوري خپلې تماشې کوي، کارونه د خدای دي یو وار یې نابیره د دې فېروز و کور ته دوربین برابر سو، د فېروز یوه داسي ښایسته لور ده چې ګل پر موښلي، په غاړه کې یې اوبه ښکارېږي، نازک نري شونډان، توري بادامي غټې سترګې، یو سپین بشر دئ چې څه در ته ووایم. دا هم پر بام ناسته ده سر یې غوړولی دئ ږمونځوي یې، تر دې نورو شپېږو خوندو دا کشره ده، نوم یې (ببۍ) ده، څوک وایي نوم یې (شاه بیبښه) وه، دا سهېلي ولیدله د روه پر مین سو، د توانه یې ووتله طاقت یې نه کېږي، خو هغه کور او ماله یې نښاني کړه، د بامه راکښته سو، دستي یې خلک ور ولېږل چې تاسي ورسئ دا د چا کور دئ، د چا لور ده، څوک ده؟

سړي راغله څرک یې وایستی، بیر ته باچا ته راغله ورته وې ویل چې دا ښځه د فېروز لور ده.

نو یې دستي مرکه ورته راولېږل، خلک چې راغلل د فېروز دروازه یې

ور وټکوله، هغو ورته ویل چې څوک یاست؟ دوی ورته وویل چې موږ د باچا مرکه یو، باچا پر ببۍ مین سوی دئ درڅخه غواړي یې، دا نقل یې ورته وکی ...

ښځو ورته وویل چې نارینه مو پر کور نسته او پلار یې هم په سوداګري تللی دئ، تاسي دونه صبر وکئ چې پلار یې راسي.

مرکه چیان بیرته راغله باچا ته یې دا حال ووایه، باچا هم زور نه سوای پر کولای پرې یې ښووله، که څه هم ډېر بې توانه و خو پر ځان یې تېرولـه دا یې مناسبه نه ګڼله چې په زوره یې وغواړي.

خیر ! یوه موده چې تېره سوه فېروز او نوروز د سوداګرۍ څخه راغله. سهېلي په خبر سو دستي یې فېروز هوري ور وغوښت ډېر دار و مدار یې ورسره وکی، آخر ته یې ورته وویل چې :

دغه ستا کشره لور ببۍ نامې به ماته راکوې !

فېروز ورته وویل چې زه ګوره ته ګوره ! زه مسکین سړی یم، ته باچا یې، زما و ستا سره څه دي، یه ! نه یې درکوم.

سهېلي ډېري زارۍ ورته وکړې خو فېروز یې نه ورکوي، آخر ته سهېلي ورته وویل چې ښه دئ نه یې راکوې، نو تا به هم مړ کم، لور به دي هم په زوره راولم، فېروز فکر وکی چې د باچا سره خو هیڅ نه کېږي، هم به تا مړ کي او هم به دي لور بوزي، آخر ته ناچاره سو ویل ښه دئ درکوم یې.

بله ورځ سهېلي بیا مرکه ور واستوله، ببۍ یې ورکړه، په ډېر عزت یې واده کړه، هر رنګه واده چې و، وبه ! و فېروز ته یې ډېره دنیا ورکړه نهایتي یې خوشاله کی، ببۍ یې کور ته راوستله، تر ټولو ښتو ماینو یې غوره کړه او تر ټولو پر ګرانه ده، خورا عزت یې کوي. ببۍ هم د باچا په حق کي خورا راسته ده چې باچا د باندي څخه راسي، دا یې د روه پر مخ دسمال ور تېر کي، موزې او موچني یې ور پاکي کي. "دوی دالته پرېږده عشق دي کوي"

نوروز او فېروز بیا په سوداګري ولاړه، خو د هغې خوا چې راتله خورا ډېره دنیا یې پیدا کړه، د ماینو یې هم د حمل موده نه میاشتي نه ورځې نه ګړیه پوره سوي دي، د دې فېروز بیا لور وزېږېدله، د نوروز زوی پیدا سو. د فېروز د لور نوم یې (ګلمکۍ) کښېښو او د نوروز د زوی نوم یې (موسی

جان) کنبښو، دستي يې د ګلمکۍ او د موسی جان نکاح سره وتړله.

خير ! عمر دئ تېرېږي يوولس دوولس کاله په دې منځ کې تېر سوله، موسی جان او ګلمکۍ د وړوکوالي څخه سره مين دي، يو ګړی يې توان نه سره کېږي، مګر زړونه يې بېغمه دي چي په حلاله نکاح يې سره ور کړي يو نن يا سبا به مو سره واده کي.

کارونه د خدای دي فېروز مړ سو، فېروز خو زوی نه درلود، نو د موسی جان مور و نوروز ته ووېل چي ورسه دا نجلۍ ځني راولاړه که سبا به يوه بده و بېرانه پېښه سي.

نوروز د ګلمکۍ کره ورغلی چي زموږ ښځه په لاس راکه، ګلمکۍ خو په کوچنيوالي پلار زما و زوی ته راکړېده، او فېروز هم دغسي وصيت کړی دئ، د ګلمکۍ خوندو او مور يې ورته ووېل چي يه ! د مړه خبر په مړه پسي ولاړه، که تاسي و موږ ته پوره ولور راکوئ خو ښه که نه وي نه سره رسېږي، دوی ناعلاجه سوه څه ولور يې ور کی څه يې پاته سو، وې ويل چي هر وخت دي دغه نور ولور راکی نو به يې واده کئ.

د موسی جان ټوله ورونه سوداګري کوي، دی هيڅ نه کوي، يوه خاشه پر بله نه ايږدي، په دې مابين کي نوروز هم مړ سو.

دا موسی جان ورسره په تکليف سو، ورونو ته يې ووېل چي ما ته وېش راکئ ورونو يې فکر وکي چي موسی جان تر موږ ټولو کشر دئ، کوچنی هلک دئ، مبادا سبا به يې يوه بده و بېرانه د لاسه ختلې وي ټول به پوري حيران يو، نو ورته ويل يې چي ښه دئ وېش در کوو، خو وېش يې ور کی، موسی جان جلا سو د ګلمکۍ د ميني اور يې په زړه کي بل دئ، مګر د پښتني غير ته څخه څه نه وايي، موسی جان ډېر ښه ځلمی او سخي سړی و. موسی جان هره شپه ساز و صحبت کوي، مجلس وي ورونه يې هم څه نه ورته وايي، خو موسی جان په پنځه شپې کي هغه د پلار ګټلې ګرده سره وبازله، الپي الا سو، هغه ياران چي د ده سره به يې ډوډۍ خوړله او عيشونه به يې کوله هغه ټوله ځني بېزاره سول.

يوه ورځ د موسی جان مور و زوی ته ووېل چي ورسه خپله ماينه دي راواده که، دی چي راغی هغو ورته ووېل چي ورسه روپۍ راوړه، ده روپۍ نه

درلودې، هغو ښځه په لاس نه ورکوله، موسی جان ته غیرت ودرېدی دا یې مناسبه نه ګڼله چې په زوره د ښځو څخه ګلمکی راوباسي او بل یې سهېلي زوم او اخښی دئ زه یوازې یو یم، نو یې فکر وکی چې ګورم به، خو طبیعت یې خته دئ، چې دا څنګه چل پېښ سو. نو یې دا مناسبه وګڼله چې د دې وطن څخه ورک سم، نو را رهي سو، هله هله هله راغی مزل پر مزل تر خپل وطن راووت یوې بلې علاقې ته ورغلی ډېر ورې دئ د یوې کلا دمخه سره څو کسه بازې کوي مجلس دئ، دی راغی سلام یې ور واچاوه، هغو ستړې مسې ور ته وکړه، زیاته یې چرت نه پکښې وواهه، موسی جان ور ته وویل چې ځوانانو زه مزدوري کوم، خلکو چې د ده و رنګ ته وکتل په نظر یې یو شازاده ورغی، ولي د ده ډېره ښه سکه وه، نازک بدن یې و، فکر یې وکی چې دا سړی مزدوري نه سي کولای، نو یې ور ته وویل چې یه ! نه ته مزدوري کولای سې او نه موږ مزدوري در کوو.

خیر ! د غیر ته یې ږغ ونه کی هیڅ یې ونه ویل، د دغه ځای څخه را رهي سو خو دغسي ورې تېرې یوې بلې کلا ته راغلی، بیا یو څو کسه سره ناست دي بیا ده ور ته وویل چې زه مزدوري کوم، هغو هم فکر وکی چې ګوروان نه لرو، ګوروان به یې کو، ګورم به پیایي، ور ته ویې ویل که ګوروانې کوې خو ښه دئ، زموږ ګوروان هم وتلی دئ، موسی جان ویل ښه دئ، آبس کلي هم ګورم په لاس ورکی، خپل ګورم پیایي، هره ورځ یې یوه چمن ته بیایي، راولي یې ماښام ټوکان ټولوي، خو فکر یې ډېر بد او طبیعت یې خته دئ.

بله ورځ یې یوه بل چمن ته ګورم بوت، که ګوري په دې چمن کي یوه د خاشو کوډل ولاړه ده په دې کوډل کي یو ملنګ ناست دئ یو رباب ور ته ځړېږي.

موسی جان ور ته راغی سلام یې ور واچاوه، ملنګ ستړې مسې ور ته وکړه، ویل ځوانه د کم ځایه راځې؟ ده ور ته وویل چې زه د دې کلي نوی ګوروان سوی یم، خورا خپه یم که یو ګړی دغه رباب راته ووهې ! ملنګ هم رباب راواخیستی سُر یې کی، داسي رباب یې وواهه چې توبه ! د دې موسی جان او د ملنګ سره اشنایي سوه، موسی جان هره ورځ دغه چمن ته بوده

راولي بيايي يې، دی و ملنګ خپل رباب سره وهي، آخر تـه موسی جان هم رباب زده کی سات يې سره تېر دئ، "دوی نو دالته پرېږده".
يو ولي جان نومېږي، د وليجان يو څه مځکه وه د يوه سړي سره يې پر دغه مځکه دعوه وه څو دغه دعوه تر سهېلي پوري ورسېده، دا سړی ډېر دولتمن و، د باچا سره هم تيار و، شاوخوا يې رشوت وبازه څو سهېلي پر وليجان حکم وکی چي ملامت يې، کـه څه هم باچا پـه خبر و، چي حق د وليجان پـه جانب دئ.
د وليجان خورا طبيعت خراب سو ويل خير ! زه به هم خپل واري تـه ګورم کور تـه ولاړ.
هلته د سهېلي د ماينو اوقات تريخ سو، باچا هيڅ کاتـه نه ورتـه کوي، يوازي د ببی سره خپت دئ.
دې ماينو يې سلا سره وکړه چي راسئ د دې يو بندوبس وکو، خپل بند يې سره وتاړه چي ببی به بوزو داسي به په وکو داسي ...
آخر تـه يې ببی تـه وويل چي دا دونه عمر وسو پـه دې څلورو دېوالو کي د بند بندی ناسته يې، صورت دي وخوړل سو اوه يې کړه.
دې ورتـه ويل نو څه وکم؟
دوی ويل د باچا څخه رخصت راواخله د پسرلي وخت دئ تازه هوا ده، ګلان غوړېدلي دي، شين دښت دئ، موږ بـه لا هم يوه مېلـه درسره وکو، ګوندي ستا د رويه لا موږ هم پرېږدي.
ببی ورتـه وويل چي باچا تـه پر څه ډول ووايم؟
دې بنو يې ورتـه وويل چي چم يې داسي دئ، چي نن سهېلي د درباره څخـه راسي تـه بالکل چرت مـه پکښې وهـه او مـه ور ولاړېږه، مـه يې سلام کوه، بلکي د لاسه لا شا ور وګرځوه. تندی تريو ونيسه. خود بـه دی پوښتنه درڅخه وکي چي ولي داسي خوابدې ناسته يې؟ تـه بـه ورتـه ووايي چي دا د پسرلي وخت دئ، تازه هوا نوي ګلان، د بلبلو نارې، پـه شنو باغو کي د اوبو شرهار، او سره ګلان، وطن ټوله ګل ګلزار دئ او تـه تل مدام تللی يې خپلي مېلې او تماشې کوې، چکرونه و ګښت وهې موږ مسکيناني، بېوزلي، عاجزي د بند بندي تمامي عمر پـه دې څلورو دېوالو کي ناستي يو، هيڅ ځای مو نـه

دئ لیدلی نو خود به خپه ناسته یم. ته هیڅ زړه سوی نه لرې چې د دې خوارانو خو هم دغسې زړه دئ لکه زموږ چې هوا کېږي د دوی به هم داسې هوا کېږي. نو که یې تا ته یوازې رخصت در کی، خود به ته ورته ووایې چې و دې بنو ته مې هم رخصت ور که چې سات مو سره تېر وي.

دې ببۍ ویل ښه دئ !

په دې سهار چې باچا ولاړ ماښام چې بیرته د دربار څخه راغی، دې ببۍ هیڅ خیال نه پکښې وواهه، نه یې سلام ور واچاوه، د خونې په دروازه کې ناسته ده شا یې ور وګرځوله.

د باچا خورا طبیعت خټه سو، چې دا ولې نن هیچا زما تعظیم ونه کی، خو دغسې ولاړ دئ، د ببۍ څخه یې پوښتنه وکړه چې چا جنګ درسره کړی دئ؟ چا ښکنځل در ته کړي دې ولې داسې جوټه ناسته یې؟

دې ورته وویل چې ولې به جوټه ناسته نه یم، دا د پسرلي موسم دئ، دا ښه هوا ځنګه و ځنګه خو هغه تقریر یې ورته وکی، باچا یې په حال خبر کی.

باچا وویل خدای دې نه کوي څنګه به زه تا خپه کوم زر کړ ته خو ولاړه سه ! خیر خو د هغو نورو څلویښتو ماینو رخصت یې هم ځنې واخیستی.

په دې سبا باچا دمخه خواجه ګان وایستل په یوه لوی دښت د غره په لمن کې یې خېمې ودرولې، خواجه ګان یې شاوخوا پر ګوښو ودرول چې هوښ کوئ هیڅوک مه پرېږدئ، خواجه ګانو هم شاوخوا بندرونه ونیول، د باچا څلویښت ماینې دې یوه شابیبنه (ببۍ) ده راغلې په دښت کې په خېمو ننوتلې کښېنستلې، خپل عیش او عشرت کوي، بازۍ کوي پوړنې یې غورځولې دي.

هغه ولي جان چې سهیلي پر مځکه ملامت کړی و په ښکار راوتلی دئ، هوسۍ یې پسې را اخیستې ده، هوسۍ د باچا د ماینو د خېمو و خوا ته الا کړه، چې ده آس پسې ور وځغلاوه خواجه ګانو منع کی، ویل دوري مه ځه د سهیلي حرم راوتلی دئ حکم نسته.

ولیجان چې په خبر سو، وخت یې غنیمت وګاڼه چې څنګه ښه موقع خدای په لاس راکړه، آبس آس یې راپنده کی د خواجه ګانو څخه په زور راتېر سو راغی برابر د ښځو خېمې ته د ښځو پوړنې پر سر نسته، دی جګ

ورته ودرېدی، خو هغو (یوی یوی) سیده کی، ولیجان پکښې کتل کتل دا ببی یې تر ټولو خوښه کړله، (ځکه دا تر ټولو ښایسته وه)، آس یې ورته راتېر کی توره یې پسي راوکښله ببی ته یې ویل چي ژر کوه سپرېږه، که نه وي اوس به دي سر غوڅ پرې کم، هغه هم خواره چټکه تر شا پسي سپره سوه، څو خواجه ګانو کونه سره ښوروله ولیجان ببی یووړه.

خواجه ګانو فکر وکی چي د سهېلي هغه ګرانه ماینه یې بوتله، که موږ ورغلو یو به ژوندی نه پرېږدي، خو دا هم پر هغه مخ وتښتېدل.

ښځي که څه هم نهایتي خوشحاله سولې، لیکن اوس د سهېلي څخه بېرېږي چي ببی تاسي وژلې ده یا مو څه کړه؟ موږ به څه جواب وایو؟

آخر ته (ښځي دي مکرونه یې ډېر زده دي)، دا پلمه یې سره جوړه کړه چي موږ کور ته ورسو ټوله به سره ژاړو، باچا چي راسي دی به وایي ولې ژاړئ؟ موږ به وایو چي افسوز دئ هغه ستانېکۍ او د ببی بې شرمي ! چي موږ سهار دښت ته ولاړو دې د مخه لا د یوه ځوانه سره قول کړی و، دمخه یې لکه چي تار ورسره اچولی و، چي موږ په بازیو اخته سولو یو ځوان پر آس سپور توره کښلې په زوره تر خواجه ګانو راتېر سو، راغی دا یې دستي تر شا سپره کړه ولاړه، تا ته یې هم ښکنځل وکړه، موږ ته یې هم پوچ وویل. دا بانه یې جوړه کړله ماښام ښځي کور ته راغلې، په کلا کي څوک نسته د سهېلي هم زړه فارغ دئ، هلته په دربار کي ناست دئ، وایي چي کور څوک نسته نو څه کوم چي ورځم. خو ماخستن کور ته راغی که ګوري د ماینو یې سنګهار دئ، یوه هلته ناسته ده ساندي وایي یوه دلته ناسته ده ساندي وایي، دوباره سهېلي شاوخوا وکتله ببی نسته نو پوښتنه یې ځني وکړه چي ولې ژاړئ؟ او ببی چیري ده؟ دې ماینو یې دا تېر نقل ورته وکی چي داسي یار یې درلود، څنګه او څنګه او خواجه ګان د بېري وتښتېدل ببی ولاړه.

د سهېلي نهایتي ډېر طبیعت خټه سو، زړه یې خورا تنګ سو، خو څه یې ونه ویل ولاړ پرېووت، خو تر سهاره لټ پر لټ کېږي، ښوري د خوابدی خوب نه ورځي چي یوه خو مي ښایسته ماینه ولاړه او بل څونه بدنامي ده.

سهار چي دربار ته راغی د باچا ښه پر بله اوښتې ده، مخ یې تک سور دئ عملې یې پوښتنه ځني وکړه چي صاحب ! ستا قربان سم ولې دي

طبیعت خراب دئ؟ څه درپېښ سوي دي؟

سهېلي دا تېره کیسه ورته وکړه، چي : ببۍ ورکه ده.

دي عملي یې ورته ویل دا آسانه امر دئ، فکر مه خرابوه، هغه به هم خدای پیدا کي او بله به تر هغې ښایسته ښځه وغواړې! خو باچا ته یې د زړه ډاډ ورکی. دستي یې شاوخوا سړي پسي ولېږله چي ګوندي کم څرک یې پیدا کي.

دلته د ګلمکۍ خپلوانو فکر وکی چي ببۍ خو ځني ورکه سوه، او دا ګلمکۍ خو مېړه لري، باچا دئ که یې یو واري وویل چي زه ګلمکۍ غواړم، نو موږ به څه کوو، د لاسه مو څه نه ورسره کېږي، نو یې ګلمکۍ په زېرزمینې کي واچوله، دا انګرو زه یې ګډه کړه چي ګلمکۍ ناجوړه ده، دوې درې ورځي چي تېري سوې نو یې یو پنډ تیر لکه سړی په سپین کفن کي وپېچی یو څو ښځي یې پر راټولي کړې ژاړي، یوار چټک چوکه سوله چي ګلمکۍ ناجوړه وه، مړه سوله.

خیر ! جنازه یې جوړه سوله دا تیر یې یووړی په قبر کي یې ښخ کی، د ګلمکۍ پاتا یې واخیستله.

هغه سړي چي په ببۍ پسي تللي وه، ببۍ یې پیدانه کړه، دې وزیرانو یې ورته وویل چي بله ښځه به در وغواړو، یو چا وویل چي د ده وړ ګلمکۍ ده، د ببۍ خور، سهېلي ویل چپ که هغه خوارکۍ خو لا دوختـه مړه ده، یوه زړه ګوبیره بوډۍ ده راغله و باچا تـه وایي چي ستاسي اختلاف دئ، زه به د ګلمکۍ حال درته راوړم اما هو ما ته به ډېري روپۍ راکوې. ګلمکۍ ما تـه معلومه ده، باچا ډېر خوشحاله سو خورا ډېري روپۍ یې ورکړې، دې بوډۍ ته یې درک معلوم و، برابر راغله د هغې زېرزمینۍ د خولې سره کښېنستله، سر یې پټ کی په زوره زوره په کوکارو ژاړي، د ګلمکۍ پکښي فکر سو.

دوباره یې تر دربچې وکتل زړه یې پر وسو ویل آبوډۍ ! ولي داسي ژاړې خیر دئ؟ بوډۍ د مکر پاڼي راپورته کړې ویل آ زویه ! څه درته ووایم په پخوا وختو کي زه لا کوچنۍ وم، پلار مي بېسده خان و، زه تل مدام لالا ګانو پر اوږو ګرځولم، چي لږ څه غټوکې سولم نو یې دوی مینځاني راتـه مقرري کړې چي زما خدمت یې کاوه، بیا چي لو سولم نو یې و پلاني خان تـه

ور کړلم، په څه درب و دروب یې واده کړلم، بیا الله تعالی زامن راکړه، "یو واري شنه د ژړا ولاړه سي ځان د مځکي ووهي سر وشکوي"، ټوله زامن مي مړه سوه، مېړه مي مړ سو، دنیا مي دربدره سوه، اوس پر یوه ګوله ډوډۍ قدرت نه لرم، پکر ته اړه سوم پکر کوم. یوه لور لرم د هغې خوا اختر راغی لور مي کالي غواړي هر ګړی راته ژاړي، زه پیسه نه لرم او نه جامه لرم، اوس اریانی اخیستې یم نه پوهېږم چي خدایه ! څه وکم.

د دې ګلمکۍ ډېر زړه پر وسو، دوباره یې خپل اغوستې یوه جوړه کالي ورکړه چي دغه دي لور ته یې یوسه.

بوډۍ کالي راواخیستله برابر یې و سهېلي ته په وچ تاخت راوړه، دا تېر نقل یې او د دې نخښي یې ټوله ورته وویلې چي نه ده مړه دغه یې کالي دي.

باچا د ګلمکۍ خپلوان راوغوښتله ویل دا ښځه مو ولي پټه کړې ده؟ دوی هغه نقل ورته وکی چي دا خو مېړه لري، مېړه یې هم ور ک دئ، موږ فکر وکی چي د مېړه ښځه ده سبا به سهېلي په زوره بېولې وي، هم به زموږ غاړي بندي وي هم به د ده، نو خود مو پټه کړله.

سهېلي ورته وویل چي خدای خبر هغه مړ وي که چیري وي، که بالفرض راغی زه به ښه ښځه ور وغواړم.

خپلوانو یې ورته وویل چي ته باچا یې څه مو د لاسه نه درسره کېږي، په ګلمکۍ موږ کار نه لرو ورسه هر څه چي یې کوې خپله خوښینه دي ده رضا یې که.

سهېلي پخپله د ګلمکۍ کره راغی، ګلمکۍ ته یې ویل چي ته مخ رانښکاره که چي ودي ګورم، "د دې صفت خو دمخه لا ورته سوی و، چي تر بي بی دا ښایسته ده"، دې ګلمکۍ فکر وکی چي زوره ور دئ هیڅ نه ورسره کېږي، او زما مېړه هم ژوندی دئ نو زه څنګه مخ تور کم، دوباره یې ورته وویل چي ډېر ښه دئ، ته شپېته ګزه دار جګ که پر سر یې درې کټوري د سرو زرو ور کښېږده، هر چا چي دغه درې کټوري په غشو راواچول نو زه به تا مېړه کم (په دې کي یې مقصد دا و چي ګوندي په دې ترڅ کي موسی جان پیدا سي)، خیر ! دې سهېلي هم شپېته ګزه دار جګ کی، درې د سرو

زرو کټوري يې پر سر ور کښېښوول، نو يې د وطن ښکاريان راټول کړل حکم يې وکی چې هر چا که دغه کټوري راواچول دونه روپۍ يې انعام دئ، اوس نو هر څوک راځي ولي يې، ځان پر ګوري.

"د وليجان د ببۍ ځخه زوی پيدا سو، خلکو زېری پر وکی، يو ګړی چې وسو بيا سرو زېری پر وکی چې هغه ستا ماديانه هم لنګه سوله، نر کرنګی يې وزېږاوه، وليجان خوشحاله سو د زوی نوم يې ميرولي کښېښو او د بهاڼ نوم يې پړانګی کښېښو، نو يې وويل چې دا پړانګی د ميرولي دئ، چې دواړه سره لوی سي نو به ميرولي پر سپرېږي"، سهېلي فکر وکي چې هيڅوک دا کټوري نه سي را اچولای، زه به تر څو پوري دا د غم شپې تېرومه وېې ويل چې ګلمکۍ به په زوره راولو، يوه ښځه ده ولي دا دونه تکليف پر ځان تېروو، دوباره يې جوپان او سړي ور ولېږله چې ورسئ رايې ولئ. ګلمکۍ چې خبره سوله چې نه کېږي، بيايي مي، نو يې يوه خورا تېره چاړه ورسره واخيستله، خلک راغله ګلمکۍ يې په زوره په جوپان کي يووړه ور يې وستله د باچا په حرمسرای کي يې کښېنته کړله، چې ماښام سو سهېلي راغی چې خوني ته ور ننوت ور نژدې سو، ګلمکۍ مخ ځني پټ کی، سهېلي ور تېر سو، ګلمکۍ وژړله ويل مه کوه مه راتېرېږه، زه بل مېړه لرم، موسی جان نومېږي، ته يواري دغه موسی جان پيدا که رايې وله يا يې مړ که يا مي په طلاقه که يا دغه کټوري په غشي راواچوه، تر هغه ساعته زما ديد پر تا حرام دئ، يواري يې چاړه راوکښله و خپل لړمانه ته يې ونيوله، ويل که راتېر سوې زه ځان په دغه چاړه وهم، او که مي پر تا لاس بر سو، تا وهم، زما په ژوند والله که لاس راوړې مګر زه مړه سولم يا دي بله چاره ونه کړه.

سهېلي فکر وکی چې اوس يې پای څه؟ موسی جان نه پيدا کېږي، او که پيدا سي په لاس نه راځي، خير خو ناعلاجه سو په موسی جان پسي يې خلک ولېږل، و کټوريو ته يې هم ښکاريان وفرمايل.

"يو ملنګ دئ را رهي سوی دئ، دا دئ هغه چمن ته چې موسی جان ګورم پکښې پيايي راغی، ورغی هغې کوډلي ته موسی جان سترې مسې ورسره وکړه دوباره يې پوښتنه ځني وکړه چې سړيه ! د کمه راځې؟ ده ور ته وويل چې د سهېلي د ښاره راځم، موسی جان وويل ګلمکۍ جوړه وه؟

ملنګ ویل چي هغه خو سهیلي په زوره بېولې وه، دا نقل یې ټوله ورته وکی، باره ملنګ پر خپله تره ولاړ".
موسی جان خورا ډېر خوابدی سو، خو رباب یې راواخیست سُر یې کی داسي یې وواهه چي هغه خپل انډیوال فقیر ګوته په غاښ ورته ونیوله. فقیر دغه رباب موسی جان ته ور وباخښه، وروسته موسی جان ویل فقیره ! د دې پای یې څه؟ فقیر ورته ویل چي دا د بل چا د لاسه نه کېږي، په ارنایي کي ولیجان نومېږي، په اصل ترین دئ، چي خورا یو زبده بهادر، غښتلی او توریالی او ډېر وفاداره ځوان دئ، که هغه څه درسره وکړه خو ښه، که نه وي د لاسه دي څه نه ده پوره.
موسی جان ګورم پرېښو، رباب یې و څنګ ته واچاوه، د فقیر څخه یې دعا او رخصت راواخیست را رهي سو، هله هله دا دئ ارنایي ته راغی، برابر پر پوښتنه د ولیجان مهمانخانې ته ورغی، د ولیجان سره یې روغبړ وکی، ډوډۍ چي یې وخوړله ولیجان ورته وایي چي ځوانه ته خو یو ګړی دغه ستا رباب راته ووهه چي لږ څه مي طبیعت خټه دئ، چي طبیعت مي لږ څه ښه سي بیا به پوښتنه سره کوو.
موسی جان هم رباب د کځوړي څخه راویوست سُر یې کی داسي رباب یې ورته وواهه چي ټوله داسي منګ ورته ولاړل، خیر خلک چي سره ولاړه ولیجان پر رباب او د ده پر ځوانۍ عاشق سو، ویل سړیه ! ته به نه ځې ! هر څه چي غواړې زه یې در کوم او اوس نو پوښتنه درڅخه کوم چي څنګه راغلی یې؟
موسی جان ورته وویل چي زمانوم موسی جان دئ اود ګلمکۍ نقل یې ورته وکی، "دې ولیجان ته خو ببۍ ټوله نقلونه سر تر پایه کړي وه" یو وار یې سره وپېژندل ولیجان ویل چي هغه ببۍ نامې خو زما څخه ده، موسی جان یې کور ته بوت، د اکالور یې هم خپه وه سره ویې لیده خورا خوشاله سوله، روغبړ او پوښتنه یې سره وکړه، اوس نو سره اخښیان سول، خورا سره ګران دي لاس د وروري یې سره ورکی، د ولیجان یو آس و چي نوم یې اتم پر ایښی و، دا یې و موسی جان ته ورو باخښه او یوه جوړه یې غشي و لینده ورکړه ولیجان ورته وویل چي خدای به یې اسانه کي، خدای د کراري مل دئ، واري ته به ګورو خوا مه بدوه، موسی جان و ولیجان هره ورځ ښکار ته

ځي او راځي خورا يې سات سره تېر دئ.

يوه ورځ دوى په ښکار تللي دي، دې سهېلي د دوى ځر ک وايستى چې موسى جان او وليجان نومېږي، ډېر ګنده پهلوانان او ښکاريان دي چا ورته وويل چې دا کتوري ببله دوى څخه بل څوک نه سي را اچولاى، نو خود اووه کسه سپاهيان يې ور ولېږل چې ورسئ موسى جان او وليجان راولئ، که په رضانه راتله په زوره يې راولئ، سپاهيان هم را رهي سول ويل دا دوه کسه دي څه لحاظ يې کوو، چې ورسو د روه به يې زند و بند وتړو راکش به يې کو.

خير ! دا سپاره چې راغله د وليجان د کلا دمخه ودرېدله، ميرولى د وليجان زوى کوچنى هلک دئ، په بجلو او بازيو اخته دئ، دا سپاره چې يې وليدله راغى سلام يې واچاوه ورته ويې ويل تاسي کښته سئ په مهمانخانه کي کښېنئ، ډوډۍ به وخورئ هر څه چې وي خداى به يې اسانه کي، خو سپاهيان خورا پېشرو وهي نه کښته کېږي.

تر دې مابين موسى جان و وليجان راورسېده، د ليري څخه يې دا سپاره وليده چې ولاړ دي، وليجان و موسى جان ته وويل چې ميرولي لکه چې د دې مېلمنو عزت نه دئ کړى چې ولاړ دي، وليجان قسم واخيست که يې د مېلمنو عزت نه و کړى که يې بې مرګه پرېږدم. چې رانژدې سول که يې کتل ميرولى زارۍ ورته کوي چې کښته سئ! دوى نه کښته کېږي، وليجان چې خپل زوى وليد ډېر ځني خوشاله سو، ويل آفرين بېشکه زما زوى يې، پښتون يې، دوى چې بېخي رانژدې سول که ګوري اووه کسه سپاهيان دي، "د دې وليجان يوه خور وه تانو نومېږي دا پر بام ولاړه ده، ګوري چې کله به دوى راسي موسى جان تانو وليدله چې پر بام ولاړه ده، وپوهېدى چې يو څه تکه سته، نو موسى پر تانو باندي ناره وکړه،(څه بې ويلي وي. )، (هر څه چې وي وابه يې روې) :

که پوځي د تانو خولګۍ مي پوځي

ما په خداى قسم در کړى –تانو خوري دا راغلي سپاره څوک دي

تانو چې دا وارو بده د بام د خوا يې ناره پر وکړه چې پوه سي :

موسى جانه تا په خداى کړم بزه ګاره

په هغه خداى زما قسم دئ–دا راغلي سپاره د سهېلي دي

د موسی جان خو دمخه لا زړه خوړین و، یو توپک یې درلود چې نوم یې همدم پر ایښی و، چې د سهېلي نوم یې واروېدی دستي یې سترګي چپه سولې توپک یې ورته کښېښو پایې یې په مځکه ونجتلې او روبکري یې پر ووهله ، ټک یو یې ځني وویشت، دې د سهېلي سپرو فکر وکی چې اوس به ګرده دالته قتل کي، نو یې پر موسی جان ناره وکړه :

که همدم دئ موسی جان توپک همدم دئ

تې پایې د مځکي کاږه، زموږ په سپین قرآن له تا سره قسم دئ

موسی جان و دې ته غوږ نه ونیوی خو ورته سنګر سو، شپږ تنه یې ځني وویشته، یو سپاهي په تاخت ځني ولاړی سهېلي ته ورغلی ساه یې لنډه لنډه کېږي، داغسي سالنډی په دربار ورننووت، دا کیسه یې ورته وکړه چې هغه داسي خلک دي چې توبه، ته یې نه سې راوستلای، ببې هم هلته وه.

د باچا ډېر طبیعت خراب سو چې تا خو به پټ راته ویلي وای، په عام دربار کي داسي خبر ښوک نه کوي، خو مغزی په وځړېدی چې ددې پای یې څه؟ مجلسیانو یې ورته وویل چې د زور یاري خونه کېږي، فایده نه کوي، یه ! ته قرآن شریف مهر که ور ویې لېږه ګوندي راسي بیا هر څه چې په کوې.

سهېلي هم قرآن شریف مهر کی، د سیدانو او ملایانو په لاس یې ورکی ور ویې لېږی ورته ویې ویل چې ورسئ رضا یې کئ راېې ولئ.

دا مرکه چې راغله موسی جان او ولیجان د کلا دمخه پر دېواله اګې کتار کړي دي یو یې د یوه سره په غشي ولي او بل یې د بله سره یوه یوه اګې ولي، خپله سترګه پخوي، دې سیدانو د ولیجان او موسی جان په غېږ کي قرآن شریف ور واچاوه، هغو قرآن شریف واخیست مچ یې کی نو یې ورته وویل چې څه نقل دئ؟ څه دي؟ دوی د سهېلي او د ګلمکې بیان سر تر پایه ورته وکی خیر خو ډېر عزت یې وکی سیدان یې رخصت کړه چې ښه دئ سبا به موږ پسې درسو.

سیدان چې ولاړه دوی دواړه کور ته راغله چې سلا سره وکي، چې ورسو که یه، د ولیجان خور تانو ورته وویل چې یه مه ځئ، ولي چې دښمن دئ "د دښمن دا اول کلام پسې تیفونه"، د دښمن په قرآن او قسم باور نسته، ښوک دي باور نه په کوي، هر څه دلایل چې تانو او نورو ورته وویل دوی نه

پاتېده ويل يې مور، څو، څكه چې دا به بيا يو لوى پېغور راپاتـه سي او بلكي زمور، و نسل ته به خلك پېغور وركوي چې هغه مو پلرونه وه چې د سهېلي د لاسه به كور د ښځو تر پلو لاندي پټېده، او چپ له دې د باچا سره هم څه نه كېږي، چې سبا به يې په كلا كي د ښځو دمخه لاسونه راتړلي وي او كشوي به مو، و مور، ته ګاز راجوړ كى سبا څو، خو كاروبار يې جوړ كى بيده سوه، دغه تانو تمامه شپه ويښه ده خوب نه ورځي نه بيدېږي، وايي كه بيده سوم بيا به يې نه ووينم خو په دغه چرت كي ده پرېشانى يووړه، بيده سوه. خوب ويني چې "زما د لاسه ښځه يو باهو مات سي"، خو راويښه سوه چې خداى دي فضل كوي سهار وختي وليجان آس راتېر كى، چې څو به ځينوي يې د آس ششنى دئ تانو وارو پدى دوباره يې ناره پر وكړه :

وليجانه برايي مي خوب ليدلى

چې په لاس مي دوه باهو وي – دغه يو له بله و مو بنلي يو مات سي

چې يعني ما خو دا خوب وليدى مه ځئ يوه واكيه او ډكه به درپېښه سي، خير ! خو دوى چې راوتله د ښځو سره ژړا سوله، كوڅې تـه چې راووتله، وليجان و موسى جان ته آس وركى چې دا يو ګړى تكيه كه چې زه ورسم دغه ښځي دلاسا كم، وليجان كور تـه راننوت خو يو ګړى وځنډېدى هلته و ښځو ته نصيحت او دلاسايي وركوي چې مه ژاړئ خداى مهربانه دئ بير ته به راسو، موسى چان په دروازه كي ودرېدى، ناره يې وكړه :

وليجانه دا د ښځو په قول نه سې

وليجانه ژر راووزه – د كړوسو به مو پېغور سي

چې يعني پاته نه سې، وليجان هم دستي د كور څخه راووت پر آسانو سپاره سول، تانو پسي راووتله ناره يې پر وكړه :

وليجانه مخ راستون كه زما جانه په ديدن دي مړه نه سوم

ورځئ ورځئ په مخ مو ښه سه – وليجانه غائبانه سپاره مو مله سه

تانو فكر وكي چې د موسى جان خوابده نه سي، چې ګوره دى خور لري زه څوك نه لرم نو پر ده يې هم ناره وكړه :

كه توره د موسى قبا ده توره

د دار مځكي له چې ورسې – د دار لاندي مځكه ګوره

چي يعني تر دار لاندي يې څانه وي کيندلي پکښې ونه لوېږي پام کوه، بيا يې بله ناره پر وکړه :

موسی جانه چي په پښو دي کج موزې دي
د دښمن خواړه ونه خورې –وا په خوله مو د ايام فرضي روژې دي

يعني که يې ډوډۍ درکوله ورته ووايه چي زموږ روژه ده هوښ کوه چي ويې نه خورې نه بايده دښمن دئ چي زهر يې نه وي پکښي اچولي.

خير ! خو د کوره څخه را رخصت سوله را رهي سوله، خپله وسله يې پوره تر غشي ولينـدۍ پـوري راواخيسـتله، هلـه هلـه هلـه دا دي ښـار تـه راورسېده، هغه د مرکې خلک چي په دوی پسي راغلي وه باچا ته ورغله "چي ګوندي انعام راکي يا نور څه"، حال يې ور وړی چي دا دي موسی جان او وليجان مو راوستله، سهېلي خوشحاله سو د دوی مخي ته راولاړ سو پر آس سپور سو، خو هغه هم راغله په دربار ورننوتل، موسی جان و وليجان فکر وکی چي اوس به مو بېځايه دواړه دالته خپ و چپ کي مړه به مو کي، په راسه چي د سهېلي رموز معلوم کونو وليجان ناره پر وکړه :

که ورو[1] که د نيلي واګي[2] را ورو که
که په زړه څه لرې –سهېليه په نري رموز مو پوه که

سهېلي فکر وکی چي دوی لکه چي بېرېږي، اوس به په سم دربار کي فساد جوړ سي، نو سهېلي ناره پر وکړه :

که را ورو که موسی جان نيلی را ورو که
چي نيلی دوه قدمه اخلي –دا دريم دي د سهېل پر لېمو که

خير ! خو زړه يې سره وموښت نژدې راغله نوکرانو آسان څني ونيول دوی يې پر چوکيو کښېنوله، پس له روغبړه او ډوډۍ خوړلو، د سهېلي د کور د څنګه يو د ده مخصوص باغ و، و دې باغ ته سره ولاړه چکر وهي، ليکن سهېلي يې نه پېژني چي کم يو موسی جان او کم يو وليجان دئ، په دې ترخ کي ګلمکی خبره سوله، چي موسی جان او وليجان راغلي دي، دستي پر بام وختله که

---

[1] ورو که : يعني سستي يې که.
[2] واګي : جلو، ملونه.

ګوري دواړه يې وليدله، موسى جان يې وپېژاند ګلمکى ناره پر وکړه :

سهېليه ستا په باغ کي سپاهيان څوک دي

يو موسى دئ بل ولي دئ – موسى څونې غوړي کړي توکي توکي [۳]

سهېلي هم وپېژندل، او د ګلمکى مينې په زړه نو يو الله خبر دئ، آه ! خو مازيګر سو شپه تېره سوله سهار راغله د دار ميدان ته، شپېته ګزه دار جګ ولاړ دئ، په سر کي يې درې د سرو زرو کټوري ور ايښي دي، وليجان کښېنوست.

سهېلي ډولچيان ورته راوغوښتله ساز ورته کوي، موسى جان غشى و لينده راواخيستله پر آس سپور سو، راغى و دار ته، مخلوق د خداى راوتلي دي سيل کوي چي دا دونه عمر چا ونه ويشتل اوس دا څنګه ځوانان دي، چي کټوري را اچوي. موسى جان غشي و لينده په ګرت کي ورته سم کړه "ټاک سو"، په اوله پلا يې يو کټورى راواچاوه، بيا يې بل کټورى د لاندي راواچاوه، "تر دې مابين د ښار د ښکاريانو زړه درد وکى چي دا دونه عمر يې ځانونه پر سترې کړي وه، ليکن هيچا ونه ويشتله نو يې لاس پورته کى، د موسى جان په حق کي ښرا کوي، دې موسى جان فکر وکى چي دا لکه چي و ما ته دعا کوي، ده هم لاس پورته کى امين امين لري"، چي پاتا [۴] خلاصه سوله، موسى جان و دې دريم کټوري ته غشى سم کى خو چي راکش يې کى بلا يې پر غشي سوله، غشى يې په موټه کي غوټ مات سو، موسى جان راغى پر وليجان يې ناره وکړه :

وليجانه ! د ترينانو په سروزو کي

دغه دوه واري مي وکړه – پر دريم مي غشى مات سو په قبضه کي

وليجان پر موسى جان ناره وکړه :

که ګيلې کي موسى جان ورور مي ګيلې کي

دغه زما غشى در واخله – د سرو زرو يې کاني [۵] نظر يې نه کي

---

[۳] توکي توکي : يعني ګلوله ګلوله.

[۴] په لومړي چاپ کي پاتا ليکلې ده، شايد دا طباعتي غلطي وي او اصل يې دعا وي. (م. روهيال)

[۵] کاني : بيلک

موسی جان د ولي جان غشي راواخیستی راغی دغه بل کټوري یې راواچوی. یو واري چکچکه سوله، نغاره وډنګېدله، هشت و مشت سو، سهېلي ډېر خوشحاله سو، ګلمکۍ یې هم پر بام سیل کوي.

موسی جان و ولیجان باچا ته وویل چي اوس نو موږ رخصت که ځو، هغه دي کټوري هغه یې ته کار دي وسو، سهېلي هر څه خرې پوړۍ ورته وکړې چي پاته سئ، خو دوی نه پاته کېدله، سهېلي هم رخصت کړله.

دلته ګلمکۍ خبره سوله چي دوی ولاړل، دستي یې مخي ته سړی راولېږی، چي ورسه ورته ووایه چي مه ځئ، ګلمکۍ مو غواړي، د ګلمکۍ مېلمانه یاست.

سړی راغی ورته ویې ویل چي ګلمکۍ مو غواړي، مه ځئ وایي زما مېلمانه یاست.

موسی جان خورا ډېر خوشحاله سو، لیکن ولیجان هوښیار سړی و، و موسی جان ته یې وویل چي د دې واري یې پرېږده، بل وار به یې بیا ګورو، چي یو وار خپل بندبست ورته ټینګ کو، دغسي خو یې نه پرېږدو، که یې اوس پرېږدې ښه به وي، د دې واري خطر راپېښېږي، زیاتي اختیار لرې.

"موسی جان خو عاشق و، د توانه یې وتلې وه"، ویل یه زه پاتېږم نه ځم!

خیر خو ولیجان هم ناچاره سو پاته سو، دواړه پټ د ګلمکۍ کره راغلل مېلمانه سوله، دې ګلمکۍ یوه ګوښه تنها خونه ور وټاکله پټ یې پکښي کښېنول چي سهېلي او بل څوک خبر نه سي، ډوډۍ او خواړه پخپله ور پخوي، "ځکه چي دا په هیچا باور نه لري دا خو پوهېږي چي سهېلي د دوی په مرګ پسې دئ، هر کله چي په هر چم یې چمبه پر صافه سي وژني یې"، ماښام سو، د ګلمکۍ د توانه څخه ووتله نو یې یوه مینځه ور ولېږله چي ته ورسه ویې ګوره چي کوم یو ښایسته دئ ! مینځه چي راغله ولي جان د څراغ و خوا ته ناست دئ، واردواره یې ولیجان ولیدی، خورا یې خوښ سو، راغله پر ګلمکۍ یې ناره وکړه :

موسی جان تور ګردی سړی دئ
ولیجان برېټونه یو تر بله تېر دي شین زمری دئ

ګلمکۍ ته درد ورغی چې زه څوک غواړم ته د چا صفت راته کوې؟ بله مینځه یې ور ولېږله، دا مینځه هوښیاره وه چې راغله دوی یې وکتله بیر ته راغله پر ګلمکۍ یې ناره وکړه :

بي بي جاني ولي ژړ د مرکو دئ
ګلمکۍ یې موسی ستا د غېږي ور دئ

چې یعني موسی جان ښایسته او ستا د غېږي ور دئ.

ګلمکۍ خورا ځني خوشحاله سوله، زړه یې ځني ښه سو په دې مینځې یې هم اعتبار وسو، ور ته ویې ویل چې ډوډۍ به هم ته ور وړې ! مینځې ویل ښه دئ.

خیر ! خو دغه مینځه ډوډۍ ور وړي، لیکن ګلمکۍ ډېر ټینګار پر کوي چې هوښ کوه چې چا ته دا ډوډۍ او غوري ښکاره نه کې، که هر چا درڅخه لیدلي وه، بې مرګه به دې پرې نه ږدم، ډېر پام کوه !

سهېلي وغوښته چې اوس ورسم دوی خو ولاړه، یو سړی ور ته راغی چې دوی نه دي تللي دواړه د ګلمکۍ کره دي ! د سهېلي خورا طبیعت خراب سو، چې دا څه معنی زما دا دونه عمر وسو هیڅ مي لاس ته نه راغله نه مي د ګلمکۍ مخ ولید نه نور څه او دوی دواړه هغه دي د ګلمکۍ کره ناست دي، او دواړه زما دښمنان دي، "د لاسه یې هم څه نه کېږي ځني بېرېږي"، خو دا خپله عمله یې راوغوښته ور ته ویې ویل چې د دې علاج یې څه؟ که اوس هلته ورځو او نیسو یې وژنو یې ګلمکۍ هم ځان ورسره وژني، او دوی هم غښتلي ښکاري پهلوانان دي خامخا نام بدي او لوی فسات پېښېږي، او که نه نو پای یې څه؟ دا کټوري چې دوی د دار د سره څخه راواچول نو ګلمکۍ لکه چې دوی و خپل ځان ته وکتله، او ګلمکۍ هم په دوی رضا ده، دا هسې یوه بانه ده چې کړې یې وه، اوس یې څنګه کوئ؟

مجلسیانو یې پر دې رایه ورکړه چې ته یوه بوډۍ پیدا که چې ډېره مکاره وي، چې په کراره یې دالته په زهرو علاج وکي مړه یې کي، ته ډېر شور مه لټوه.

سهېلي په بوډۍ پسې و ګرځېدی آخر ته یې یوه داسې شیطانه مکاره بوډۍ پیدا کړه چې د دواړو د مرګ ذمه یې واخیسته او که دواړه نه وي یو

خو به خامخا وژني، سهيلي هم ډېري روپۍ ورکړلې خوشحاله يې کړله.

دا بوډۍ راغله د دوی معلومات يې وکړ، چې چيري دي او څوک ډوډۍ وروړي. چې دا حال يې ځان ته معلوم کی چې داسي مينځه ډوډۍ پټه ور وړي چا ته يې نه ښکاره کوي، نو راغله يو خورا زوره ور زهر يې پيدا کړه، دا زهر يې خورا ميده کړله ويې چونله نو يې د نوکانو او اوريو په منځ کي تخته کړله، نو راغله د مينځي د ډوډۍ د وړلو په لار کي کښېنستله، ماښام سو ګلمکۍ بيا ډوډۍ پخه کړله پخپل لاس يې غوري جوړ کی د مينځي په لاس يې ورکی، نو يې ډېر ټينګار پر وکی چې چي هوښ کوه چا ته يې ښکاره نه کې، مينځي ويل ښه دئ.

مجمه يې پر سر راواخيستله راووتله و سراچې ته په لاره کي بوډۍ ناسته ده، په زوره زوره ژاړي، مينځه چي پر راغله بوډۍ په پښو کي ور ولوېده او په پښو کي يې ور ورغښتله، پښې يې ور مچ کړې، شنه د ژړا ولاړه، مينځه وايي ولي ژاړې؟ بوډۍ وايي چي اې زويه ! دا شل کاله کېږي چي زما يو زوی دئ د باچا پر لور عاشق دئ، راځخه ورک دئ هوري ورته پروت دئ، چې آيا څه حال به يې وي؟ نن سهار خبره سولم چي دلته د دوو مينو خواړه پخېږي او مينه يې پخپله ورپخوي ور لېږي يې، نو را رهي سولم، "په دې ترخ کي يو واري بغاري کي"، چي دا د دوو مينو خواړه وګورم چي څنګه دي؟ او هغه زما چيچي ته به هم دغسي خواړه ورپخوي که يه؟

مينځي درد پر وکی ويل چي څه ورکه سه ! اوس به بي بي خبره سي دواړي به دلته مړې کي، هغه وايي چي هوښ کوه چي بل چا ته يې ښکاره نه کې، څوک يې دز څخه ونه ويني.

بوډۍ لاسونه ور ښکاره کړه په هوا يې ګوتي خلاص کړي ورته ونيولې چي ها ! په لاسو کي مي هيڅ نسته، يو وار يې راښکاره که چي زه يې وګورم، چي زړه مي لږ څه په ښه سي.

خو وروسته تر ډېرو زاريو يې د غوري څخه پلو پورته کی، چي د پلو پورته کېده وه د دې د نوکانو څخه بيا د زهرو دوړېده وه، مينځه نه وپوهېده، بوډۍ کافري بيا وژړل اوه يې کړه د غوري پلو يې ايله کی پر خپله تړه ولاړه. مينځي هغه غوری راوړي د وليجان و موسی جان په مخ کي يې

کښېښنو. ولیجان ډېر هوښیار سړی و، څه شک یې په ورسېدی، و موسی جان ته یې وویل چي دا خواړه مه خوره، په دې کي زهر دي، موسی جان ویل عجبه ده ګلمکۍ یې په خپل لاس راپخوي د دې د لاس خواړه دي ته وا مه یې خوره.

تر دې مابین یوه سپۍ ولاړه ده، و دې ته یې یوه ګوله واچوله، د موسی جان د توانه ووتله خو یوه ګوله یې جوړه کړه چي اوس یې به یې خوړله ولیجان د ده لاس وواهه ګوله یې ځني واچوله، ولیجان د موسی جان دمخه لا یوه ګوله اخیستې وه خوړلې یې وه، نو ځکه یې د ده لاس وواهه ویل یې چي ما خو وخوړه که مړ سم، خو میرولي غوندي زوی تر شالرم، که دی مړ سو خو ولاړه راغله هیڅوک تر شانه لري، وروڼه یې دونه مړونه ،نه دي. زما کسات به میرولي واخلي، د ده کسات به څوک واخلي؟

بوډۍ شاوخوا څارو ده ګوري چي څه کېږي، هغه سپۍ دستي مړه سوله، دلته ولیجان بېسده سو، بوډۍ چي دا حال ولیدی دستي یې سهېلي ته حال ور وړی چي یو خو مي در مړ کی زیاتي نه یمه خبره چي کم یو دئ.

مینځي چي دا حال ولید اریانۍ واخیستله چي یا خدایه زما خو نو هم اجل پوره سو، نو یې ناره وکړه :

لویه خدایه اوس به څنګه ځم تر کوره

دغه ژړ ولیجان پروت دئ — دغه تور موسی جان ګرځي لور د لوره

دننه په حرم سرای کي ګلمکۍ دا ناره واروېدله، داغسي یې را الا کړه چي ولچي یو پسات پېښ سوی دئ، چي راغله مینځي دا حال ور ته ووایه چي داسي یې وکتل ولیجان یې ولید چي پروت دئ، پر موسی جان یې ناره وکړه :

موسی جانه دا پر سر دي لونګۍ توره

چي د ورور په خوله دي نه کړه — په تمام ترین دي ولیدم سر توره

چي یعني که ولیجان مړ سو نو تا به هم مړ کي، خو یوازي سوې نو خود سر توره سولم، ولیجان پر ګلمکۍ ناره وکړه :

یو که تېک سو د مکو د کوښنو تېک سو

ستا د لوري خواړه راغله — دا خواړه زموږ اجل سو

ګلمکۍ ناره پر وکړه :

که ابتر سو نن زما عقل ابتر سو

ستا په ډېرو دښمنانو زما د مینځي په لاس باور سو

د ولیجان بڼه پر بله واوښتله، د ډېره غیر ته څخه یې ځان ټینګ کړی دئ، وایي چې زه تیار یم تاسي یو ګړی خپل مجلس و دیدن سره وکی، خوا مه بدوئ مطلب یې دا دئ چې دوی دوه عاشقان دي چې یو ګړی سره کښېني هم غنیمت دئ، خو نه کېدله آخر ته ولیجان ناره وکړه :

که ټک سو تر تالو لاندي مي ټک سو

ما د دې ځایه در واخلئ – دا زړګی مي د کوټلو وینو ډک سو

بیا یې ورته وویل چې تاسي بېغمه کښېنئ زه تیار یم، خیر ! خو ډېر په عذاب سو وخت د صبح کاذب دئ بیا ولیجان ناره وکړه :

که سرې سوې د آسمان کنارې سرې سوې

موسی پښه اخله سپرېږه – چې پر زړه مي د مرګي خولې خپرې سوې

ګلمکۍ وژړل چې دا څه پسات وسو، ولیجان چې دا ژړا واورېدله نو په دغه بېسدي کي یې د ګلمکۍ د زړه ډاډ ورکی ناره یې وکړه :

ګل مکیه ته ورځه اوس دلې اوسه

که موږ دوه پر دنیا وو – ګلمکیه د دې ځایه به دي یو سو

خو لنډه دا چې موسی جان راپورته سو دستي یې آسان ځین کړل، ولیجان ورته وویل چې وروره ! دښمنان مو ډېر دي، نو که سهېلي زموږ په حال خبر سوي وي، تا به یوازي وګني تا به هم مړ کي. یه ! ته داسي وکه چې ما یوازي پر آس ټینګ وتړه، چې نه غوځار ېږم او زما غشي و لینده په غاړه راوځړوه نو که بالفرض په مخ کي دښمنانو لار راته نیولې وه، زه به جګ پر آس سپور یم که مي د لاسه کېده خو څو واري به پر وکم، ته به خپل واری پر کوې او که نه ګوندي وبېرېږي. موسی جان هم دی پر آس ټینګ وتاړه نو را رهي سوه، مخ د کور پر خوا، بوډۍ پټه ولاړه ده ګوري، ګلمکۍ ورته ولاړه ده ژاړي، ناره یې پر وکړه :

خورې وخورې دا د تورې ستر ګو کسي

دا ولي و موسی جان د بڼ توتیان دي، دا به څوک په دامو نیسي

بوړۍ راغله سهېلي چي يې خبر کی، دستي يې سپاره د دوی په مخ کي کښېنول چي يو خو مړ دئ دا يو به تاسي مړ کئ، چي ژوندی در څخه ولاړ نه سي. موسی جان و وليجان چي را رهي سوه سهار وختي لا خړه ده که ګوري په لار کي يې سپاره وليدل، وليجان وپېژندله چي دا دښمنان دي، ليکن و موسی جان ته يې بړغ ونه کی وايي نه بايده چي وار خطا نه سي، خو په دغه حال کي يې د موسی جان په نيهامه يو دوه غشي ايله کړه، هغه به په سړي کي وموښتله، موسی جان ته به يې ويله چي زه ځان اټکلومه چي څنګه يمه؟

خو لنډه دا چي هغه سړي چي راغله، وليجان پر موسی جان ناره وکړه:

موسی جانه ! چي ما ويل هغه بيا وسوه

دغه زما غشي در واخله – په ګډ پړه بېره مه کړه

چي يعني ما دمخه درته وويل چي مه کوه درځه، دا وار دي وي ګلمکی پر پړده بيا به يې پر کراره اټکلوو، تا ويل يه زه پاتېږم، اوس نو زه خو مړ سوم يعني بې مرګه نه پاتېږم، ته پام کوه !

موسی جان هم داسي دلاورانه جنګ ته پيل وکی چي ټوله يې په ځان پوري اريان کړه، څوک يې مړه کړه، څوک ځني وتښتېدله، تيت و پرک يې کړله، دې سپاهيانو سره وويل چي سهېلي مور خطا ايستلو، ده ويل چي يو سړی دئ دا خو دواړه دا دي جنګ کوي جګ جوړ دئ، لنډه دا چي ټوله ولاړه وتښتېدله، موسی جان او وليجان بيا سره رارهي سوله، هله هله دا دئ لمر څرک راورسېدله خپلي کلا ته نژدې سوله، وليجان ډېر په عذاب دئ خو چي غوږ يې ونيوی دننه په کلا کي درب و دروب دئ، سازونه و درېي دي، هشت و مشت دئ، وليجان و موسی جان ته وويل چي ما دلې کښته که کور ته مي مه ور وله، چي دوی خپل هوس وکي او په ښادي کي غم ور ونه لوېږي.

"دا ښادي ميرولي جوړه کړېده، چي پلار دوی يې ولاړه دی هم ولاړ د يوه خان لور يې په زوره راوستلې ده نو ګوا واده يې دئ".

وليجان و موسی جان ته وويل چي کور ته به ورسې فقط يوازي د ميرولي مور (شاييبنه) راخبره که، هوښ کوه بل څوک مه خبروه !

موسى جان هم د روه راغى كلا ته د وليجان ماينه يې پته خبره كړه، چي راسه وليجان دي غواړي، هغه هم پته راغله څوك يې نه كړه خبر، خو چي وليجان ته نژدې راغله بېسده پروت دئ، په ژړا يې داناره پر وكړه :

وليجانه ! سر راپورته كه د خاب
خبره نه يم چي زهر چا در كړي دينه

وليجان هم سترګي راروني كړلې پر ببئ يې ناره وكړه :

راسه راسه زما ميني په غم شريكي
زهر يوې بوډۍ وګۍ راكړه – په تندي كي مي نوشته د ازل تكي

خو چي يو ګړى سره كښېناسته وليجان بير ته دا رخصت كړه، چي ولاړه سه، مبادا دانور خبر نه سي، په ښادي كي غم ور ونه لوېږي.

ببۍ چي كور ته راغله ډېر يې فكر خراب دئ، توان يې نه كېږي، ګاهي په خونه ننوزي كله بير ته دباندي راووزي، په خونه چي ننوزي وژاړي چي دباندي راووزي سترګي توري كي، وايي نه بايده څوك راونه پوهېږي چي دغه نن يې په ښادي كي غم ورپېښ نه سي، پر خپل زړه زور تېروي، بږغ نه كوي.

د ميرولي په دې خپله مور كي فكر سو، چي دا څه كوي، داغسي وزي و ننوزي، چي ننوزي ژاړي چي راووزي سترګي پاكي كي نو يې پر مور ناره وكړه :

كه لوليه د فېروز لوري لوليه
چي دننه سې ژړا كې – چي راووزې سترګي توري كې نريه

چي يعني ته څه كوې، چي وزې ننوزې، يو واري وژاړې بيا سترګي پاكي كې؟ دې مور يې هر څه بانې ورته وكړې چي پر سر مي درد دئ، هيڅ نه دي پېښ سوي خو ميرولي ورته ويل چي، "خداى يو مالګي تروې" كه دي پرېږدم څو چي رشتيا راته ونه وايې.

مور يې مجبوره سوله آخر ته يې دا نقل ورته وكى، چي داسي پېښه سوېده، خو چي دوى راووتله تانو په خبره سوله راغله پر موسى جان يې ناره وكړه :

موسى وروره ! چي پر مخ دې سپېركى ګرز دئ
دا ولي وروركى خو مي مړ دئ كه ژوندى دئ

خیر خو تانو او نور تهوله خبر سوله، ښادي پاته سوله، ښځي او نور ټول غمجن سوله، ګرده سره راغله ولي جان ته کښېښستله په غم او په ژړا دي، ولیجان چي سترګي را روني کړلې، میرولي یې ولیدی نو پر میرولي یې ناره وکړه :

میرولیه ! پر سر سمه کړه بګړیه
یو مي ساری د سهېل واخله موسی جان لره بل راوړه ګلمکیه

دا وصیت یې و زوی ته وکی چي د سهېل څخه زما ساری واخله او د موسی جان له پاره ګلمکۍ راوله، پس له دې میرولي ناره پر وکړه :

بابا پلاره ! دا وصیت به دي خوار نه کم
یو به دي ساری سهېل واخلم -بابا پلاره بل به هډ او ساری وکم

چي یعني ستا د هر هډ په عوض به یو ساری واخلم.

دلته ولیجان سختي وکړه، خدای وژلی و، مړ سو. "خدای دې وبخښي"، زیاته سوال و جواب یې نه سره وکی، نو ولیجان ته یې دالته غسل و کفن ورکی او دالته یې پر هغه ځای ښخ کی ! راغله سره کور ته پاتا یې واخیسته، د پاتا درې ورځي چي تېري سولې د پاتا څخه خلاص سوله، دستي میرولی و موسی جان ته سیخ سو چي ژر کوه درځه ! چي د سهېلي سره جنګ وکو.

موسی جان ورته وایي چي مه کوه اوس لا ته کوچنی یې، پاخه هډ ته نه یې رسېدلی چي یو کال تېر سي نو به ته هم لږ څه زوره ور سې، "خیر خو په دې مابین کي دوې درې میاشتي تېري سولې، د غم د خوا هم لږ څه پر کراره سوله"، بیا یوه ورځ میرولي وایي چي کاکاجانه ! درځه چي ځو زیاتي نه ګورم یا به زه هم ځان پسې مړ کم یا به د پلار کسات ځني واخلم، دستي ورغی آس یې ځین کی، غشی و لیندۍ یې راواخیستله هغه خپل پړانګی آس یې را رهي کی، موسی جان هم ناچاره سو خو دواړو خپل سامان پوره ورسره راواخیست رخصت یې د ښځو څخه واخیست را رهي سوله، دا دي راغله راورسېدله، "دې ګلمکۍ دا ګرده عمر سهېلي په نن او سبا خطا ایستی چي ګوندي د موسی جان او ولیجان څه درک معلوم سي، آخر ته یې صبر سو، چي اوس نو نه کېږي لکه چي مړ دئ، نو یې خود د اړتیا څخه حال

و سهيلي ته ورکی چي اوس مي نو واده که، نو په دغه شپه يې د ګلمکۍ د واده بنا کړې ده". دې ميرولي و موسی جان ته ويل چي زه به په ښار ور ګډ سم، ته به دباندي هيڅ شی ژوندی نه پرېږدې، که انسان وي که حيوان وي سر يې وهه، زه به وس کوم حرم سرای ته به ځه کوم ور به سم ګلمکۍ به پيدا کم راوبه يې باسم، هغه ويل ښه دئ.

آبس ! موسی جان د ښار دباندي توره وکښله چي په مخه ورځي هغه وژني، څو خلک سره وتښتېدله تر باچا حال ورغی چي بيا وليجان او موسی جان راغلي دي، مخلوق يې تباه کی، باچا سره وارخطا سو، چي دا لکه چي وليجان بير ته جوړ سوی دئ، چي پوځ ور وباسي، هغه څوک وتښتي څوک څه سي، خو سهيلي پخپله راووت د ښار دباندي په جنګ اخته سو، موسی جان په يوه سر جنګ کوي، ميرولي ته ميدان چغالي پاته سو، راغی يوه بوډۍ يې په کوڅه کي پيدا کړه، ويل آبوډۍ ! زه به روپۍ درکم ته به د ګلمکۍ کور راوښيې، بوډۍ ويل يه، زه خپلي ډېري روپۍ لرم، ما ته سهيلي ډېري روپۍ راکړي دي، ميرولي پوښتنه څني وکړه چي کم خدمت دي کړی دئ؟ بوډۍ ويل چي ما دلته يو وليجان نامی و هغه مي په زهرو مړ کی، ما ته يې خورا ډېره دنيا راکړه، نو زه روپۍ څه کوم، ميرولي چي دا واورېده ناره يې پر وکړه :

بوډوکۍ يې زما دي داسي پلار وژلی
تر هغو به دي پرې نه ږدم – څو سر باندي دي جوړ نه کمه څلی

خير خو توره يې ورسره لښته کړله، د بوډۍ سر يې غوځ ور پرې کی. بيا رارهي سو بله بوډۍ يې پيدا کړه، د دې بوډۍ څخه يې لار وليکه وپوښتله د حرم سرای لار يې ور وښووله، دی هم راغی په حرم سرای ورننوتی، توره يې کش کړله چي څوک په مخه ورتله سر يې څني پرې کاوه. په حرم سرای کي يوه بله سپين سرې ده چي ميرولي پېژني پر ميرولي يې ناره وکړه :

ميروليه زويه ! ولي فهم نه کړې
ماندينې دي کړې بې ستره – ميروليه ته د خدايه وهم نه کړې

ميرولي پر دې حمله وکړه چي ته چيري ما ته نصيحت کوې، سر يې

غوځ ځني پرې کې، ميرولي ګلمکۍ پيدا کړه د آس تر شا يې راسپره کړه د سراى څخه را ووتله، ګلمکۍ يې په دوړه د ښاره څخه را وايستله، که ګوري موسى جان په يوه کله جنګ کوي، ميرولي چي وليدى دغسي يې آس وځغلاوه ګلمکۍ يې بوتله پر يوه غونډۍ يې کښېنوله، بير ته دستي راغی توره يې وکښله د جنګ په ميدان ور ګډ سو، د سهېلي لښکر و فکر وکی چي دمخه يو سړى و چاره يې نه کېدله اوس چي دوه سوه نو چيري به يې مات کو؟

په دې مابين کي ميرولي و موسى جان ته ستر ګه ووهله چي څه ! ګلمکۍ هغه ده ناسته ده ورسه بيايه يې، موسى جان هم ستړى سوى و خو د جنګ د ميدان څخه ووت راغی ګلمکۍ يې تر شا سپره کړه، "يا شاى ولات"، مخ د کور پر خوا را رهي سو، ميرولي يوازي لکه زمري جنګ کوي، دلته سهېل ګلمکۍ وليدله چي هغه ده بويې تله، او خبر هم ور ته راغی، نو وارخطا سو ناره يې وکړه :

لو يه خدايه ! د سهېلي ورا يې مسخره کړه

چي ګلمکۍ يې پر رادار نيلي سپره کړه

ګلمکۍ چي دا واورېده، دې ناره پر وکړه :

که توزن دئ دا سهېل دووس توزن دئ

چي موسى جان پر دنيا وينه – سهېليه پر ما بل مېړه حرام دئ

ميرولي خپل جنګ کوي موسى جان او ګلمکۍ سره را رهي سوله، پر هغه هديره راغله چي وليجان يې پکښي ښخ کړى و، په دې هديره کي شنختي او نور کاڼي جګ جګ ولاړ دي، ګلمکۍ ور ته وګوري وخاندي، موسى جان ور ته وکتل ناره يې پر وکړه:

ګلمکۍ يې خوله دي ويره کې وخاندې

دغه مي ولي ورور دئ – کاڼي بوټې کو ته کړي دي پر باندې

موسى جان وژړل، د آس څخه دواړه راکښته سوله، يو کړى دالته سره تکيه سوله، ګلمکۍ ناره وکړه :

که چاک سو نن زما په زړه کي چاک سو

دا خو دي داسي ورور خوړلی – موسى جانه دغه ټول صورت مي بې واک سو

دوی دواړه دالته په هدیره کې سره ناست دي، د ولیجان و قبر ته ژاړي دعا کوي، د مازیګر بهیر دئ، میرولي د سهېلي لښکر مات کړی دئ خورا قتل یې په ایستلی دئ، "میرولي نه و، یو زمری و"، پر لار را رهي سوی دئ څه ګورمونه او رمې چي په مخه ورځي هغه یې ټوله پسې راواخیستله، برابر یې د خپل پلار هدیرې ته راوستل، که ګوري موسی جان و ګلمکۍ لا دالته سره ناست دي، میرولي چي ولیدل ناره یې پر وکړه :

موسی جانه ! چي پر سر دي لنګۍ توره

موسی ښه اخله سپر پړه – اوس د ګور د مړو پرېږده مجلسونه

یعني څه ! ګلمکۍ تر مزله (کور ته) ورسوه، ته څه کوې چي دلې ناست یې؟ د ګلمکۍ په خیال کي ورغله چي دا میرولي لکه چي سهېلي پسي را اخیستی دئ، چي اوس موږ ته وایي چي کور ته ولاړ سئ.

میرولي پوه سو، چي د ګلمکۍ طبیعت خراب سو، نو میرولي د دې د زړه له پاره ناره پر وکړه :

که غورځي د تورې زړګی مي غورځي

و سهېل ته به دي ور نه کم – ګلمکۍ ځو میرولي پر دنیا ګرځي

خیر خو موسی جان ګلمکۍ بوتله کلا ته یې ننه ایستله، د ګلمکۍ خور (ببۍ) خورا خوشحاله سوله روغبړ یې سره وکی، موسی جان بیر ته هدیرې ته راغی که ګوري میرولي بیا په غویو او پسو چړاو ګډ کړی دئ، عام خلک راځي غوښي یې وړي، د ولیجان قبر یې خالص د حیواناتو په ښکرو پټ کی، دا خیرات چي خلاص سو دواړه کور ته راغله، میرولي د پلار وصیت پر ځای کي کرار سره کښېنستل، خپل عیش کوي.

څو ورځي باد، د دې موسی جان په خونه کي د هوسۍ سرونه ځړېږي، ګلمکۍ و موسی جان ته ویل چي دا سرونه څنګه ښه توري سترګي لري، څنګه ښه ایسي دا د څه شي سرونه دي؟ دا چي ژوندي وای نو به ښه و.

موسی جان ورته ویل دا د هغه وخت د هوسیو سرونه دي چي ولیجان ژوندی و، او زه و دی به په ښکار سره ولاړو، نو به مو د هغه هوسۍ ویشتې، دا سرونه د هغو دي، ګلمکۍ ویل ته خو یوه دانه ژوندۍ راوله چي زه سات په تېروم، پر موسی جان ډېره ګرانه وه ناز یې پر مځکه نه اچاوه، بس د روه یې

خپل غشي و لينده و توبره و غاړي ته واچول، را رهي سو، دښت ته راووت هغه لار يې راواخيستله چي ده و وليجان به ښکار پر کاوه، موسی جان چي به پر هغه ځای راغی چي ده و وليجان به ښکار پر کړی و، يا به يې ناسته پر کړې وه، يو وار به وليجان ور په ياد سو، شين به د ژړا ولاړ، څو چي له دغه غمه او ژړا لېونی سو، خو پر دښتو ګرځي نه ښکار کولای سي او نه کور ته راتلای سي.

يوه ورځ يې يوه هوسۍ وليده پر دښت ګرځېدله، ده چي ور ته وکتله ګلمکۍ يې ور په ياد سوله، نو يې ناره وکړه :

لويه خدايه ! پر دامان ګرځي هوسيه

نور صورت يې د هوسۍ دئ–لويه خدايه دغه سترګې د ګلمکيه

د موسی جان څخه نوره ورکه سوه، يو شپانه يې پيدا کی د دې شپانه سره يې اندېوالي واچوله، لېونی ور ته ګرځي، د ورځي پر دې خزه ولاړ ژاړي، دلته ولاړ ژاړي، "دی نو هورې پر پړده چي ژاړي".

دلته سهېل فکر وکی چي دا وليجان بير ته جوړ سوی دئ، که بل څوک؟ او دا سړی خو تر وليجان چالاک دئ، نو يې يوه بوډۍ پيدا کړه ور ته ويل يې چي ولاړه سه درک يې معلوم که، دا سړی څوک و، او موسی جان دوی چيري دي؟

بوډۍ يې خوشحاله کړه، بيا يې لکړه راواخيستله پر ملا کړوپه کړوپه کېږي دا ده راغله د وليجان دوی د کلا و دېواله ته کښېنستله، په زوره زوره ژاړي. دننه په کلا کي ښځو د دې ژړا او فرياد او بلغاکي وارو ېدې، دغه بوډۍ بيا ګلمکۍ ور وغوښتله زړه يې پر وسو، بوډۍ ورغله داغسي د ګلمکۍ په پښو کي ور غوځاره سوله، ويل د خدای پار دئ يو زوی مي درلود پر ګرده دنيا مي بل هيڅوک نه درلوده، هغه يو زوی مي سهېل باچا په زوره راڅخه بوتی اوس څوک وايي وژلی يې دئ څوک وايي بندي دئ، څوک وايي څنګه دئ؟ څوک وايي څنګه؟ خو ما چي هر څه چرت وواهه غير له خدای او بې وليجان او موسی جان څخه په بل چا يې سر نه سره ورځي، اوس مي خاص د خدای په هيله و دوی ته پناه راوړې ده، چي ګوندي دوی مي په داد ورسېږي.

دې ګلمکۍ سادې پټانې ور ته وژړل چي وليجان خو مړ دئ، او موسی

جان دا څو عمر کېږي چي لېوني دئ پر کور باندي نسته.

بوډۍ چي دا واورېده يو لو ناره يې وکړه، اوه يې کړه چي څه پسات راوسو، خو په زړه کي خورا خوشحاله سوله. ويې ويل خدای زه اسي پيدا کړې يم. خو دستي يې د خدای په اماني واخيستله، د کلا څخه راووتله برابره سهېلي ته راغله ورته ويې ويل چي کور يې هيڅوک نسته ميدان چغالي دئ، مه در ګوره، وليجان مړ دئ موسی جان لېونی سوی دئ.

سهېلي هم دستي سپاره سره ټول کړه په دې سهار وختي را رهي سول دلته ميرولي په خبر سو، ده هم د خپل جنګ اسباب راواخيستی پر آس سپور سو، راووتی د جنګ په ميدان کي لکه زمری ګرځي، د ېري هيڅوک و جنګ ته نه سي ورته راپر مخ کېدای، ځکه هر چا ته معلوم و، ويل يې چي بيا خدای خبر چي ژوندي به ځني څو.

دې سهېلي ږغ وکی چي څوک به ټنډه[٦] واخلي او جنګ ته به ورسي؟ هيڅا ږغ ونه کی.

يو سړی و، چي (آزادی) نومېدی، د ميرولي د ترور زوی دئ، دې ويل چي زه جنګ ته ورځم! باچاهم ويل ودي ګورم، ښه دئ ورسه!

آزادی وجنګ ته راغلی، ميرولي چي ورته وکتله چي ته خو مي د ترور زوی يې جنګ مه راسره کوه، دا ور نه ده که نه وي مړ به دي کم، خو آزادي يې خبره نه واورېده خو حملې يې پر کولې، ميرولي يې په سپر د ځان څخه توره ګرځوي او حمله نه پر کوي.

خير! ټوله ورځ يې په دغه چم سره تېره کړه، ماښام چي کور ته راغی خورا ستړی هلاک دئ، و مور ته يې دا کيسه وکړله، چي نن تمامه ورځ د ترور زوی د لاسه دغه ډول ستړی يم، جنګ يې راسره کاوه، که د خپلوۍ لحاظ نه وای ما به يې د وخته لا سر غوڅ پرې کړی وای.

مور چي يې دا واورېده نو يې پر ميرولي ناره وکړه:

مکړه ميره زويه ګنده مه کړه
چي ستا په مخ درځي – که زما زوی وي صرفه مه کړه

---

[٦] ټنډه = ونډه يا هغه پيسې چي د يوه خدمت په مقابل کي يې واخلي.

یعني هر څوک چي په مخه درځي که دي خپل وي که بل څوک وهه يې وژنه يې، میرولي چي سبا جنګ ته راووت بیا آزادي جنګ ته راغی، میرولي هم توره ورسره لښته کړه خو د ده څخه چپه سوله د آس پر اربوزه یې وموښتله د آس شونډان یې غوڅ ور پرې کړه، "آس یې داسي ایسي لکه چي خاندي"، آزادي فکر وکی چي دا وار دي وژني مخامخ یې الا کړه برابر ښار ته ولاړ، میرولي سم په پسې دئ، میرولي د سرای په دروازه کي پسي ورسېدی توره یې ورسره لښته کړه وې واهه، په دغه دروازه کي یې سر غوڅ ځني پرې کی.

دلته د میرولي ترور راووتله چي داسي یې وکتله زوی یې مړ دئ نو یې پر میرولي ناره وکړه :

میرولیه زویه تلي دي درنې سه

په دروازه کي دي دربی دئ – میرولیه دروازې درپوري سرې سه

میرولي دغه ترور هم پسي مړه کړه، خو چي په مخه ورځي هغه وژني، خو هر څو چي یې مړه کړه هغه یې مړه کړه، ماښام سو بیرته کور ته راغی.

سهېل وویل چي د دې چاره یې څه؟ یوه سړي ورته وویل چي په لار کي سپرغی[7] ورته پرې که پر سر یې خاشې او خاوري ور واچوه، سهار چي دی ناخبره وي پر آس به سپور وي، چي راسي درب پکښې وبه لوېږي، موږ بې ژوندی ونیسو.

د سهېل هم خوښه سوله، دستي یې سړي امر کړه چي په لار کي درې ژوري کندي پرې کړلې، پر سر یې خاشې او خاوري ور واچولې.

سهار بیا د جنګ نغاره وډنګېدله میرولي پړانګی ځین کی را رهي سو، دا پړانګی داسي هوښیار او مست دئ چي په یوه یوه ټوپ تر دې کندو او سپرغو غورځي، خو تر دې کندو او سپرغو راتېر سو راغی د جنګ میدان ته بیا یې تر ماښامه جنګ وکی، فتح یې په نصیب سوه، ماښام تر کندو راتېر سو په خیریت کور ته راغی.

په دې بله ورځ یې مور ورته وویل چي دا پړانګی ستړی سو، دغه د

---

[7] سپرغه = کنده، څاه.

پلار (نیلی) دي بوزه، پړانګی کورنګی دئ چي مات نه سي، ده ورته وویل چي دی جای بنده دئ یو پسات راپېښ نه سي، دې ویل ته یې نن بوزه چي څه کوي؟ ده هم پړانګی پرېښو، نیلی یې را رهي کی چي پر کندو راغی لکه برېښنا داسي تر وغورځېدی، تمامه ورځ یې داسي جنګ وکی چي خوری یې پر وایشولې، څرنګه چي دا نیلی جای بنده و د ماښام خوا ته چي را رهي سو راغی تر دوو سپرغو راوغورځېدی په دریمه سپرغه کي یې د شا پښې ولاړې پکښې ولوېدی، د میرولي پر تشي د ځین دمخه بوڅکی برابر سو، تشي یې سوری سو نس یې څیري سو، کُلمې یې راووتلې، خو آس د زوره وغورځېدی د کندي څخه راوخوت میرولي خپله لنګوټه خلاصه کړه کُلمې یې بیرته په نس کي واچولې په لنګوټه یې ټینګ نس وتاړه په یوه زحمت د کندي څخه راووت آس دمخه دئ دی پیاده په پسې دئ، د کور پر خوا را رهي سو.

"مور به یې هره ورځ تر هغو پر بام ناسته وه، څو چي میرولي به بیرته د جنګ څخه راتی"، نو پر همغه عادت یې مور پر بام ناسته ده لار یې ګوري، یو وار یې میرولي ولید چي پیاده کرار کرار راځي، آس دمخه دئ، مور یې وپوهېده چي لکه چي زخمي سوی دئ که څه؟ چي نژدې راغی مور یې ناره پر وکړه :

لویه خدایه ! نن مي کم کاڼی پر کور دئ

میرولي زوی مي دمخه لویه خدایه نیلی آس مي په پسې دئ

بیا یې بله ناره پر وکړه :

میرولیه په کوڅه کي پیاده نه تلې

نازولی نیلی ولي کوتل[۸] بیایې د دښمن د لاسه څرنګه پیاده سوې

د دې خوا میرولي ناره پر وکړه :

ادې موري د پړانګي څخه دي ګیلې کړې

نیلی تر دوو کندو راتېر سو – پر دریمه یې زما غوټې ګُلمې پرې کړې

مور یې دستي د بامه څخه راکښته سوه، خو میرولي یې کور ته بوت

---

[۸] کوتل = هغه آس چي څوک پر سپور نه وي او په سړي پسې ځي.

پرې يې ايستي اوس موسی جان پر کور نسته، دوی د وهمه په چا اعتبار نه کوي چي خبر يې کي، وايي مبادا چي سهيل به خبر کي چي ميرولي د کاره لوېدلی دئ.

د دې ميرولي ترور چي خورا ډېره قابله ښځه وه، دستي يې د ده ټپ پاک پرېولی، غټ غټ ښانکور مېرېيان يې ونيول رايې وړه، د ټپ خوله يې سره نژدې کړه، نو يې د مېږي خوله په ور ولګوله، مېږي چي خوله ټينګه کړله، دې به مېږی پر منځ غوټ په غچي پرې کی، د مېږي سر به پوري پاته سو، د ټپ خوله به سره ورغله، د ميرولي ټپ يې په دغه چم ور وګانډه، نو يې ور ته وويل چي ته به دا شل ورځي پر اړخ نه اوړې.

دلته د موسی جان نور اووه وروڼه دي، دا سره راټول سوه، سهيلي ته راغله "چي يعني مور ته به انعام هم راکي او د شره به هم په امان سو".

خو عرض يې پر وکی چي راسه ګلمکی بوزه ! سهيلي پوښتنه ځني وکړه چي تاسي څوک ياست؟ دوی ور ته ويل چي مور د موسی جان وروڼه يو.

سهيلي فکر وکی چي مور د يوه موسی جان څخه په عذاب و دا خو اووه نور موسی جانه پيدا سوه. دوی بيا ور ته وويل چي مور د موسی جان وروڼه يو، موسی جان لېونی دئ نسته او ميرولي ناجوړه دئ د کار نه دئ، مور ستا دوستان يو. خو سهيلي نه منل ېرېېدی چي مبادا يو ټنډه (ټولنه) به يې راته کړې وي، وروڼه وګوره د خپل ورړو بدخواهي او بدنامي د ناموس وګوره.

دستي يې حکم پر وکی چي د اوو سرو غوړونه ور پرې کئ ! ويې شړئ د دربار څخه يې وباسئ !

دستي سر جلات غوږونه ور پرې کړه، په ډېره بې عزتي يې د درباره څخه راوايستل، د باچا د موسی جان د وروڼو په قول اعتبار ونه سو، خو په زړه کي يې شک پيدا سو چي ته خو يې درک معلوم که.

يوه بله بوډۍ يې پيدا کړه چي ته ورسه وګوره چي موسی جان او ميرولي چيري دي؟ بوډۍ راغله پخپل مکر سره يې معلومات وکړ، بير ته ولاړه سهيلي ته يې وويل چي موسی جان نسته لېونی سوی دئ او ميرولي ټپي سوی ناجوړه پروت دئ. سهيلي چي خبر سو، دستي يې د شپې د

وليجان پر کلا کوچ راوکی، چي سهار سو ښځي پر بام وختلې که ګوري شاوخوا خېمي نجتي دي، داغسي يې سره وويل چي دا خو سهېلي راغلی دئ، او د ميرولي تپ هم نه دئ لا جوړ سوی، درې ورځي يې لا سته، يه ! راسئ چي ميرولي نه کو خبر ډېر به ښه وي، هر څه که سهېلي غوښته ور به يې کو، د ټولو داغه سلا سوه.

خود سهېلي ته يې خبر ورکی چي پام کوه په کلا به نه راننوزې، خپل مطلب وايه چي په لاس يې درکو.

دې سهېلي د تانو د ښايست صفت اورېدلی و، ولي تانو نهايتي ښايسته وه، او سهېلي يې هم خورا ډېر امته دار و، ليکن زړه يې مښل کېدی خو ديد يې نه ور حاصلېدی، خود سهېلي ورته وويل چي تانو دي مخ راښکاره کي، تانو هم ناچاره وه څکه يې پلو د مخه ايسته کی، مخ يې سهېلي ته ښکاره کی. سهېلي چي ورته وکتل ښه ترا پر عاشق سو.

آخر ته يې وويل چي ګلمکۍ په لاس راکئ، تانو ورته وويل چي مه کوه هغه زما ورېنداره ده، د هغې په عوض کي ما بوزه، هغه مه بيايه. د سهېلي هم زړه وغوښت چي ښه دئ، ليکن د ده سره يو ډم (ډولچي) و، ده فکر وکی چي ګلمکۍ پاته سوله نو يې پر سهېل ناره وکړه :

سهېليه ! تانو سره ده مکۍ سپينه

تانو سره کوټلې زر ده، مکۍ لاړ د مرغلرو ده يقينه

يعني چي ګلمکۍ سپينه ده، تانو سره ده، ګلمکۍ مه پرېږده، يو واري سهېلي هم ټينګ سو، چي زه ګلمکۍ غواړم. خير ! خو مجبوره يې کړله، ګلمکۍ يې په ژړا په لاس ورکړه. ګلمکۍ ته خو د سهېلي زړه ډک و، لځي پښې يې د آس سره په وچ تاخت څغلوي، د کلا پر بام د ميرولي يوه کوچنۍ خور وه ولاړه ده پسي ګوري، دې چي دا ګلمکۍ وليدله زړه يې درد وکی، دغسي يې را الا کړه، راغله د ميرولي په خونه ورننوتله پر ميرولي يې ناره وکړه:

که درنه ده د کلا خونه درنه ده

ګلمکۍ پلي څکوينه-ميروليه پر تا څه بلا پرته ده

ميرولي سترګي روڼي کړلې چي څه نقل دئ، دې کوچنۍ خور يې دا

کیسه ورته وکړله، چي سهيلي ته تانو مخ ور ښکاره کی او ګلمکۍ يې هم لڅي پښې بوتله. اوس نو د ميرولي ټپ جوړ دئ فقط دوې ورځي لا غواړي. خو د توانه يې ووتله د غيرته څخه راپورته سو چي واخ ! زما ښځي دښمن يووړي. زما په کلا کي دښمن را توی سوی و ! په زمانو هم ژوند غيم ! دا بې غيرتي او دا ژوند نه قبلوم، دستي راپورته سو پر نس او ټپ يې رښکۍ وپيچلې، پړانګی يې ځين کی نو يې پر مور ناره وکړه :

ادې موري ! حق را خپل که آن مي تمام دئ

زه خو ځم د جنګ پر لوري د ناويانو ټولی پاته پر ميدان ده

چي يعني پلار مي مړ سو، موسی جان ورک سو، اوس نو زه ځم خدای خبر چي بيا به ژوندی راځم. تاسي نو يوازي په کور کي پاته ياست ! را رخصت سو تر کلا راووت سهيلي پياده ګلمکۍ تر شا پسي ځغلوي، دې چي تر شا وکتله چي د کلا دمخه دوړه پورته سوله، د دې زړه خوشحاله سو، نو يې ناره وکړه :

که دوړه د کلا پر درګاه دوړه

ما د خدای تر خدايي جار کې –ميرولي و پړانګی راولې په دوړه

بله ناره يې پسي وکړه :

که لوټه د ميدان په سر کي لوټه

که به خواست د مکۍ اخلې –ميرولي و پړانګی راولې لم غوټه

سهيلي چي تر شا وکتله چي دا ګلمکۍ څه ناري کوي، که ګوري تر شا يې دوړي دي، څوک پسي راځغلي، فکر يې وکی چي زه خو يې خطا ايستلم دا يې لکه چي چم راته کړی و، خو هغه دئ ميرولی راغلی، داغسي يې ګلمکۍ تر وزر ونيوله پر آس يې سپره کړه، لار يې چپه کړله ولاړی په يوه مانده کي يې خېمه ونجتله، ميرولي ناجوړه و چابک يې آس نه سوای وهلای، خو راغی لار و بدرو ځني ورک سوه، چي دوی چيري ولاړه، د يوه مانده غاړه يې را اخيستې ده خورا ستړی هلاک دئ، دوباره يې ناره وکړه :

لويه خدايه ! يو مانده ډک دئ په درګو

خدايه دونه عمر راکې –چي سهيل و مکۍ ووينم په سترګو

د دوی خېمه هم دالته نژدې ولاړه وه، سهيل چي دا ناره واروېده فکر

يې وکې چې دا دئ درپسي راغی، څوک هم نسته مړ یې کړلې، یه کونه کاږه څه ! خو ګلمکۍ یې دالته پرېښووله مخامخ تراټ، یا شاهي ولات ولاړ.

میرولي چې راغی ګلمکۍ یې ولیدله سهېل نسته، مانده ته ور شوه سو، ګلمکۍ ته یې وویل چې زما تر شا سپره سه، دې ورته وویل چې یه ! ته ناجوړه یې بیا به په عذاب سې، زه بیر ته پیاده درسره ځم. میرولي ورته وویل چې یه سپره سه، میرولي چې رکیب ور خالي کی "د ښځي ذات دئ"، چې ورپور ته کېدله یو واري وځړېدله د میرولي وشا ته یې ور حمله کړه، د میرولي د ټپ څخه د مړیانو خولې وختلې ټپ یې سره وشلېدی، دغسي یې ګُلمې را ایله سولې د آس د لاندي راولوېدی، نفس یې وخوت مړ سو، "خدای دي داغسي زمریان مړونه ټوله وبخښي".

ګلمکۍ یو ګړی وژړل، بیا یې فکر وکي چې دا خو هم مړ سو، ولیجان هم مړ سو، موسی جان لېونی او ژوندی ورک سو، هیڅوک نه سوه راپاته، اوس به نو سهېلي ته د ناعلاجۍ ځان ور وسپارم.

نو یې میرولي د مانده څخه راوکیښ، سهېلي لا نه دئ نیهام سوی نو یې و سهېلي ته ناره وکړه :

که ولاړه د سهېلي خېمه ولاړه

سپیه مه تښته رادرومه -د میرولي ساه مي د ځین پر کوپۍ ولاړه

نو یې د میرولي پښه پورته په هوا ونیوله چې دا دئ میرولي مړ دئ، راسه بو مي زه، سهېلي فکر وکی چې دا لکه چې ګلمکۍ مړ کی، خوشحاله سو راغی ګلمکۍ یې د آس تر شا سپره کړه رایې وستله خپل کور ته، میرولي یې هوري په خاورو کي پټ کی (ګلمکۍ و سهېل نو دالته پرېږده چې خپل سات تېروي، موسی جان پسي راواخله)، موسی په غره کي د ورځي ښکار کوي، که یې یو څه وویشتله هغه راوړي ماښام یې د شپانه سره وخوري، کله به یې پر هغه ځای چې ده و ولیجان به ناسته پر کړې وه ژړله، خو تیار لېونی دئ ګرځي.

یوه ورځ رهي سو په ښکار ولاړ، یو نرکښ[٩] یې وویشت لیکن ځني

---

[٩] نرکښ = د غره اوزګړی.

ورک سو، موسی جان پسي ګرځي شپانه وليدی پر موسی جان يې ناره وکړه:

موسی جانه ! د ببري په شاني توره
هغه نرګس چي تا ويشتلی د چندڼ و بېخ ته ګوره موسی جانه

موسی جان پسي رهي سو، چي پيدا يې کي که ګوري يو کبلی په غره کي په مخه ورغی، موسی جان غوښت چي دا کبلی وولي غشی ولينده يې ورته سم کړه هغه کبلی خدای تعالی پر خبرو راووست، ورته وې ويل چي اې مسکينه ته به زما د غوښو ځخه څه وخورې ! ولاړ سه چي ښايسته مينه ګلمکۍ او ميرولي دي څه سول؟

د موسی جان ګلمکۍ او کور په ياد سوه بير ته راوګرځېدی راغی، پر شپانه يې ناره وکړه :

په وچ غره کي يو کبلی راته ګويان سو
ويل ته به څه خورې زما د غوښو –موسی جانه ګلمکۍ کورګی دي وران سو

دستي يې د شپانه ځخه رخصت راواخيست، برابر کور ته راغی، د کلا په دروازه کي چي ور ننوتی د ميرولي ماينې ناره پر وکړه :

اې خسره کاکا ته ښه يې که غولی[10]
زړه زما په اور کباب سو، نه به وکم ميرولي غوندي همزولی

چي يعني ميرولي خو مړ سو، خير "خو هر څه ژړاوي چي يې سره کړي وې کړي به يې وي"، په دې ټولو نقلو يې موسی جان خبر کی چي دا ګرده شيطانت ستا ورونو ولټاوه.

موسی جان شپه تېره کړه سهار سو، زړه يې خورانري سوی دئ، د کلا ځخه راووَت اوه سره ورونه يې د کلا و مخ ته ناست دي، غوبرونه يې پرې دي، موسی جان چي وليدل د زړه د جوش ځخه يې ناره پر وکړه :

لويه خدايه د موسی جان دي اووه ورونه
که به خواست د موسی اخلې –د آسمان د لور پر واچوې تندرونه

يعني خدايه تکه پر واچوې، د عاشق خواست دئ قبول سو اووه سره

---

[10] غولی =صحن، حويلي.

وروته يې دالته ځای پر ځای مړه سوه.

بیر ته موسی جان کور ته ولاړ، آس یې ځین کی چې ځم، د کور ښځو که هر څو ډېري زاري ورته وکړې چې مه ځه، دی نه پاتېدی. چې دا اوس بې غیرتي ده چې کور کښېنم، خو را رهي سو پر لاري راځي راغی یو ځای که ګوري یو بزګر دئ پر توګ کښلی یوم پر غاړه اوبه لګوي. موسی جان راولاړ سو فکر یې وکی چې اوس چیري ځې، خپل اس یې دالته حلال کی مرغانو ته یې په خیرات کي پرېښو. غښی ولینده یې هم وغورځول، بزګر د ځان سره وویل چې دا وګوره ! څنګه لېوني سړی دئ چې خپل آس یې حلال کی او اسباب یې وغورځاوه، موسی جان راغی د ولې بند یې چپه کی اوبه یې ایله کړې، بزګر ورته وویل چې ولي؟ دا خو بیا یوازي نه تړلي کېږي، موسی جان ناره پر وکړه :

شابزګره ! اوبه ولاړې پر ورخونه
هغه به یې تړي شابزګره ! چې تر شا لري مړونه

موسی جان ورته وویل چې دا مي تا ته جواب درکی، یعني ته که نر یې یوازي به یې وتړې، زما هم دغسي مړونه وه هغه مړه سول نو خود مي آس حلال کی غښی ولینده مي وغورځوله خو راغی د بزګره سره یې بیر ته بند وتاړه.

د موسی جان د آس نالونه د سرو زرو وه، بزګر راغی دا نالونه د آس د سوو څخه کاږي، موسی جان چې ورته وکتل داغسي یې ور الا کړه چې زما د ګران آس نالونه کاږې، پښې دې خوږ کړې، خو چې راورسېدی بزګر یې پورته کی د مځکي یې وویشت پر هغه ځای یې مړ کی، بیا را رهي سو پر لاري یو کوچنی پک هلک دئ چې د دې هلک نوم هم موسی جان و پر دې یې ناره وکړه :

شاپو کیه چې کوچني مرغومي پیایې
دغه سل روپۍ به درکم شاپو کیه زما سلام پر مکې وایه
پک ته درد ورغی چې ولي مي پک بولې، زه هم موسی نومېږم :
که ته موسی یې زه هم موسی نومېږم
نه دي سل روپۍ کوم — نه دي سلام تر ګلمکیه رسوم

د دې پک څخه تېر سو راغی یو ډنډ دئ نجوني پکښې لمبېږي، موسی جان چي پر راورسېدی دستي د ښځو پر کالو کښېنوست، ښځو هر څه زاری ورته وکړې چي زموږ کالي راکه ! دی يې نه ورکوي، په آخر کي موسی جان ورته وويل چي سبا به ګلمکۍ خبروئ او راولئ به يې، ښځو ویل ښه دئ، خو قسمياني يې کړلې وروسته يې کالي ورکړه، کالي يې واغوستل راوختلې ولاړې.

په دې ښځو کي يوه پکه ښځه وه، دا په پټه ورغله سهېلي يې خبر کی چي موسی جان راغلی دئ دا نقل يې ورته وکی، دې نورو ښځو ګلمکۍ خبره کړه.

سهېلي فکر وکی چي بیا خبره خرابه نه سي، يه ! راسه چم ورسره وکه، موسی جان خو پر ګلمکۍ عاشق دئ لنډه دا چي سهېلي د ګلمکۍ کالي واغوستله د دې پوړنی يې پر سر کی، خنجر و پېشکوزه يې ورسره واخيستله چي يعني موسی به د ګلمکۍ خيال راباندي وکي زه به يې د روه په خنجر ووهم، سهېلي چي را رهي سو د ګلمکۍ د لاسه نور هيڅ نه کېدله پر بام وختته ناره يې پر موسی جان وکړه :

موسی جانه چي دا د کښې درځي سهېلی دئ

موسیٰ جانه خطا نه وزې دا پر سر يې سور سالو دا د مکۍ دئ

موسی جان په خپلو خولو کي ډوب دئ نه يې وارو‌ېده، خو چي داسي يې وکتله کټ مټ هغه ګلمکۍ ده مخ يې پټ دئ، "سهېلي هم هغه کالي اغوستي وه چي موسی جان ورکړي وه"، دې موسی جان چي ورته وکتل ده چي ويل ګلمکۍ ده داغسي يې ور الا کړه غېږ يې پر راوګرځوله، موسی جان و سهېلي غېږ په غېږ سول موسی جان چي ځان سره ښوراوه سهېلي په نسُ کي په خنجر وواهه، موسی جان په دغه حال کي په توده وينه کي و، سهېلي يې پورته کی ويې ويشتی د مځکي، د سهېلي پر ځګر کښېنستی باندي سپور سو نو يې ناره پر وکړه :

رب دي وچ که سهېليه غونډه منډه

اوس به دي پخپله چاړه مړ کم ګلمکۍ به کم پره تورو پېکيو کونډه

يعني زه خو دي خلاص کړلم بې مرګه نه پاتېږم نو تا ولي وژنم

ګلمکۍ به بیا کونده سي دا خبره یې وکړه د سهیلي د سینې څخه غوځار سو نفس یې وخوت مړ سو، "خدای دې وبخښي".

سهیلي کور ته راغی، ګلمکۍ یې خبره کړه چي موسی جان خو مي مړ کی، اوس خو نو بل څوک نه سو در پاته، یه اوس نو خپل آن ومنه.

ګلمکۍ و سهیلي ته وویل چي هوکې ! اوس دي نو خاص وګټلم، خپل عیش درسره کوم، لیکن دا دونه خواري دي وکښلې، دا یوه خبره لا زما د زړه له پاره پر ځای که، چي پر موسی جان به یو ښه زیارت جوړوې، ځکه چي موسی جان خو مي یو دا کازوی هم دئ، او بل په مسافري کي په ارمان سره مړ سو.

سهیل ویل ښه دئ !

سهیل دستي حکم وکی چي ښه زیارت پر موسی جان جوړ کي، په څو ورځو کي یې پر موسی جان ښه زیارت جوړ کی، سهیل راغی و ګلمکۍ ته یې وویل چي اوس خو مي ښه زیارت پر جوړ کی، اوس به نو خوشحاله یې.

ګلمکۍ ورته ویل چي هو، مګر دا یو عرض لا لرم چي موسی جان مي دا پلا ژوندی ونه لید، او دا نوی ښه زیارت دي هم باندي جوړ کی، یو وار مي د ده زیارت لره ور وله چي زیارت یې وکم، بیا به نو هغه دئ زه و ته یو، بل څوک نه سو راپاته کرار به سره کښېنو.

سهیل ویل ښه دئ !

سهار یې ګلمکۍ را رهي کړه، سهیل، ګلمکۍ سره له څو کسو نوکرانو د موسی جان زیارت لره راغله، ګلمکۍ چي په زیارت ور ننوتله، آه یې کړه د موسی جان پر قبر غوځاره سوله، دعا یې وکړله چي الهي ! زیاته ژوند نه غواړم ! د ګلمکۍ نفس پر هغه ځای وختی، مړه سوله، "خدای دې وبخښي"، دا یې هم هلته ښخه کړله.

سهیلي اریانۍ واخیستی چي دا څه پسات راوسو؟ د ده د نوکرانو څخه یوه ناره پر کړه :

لویه خدایه په سهیلي دوه پساته وسوه

یو یې سپینه مکو ولاړه لویه خدایه بل یې خون د لاسه وسو

سهیل ته درد ورغی پر خپل نوکر یې ناره وکړه :

اې سرېه ته پر څه يې زه پر څه يم
چې موسى جان و مکې ولاړه – اې سرېه دا يم تا پسې لېږم

چې يعني زما څه حال دئ ته لا پر زړه مالکي راتويوې، خو دا يې هم وواهه دالته يې مړ کې، خو د سهېلي دېر فکر بد دئ کور ته راغی کښېنستی چرت وهي چې اوس نو څه وکم؟

آبس ! يو څه د غم شپې يې تېري کړلې يوه ورځ يې چرت وواهه چې د وليجان پر کور خو هيڅوک نه سوه پاته، راسه دې تانو ته مړکه وکه، دا د زمري کورنۍ ده، ګوندي خدای يو داسي بهادر زوی ځني راکي، "او بل خو پر هغې هم مين سوی و"، مړکه يې ور ولېږله، مړکه چې راغله تانو ته يې دا بيان وکی، تانو هم هوښياره وه دوهمه خبره يې هيڅ پکښې ونه کړه، ځکه چې دې فکر وکي چې هيڅوک نر ګاړی مو په کور کې نه سو راپاته، اوس خو مو د لاسه هيڅ نه ورسره کېږي، دستي يې مړکې ته وويل چې دېر ښه دئ ! سهېلي ته ووايا ست چې دريمه ورځ زموږ و ستاسي سره وعده ده، دريمه ورځ به راسي درب و دروب مه جوړوه په پټه خوله به خپله نکاح سره وتړو، مړکه چيان بير ته ولاړه، راغله و سهېل ته يې دا بيان وکی چې تانو دېره خوشحاله سوله ويل يې چې دريمه ورځ دې سهېل راسي.

دلته دې تانو په دې درې ورځې کې د کور و ټولو ښځو ته توري او سپرونه په لاس ورکړه د جنګ تعليم يې په شروع کی او ټوله ښځې يې خبري کړلې چې سهېل راسي هوښ کوئ چې ژوندی درڅخه ولاړ نه سي. زموږ نارينه يې ټوله مړه کړه اوس يې و موږ ته ننګلي دي او په سپيتانه او چم به يې هم نه وژنو، چې بيا مو نوم بد نه سي، يه ! هر څه چې ما کول هغه به تاسي کوئ ! ښځو ويل ښه دئ ! يوه تانو ده، يوه دوليجان ماينه ده، يوه د ميرولي ماينه ده، دوې درې يې مينځياني دي، د دې پنځو شپږو ښځو سلا يوه سوله.

دريمه ورځ سهېلي ښه ځان تيار کړی دئ د پاچهۍ جامې يې اغوستي دي، څو کسه معتبرين ورسره دي دا دئ مازيګر د تانو کره راغی کښېنته سو، هغو يې هم ښه عزت وکی، ماښام سو، ډوډۍ يې وخوړله سهېلي حرم سرای ته ننوتی چې اوس نو تانو ته ورځي، تانو هم مخې ته ورغله سهېلي يې

راوستی په خونه کي يې کښېناوه، تانو دباندي راووتله، توره و سپر يې راوړه، د سهېل دمخه يې کښېښووله، تانو ويل دغه دي توره دغه دي سپر ! زما ورا‌ره او ورونه دي وژلي دي اوس نو زما وار دئ، يا به دي مړ کم يا به مي مړه کې ! وروسته يې نو ناره پر وکړه :

سهېليه توره اخله راولاړېږه ! سهېليه د ښځي خيال راباندي مه کړه !

سهېليه ښځه نه يم مه شرمېږه

خير ! خو سهېلي چي هر څه زارۍ ورته وکړې، هغې نه منلې، سهېلي هم ناچاره سو چي وژني مي، ده هم توره وسپر واخيستله خو جنګ يې سره ومښلاوه، د تانو او د سهېلي سره جنګ سو، هغه نوري هم دوې درې ښځي پر راوغورځېدلې، هله هله هله سره جنګ جنګ، څو تانو سهېلي تر وار تېر کی، توره يې ورسره لښته کړه سهېلي يې پر منځ دوه خيا‌ره کی، مړ يې کی، ښځو نوکی نوکی کی، غوښي وهډوکي يې په جوال کي واچوله دباندي يې را وايستله پر هغو نورو مېلمنو ملګرو يې کوټی او يو يو ټکر ور وغورځاوه، نو تانو ناره پر وکړه :

سردارانو تاسي وينښ ياست که بيده ياست؟

سر راپورته کئ د خوبه – سهېلي خو مو اوس خوري د لحد خاوري

سردارانو چي سر راپورته کی، که ګوري د سهېل ککرۍ په ميدان کي پرته ده، سردارانو فکر وکی چي باچا يې وژلی دئ موږ به نو چيري پرېږدي، خو دوی چي کونه ښورول ښځي په ورګډي سولې، جنګ جنګ جنګ ! څه سر دي ګرځوم خو هغه سړي چي د سهېلي سره راغلي وه، څه يې مړه کړه چا الا کړه ولاړه، څوک دالته وه په زاريو يې ځان خلاص کی، وروسته تانو په دغو خلکو کي يو غريب سړی و، دا سړی يې مېړه کی پر حکومت يې کښېناوه سره بېغمه سوله، بس !

(کيسې ولاړه پورته زه راغلم کور ته)

## د موسٰی جان د نقل د نارو وزم :

د نارې په لومړي سر کي (اويه لا) وايي او د نارې لومړۍ مسرۍ خامخا دوه واره غبرګېږي، او بيا په هر ځای کي عندالموقع "وی" يا "ای"، "وی وا"، "خو"

ورسره ویل کېږي، او تر هري ناري وروسته دا مسرۍ وايي :

(چي هر چیري دوه مین وي، وا، دیدن خو دې وسي)

مثلاً :

"او یه‌لا" که‌پوڅي د تانو، "وی وا" خولگۍ خو مي پوڅي، "ای" که‌پوڅي د تانو "وی وای"، خولگۍ خو مي پوڅي

"ای" ما په خدای قسم درکړی، تانو خوري په درگاه "وی وا" کي سپاره څوک دي

اصله ناره خو دا ده :

که‌پوڅي د تانو خولگۍ مي پوڅي

ما په خدای قسم درکړی تانو خوري په درگاه کي سپاره څوک دي

دغه نوري د قوسینو کلمې خاص د وزم له پاره ورسره ویل کېږي.

مثلاً، یا دا :

"او یه‌لا" موسٰی جانه تا په خدای "وی وا" کرم بزگاره "آی" موسٰی جانه تا په خدای "وی وا" کرم بزه‌گاره "آی" موسٰی وروره په درگاه کي دا سپاره "وی وا" د سهېلي دي

ځیني خلک د دوهمي مسرۍ لومړۍ برخه هم دوه واره وایي، لکه پورته دا برخه د دوهمي مسرۍ :

په درگاه کي دا سپاره د سهېلي دي

چي دوه واره ویله کېږي.

# مومن خان او شېرينو

دوه ورونه وه، دغه مشر ورور يې د قوم مشر و او اووه زامن يې درلوده، د مشر زوی نوم يې (زبردست) و، هغه کشر ورور يې نه زوی او نه لور درلوده، د دې ورونو مابينې دواړې برالبې سوې، دغه مشر و کشر ورور ته ووېل چې که ستا لور وزېږېده او زما زوی نو ستا لور به زما و زوی ته راکوې، او که زما کره لور وسوه او ستا کره زوی پيدا سو، زه ستا زوی ته لور در کوم، کشر ووېل ښه دئ.

کارونه د خدای دي چې نه مياشتي نه ساعته تېر سوه خدای و کشر ته زوی ور کی او د مشر لور وزېږېده، کشر ورور د خپل زوی نوم (مومن خان) کښېښو، او مشر د خپلي لور نوم (شېرينو) کښېښوه، مشر ورور هم دستي خپله لور و خپل وراره يعني مومن خان ته ور کړه. و، و، و، مومن خان او شېرينو ښه غټ سوه، په همدغه کوچنيوالي يې په زړو کي د ميني اور يو د بله سره پيدا سو، سره مين سوه.

څو عمر باد دواړه ورونه مړه سوه، د مشر ورور اووه زامن پاته سوه، د دې زامنو يې سره جګړه سوه، يوه ويل زه د پلار پر ځای کښېنم بل ويل زه، خو لنډه دا چې سره بې اتفاقه سوه پر مشر تابه نه سره جوړېدله، ولس ور ته ووېل موږ غرض او اړه نه درلرو، تاسي ټوله پر موږ توپير نه لرئ هر يو چي مشر کېږي زموږ قبول ياست.

مومن خان هم دعوه وکړه چي مشر توب دمخه ستاسي د پلار و زما پلار يې کشر و اوس مشر توب زه غواړم، خو مومن خان ډېر مهربان، وسيله ناکه سړی و، د ولس سره يې خورا ښه کوله، نيم ولس پر ده ودرېدی چي زموږ مشر او خان مومن خان دئ، وروسته سوله پر دې وسوه، چي د نيم ولس مشر يې مومن خان او د نيم ولس مشر دي په دوی کي هر يو چي

کېږي ودي سي، په دغه ورونو کي زبردست مشر سو.

څو ورځي وروسته د مومن خان مور و مومن خان ته وويل چي تربرونه دي خوابدي سوه، ته مرکه ور ولېږه خپله مابنه شېرينو ځني راولاړه که، راواده يې که، سبا به باندي پښېمانه سي.

نو خود مومن خان مرکه ور ولېږله چي ورسئ چي دا ښځه خو کاکا ما ته راکړې ده، چي اوس يې ورونه راکوي او که څه وايي، "شېرينو او مومن خان خو د پلار په ژوند لا سره مين وه، نو مومن خان تر دغي ورځي پوري د پښتني غيرت له لامله خپله مينه پټه ساتلې وه او د شېرينو هم دغه رنګه زړه پوره او صبر يې کړی و، بېغ يې نه کاوه". مرکه چي راغله و زبردست خان ته چي دا خور دي و مومن خان ته پلار ورکړې ده، اوس نو لو ده ور واده يې که.

زبردست خان وويل چي زه هيڅکله خپله خور نه ورکوم او نه زما پلار ورکړې ده، چي پر هغه راغلي ياست پر هغه ځئ.

مرکې ورته وويل چي مه کوه، دا ښه کار نه دئ، زموږ مخ مه ماتوه، په هر څه چي ته خپله خور ورکوې موږ يې قبلوو، "څرنګه چي د پښتنو دا خوی دئ چي مرکه ورته راغله څو يې وس کېږي مخ يې نه ماتوي"، نو ځکه زبردست خان وويل چي اول خو يې نه ورکوم، که بيا هم تاسي ټينګ ياست نو ښه دئ، زما د پلار د پهلواني سپر يو من په تول پاته سوی دئ، په دغه سپر دي دوولس سپره يعني دوولس منه بتکۍ ما ته راکي نو به يې ورکم، که نه وي هيڅ.

مرکې وويل چي پور ته کئ لاسونه، دعا وکئ قبوله مو ده، زبردست خان اريان سو چي دا څنګه کار وسو، ما خو يوه بانه ورته کوله، چي مومن خان خو دونه بتکۍ نه لري او مرکې قبوله کړه، د دې پای يې څه؟ خو ناچاره سو پښتون و د خپله قوله نه ګرځېدی ويل ښه دئ مرکه يې رخصت کړه، مرکه راغله مومن خان پوښتنه ځني وکړه چي ومو غوښته؟ دوی ويل هو! مومن خان ويل ښه دئ! مرکې وويل چي دا پوښتنه دي نه وکړه چي څنګه مو وغوښته؟ مومن خان ويل په څو مو وغوښتله، مرکې ويل په دوولس سپره يعني په دوولس منه بتکۍ مو وغوښتله، مومن خان چي دا خبره واروېده نو يې ناره وکړه:

درځئ درځئ چي سره ځونه
د شېرينو ولور مي غواړي په بارونه

چي يعني زبردست خان ښېښه راته نيسي، پلار يې لور وړيا راکړې ده او دی يې نه راکوي، دوولس منه بتکۍ غواړي دا يوه بانه راته کوي، د ده نوم زبردست دئ پخپل نامه غولېدلی دئ زما سره زبردستي کوي، نو زه خو دونه بتکۍ نه لرم چي ور يې کم، نو خود زما څخه دا وطن پاته دئ، خپل تربرونه دي، جنګ مناسب نه دئ چي ورسره ويې کم، ښه دا ده چي هندوستان ته ولاړ سم، او دا وطن و دوی ته پرېږدم.

نو يې د سفر موزې راوغوښتلې چي زما د سفر موزې او نور سامان رابرابر کئ چي ځم. دلته شېرينو خبره سوه، چي مين دي هندوستان ته ځي، ځرنګه چي دې پر مومن خان زړه بايللی و او دی يې روح ګڼه، نو يې د توانه ووته د مځکي سر ځني ورک سو، د ورونو په غلا يې تور پوړنی پر سر کی، پټه راووتله په يوه تراټ راغله مومن خان لا نه دئ وتلی، نو يې ناره پر وکړه :

تا د سفر موزې په پښو کړې
د ژړو ګلو باغ پر چا سپارې مينه

چي يعني ما و چا ته پرېږدې؟ مومن خان په جواب کي ناره پر وکړه :

ما د سفر موزې په پښو کړې
د ژړو ګلو باغ پر خدای سپارم مينه

شېرينو ورته وويل چي ته ولي ځې، څه سوي دي؟ ده ورته وويل چي ستا ولور په منو بتکۍ غواړي، نو زه دونه بتکۍ نه لرم، نو شېرينو ناره پر وکړه :

د هندوستان و لور ته مه ځه
د شېرينو ولور له ما واخله مينه

مومن جان په جواب کي ناره پر وکړه :

د هندوستان و لور ته ځمه
د شېرينو ولور په خپل لاسو ګټمه

شېرينو فکر وکی چي په دې نارو او خبرو راونه ګرځېدی، نو راسه يوه

بله خبره، چي د پښتون نه ده خوښه ورته وېږ که ، ګوندي راوګرځي نو يې ناره پر وکړه :

د هندوستان و لور ته مه ځه

د هندوستان نجوني لولې بند به دي کينه

چي يعني د هندوستان نجوني ګرده بازينګري دي تا به هم وغولوي باندي مين به سې، بازينګر به دي کي، تربرونه به دربانـدي خاندي، ټول پښتانه به بد دربانـدي وايي، نو مومن جان په جواب کي ناره پر وکړه :

د هندوستان و لور ته ځمه

د هندوستان نجوني زما خوندي مندي دينه

چي يعني مانه سي غولولای او نه مي بازينګر کولای سي، زه پښتون يم، پښتون هيڅکله ننګ د لاسه نه باسي، نو خپل پر آس راسپور سو، د شېرينو څخه رهي سو، نو شېرينو تر شا ناره پر وکړه :

يار مي سپرېږي روانېږي

پر نارنجي مخ مي سېلاب د اوښکو ځينه

چي دوري ځې خال مي سهي که

د هندوستان د چټو نسته شنه خالونه

دا د نـازنـارې يـې پـر وکـړې چـي ګـونـدي پـه دې يـې زړه نـرى سـي راوګرځـي، خـو ده هـيڅ چـرت پکښـې ونـه واهـه، د کلـي څخـه ووت ولاړ.

مومن خـان چي د کلي څخه ووت، شېرينو پر مخي غوځاره سوه يو ګړی ښسده پر ته وه، خو راپورته سوه تر شا يې وکاته مومن خان نسته، نو يې دلته دا نارې وکړې، وروسته کور ته رهي سوه :

چي خان مومن له ما جدا سو

بدن مي رېږدي زړه مي صـبر نه کـوينه

پـه جــدايې سره جلا سوو

مومـــــنه کله به وصلت سره کـوونه

ما جـــدايي لـيدلې نه وه

چي خان مومن را څخه جلا سو وبه مرمه

مومـــنه ځه الله دي مـل سه
دا شـــــينكي خال او زلفي تا لره ساتمه
مسافري په جمع زړه كه
خولګۍ مي ستا ده كه زه خاوري سم مينه

شېرينو جانه كور ته ولاړه، كور د بېلتانه په خونه كي شپې تېروي، دا نو دلې پرېږده مومن جان څو سو؟ مومن جان چي را رهي سو خلک په پسې دي، تر يوه ځايه چي راغله خلكو تـه يې ويل چي بس دئ تاسي رخصت ياست، زه يوازي ځم د خداى په امان! ټوله خلک ځني راوګرځېده مګر يو رېدي ګل نومېده چي د مومن خان خورا ګران اشناى دئ ورته يې وويل چي زما او ستا سر سره تړلى دئ، زه به څنګه ستا څخه جلا كېږم؟

لنډه دا چي مومن خان او رېدي ګل خان سره را رهي سوه، هله هله د سفر كار دئ تر ورځي د شپې ډېر مزل كېږي، خو مزل پر مزل "څه سر دي ګرځوم د نقل كـار دئ"، دا دي وهندوستان تـه راغلـه، د هندوستان د خلكو په هغه وخت كي دا دود وچي بدمخى به وكه به ښايسته هغه به پر مخ نقاب غوړاوه، څرنګـه چي مومن خـان داسي ښايستـه ولكـه پيـروژه چي ستر ګي نه پر رونېدلې، نو رېدي ګل خان ورتـه وويل چي ستا داسي سكه ده، چي هر چا كه وليدلې زړه دربـاندي بايلي، نو ته هم پر مخ نقاب واچوه، ده ويل ښه دئ، خو نقاب يې پـر مخ وغوړاوه ښار تـه ننوتل پـه بازار كي ځي، د هغې خوا پوځ او عسكر راځي تېرېږي، د مومن خـان خپل نوكران ور پـه ياد سوه نو يې زړه درد وكى چي زما هم داسي نوكران وه دمخـه څخـه يې نقاب ايسته كى، چي د دوى سيل وكي خو عسكر تېر سوه د چانه سو ورته فكر، د يوه پيره دار ستر ګي پر وموښتلې دستي غوځار سو بېسده سو، هغه نېزه چي تكيه يې پر كړې وه تر لړمانه يې وختله، رېدي ګل خان ويل مومن خـان تـه وګوره يوه پير دار وليدلې څه احوال يې دئ، نو اختيار لرې چي مخ پټوې او كه نه، مومن خان بير تـه پـر مخ نقاب وغوړاوه، نو راغلـه يوه سراى لـره يوه كوټه يې ونيوله.

دلته خلک پر پيره دار راټول سول وحكومت ته رپوټ وسو، چي پيره دار زخمي سوى دئ، چي د پيره داره څخه يې پوښتنه وكړه چي چا ووهلې؟

ده ویل چي هیڅا نه یم وهلی، مگر زه خپل عشق په نېزه ووهلم، یعني یو ښایسته ځوان مي ولید زه بېسده سوم، غوځار سوم نېزه مي تر نس وختته، په هیڅا غرض مه کوئ.

پادشاه حکم وکی چي دا زلمی بـه خامخا راپیدا کوئ، شاوخوا سپاهیان گرځي پوښتنه کوي، یوه پنډي ورته وویل چي په پلاني سرای کي دوه کسه ځوانان دي، د دې ملک نه دي که وه هغه به وي، سپاهیان راغله د مومن خان په کوټه چي ورننوته ټوله داسي چپه پرېوتله، چي پر سد راغله مومن جان د ټولو سره روغبړ وکی خورا عزت یې وکی، ډوډۍ او مېوې یې ورتـه راوړې ټولـه یـې ماړه کـړه، وروستـه سپاهیانو ورتـه وویـل چـي باچـا غوښتي یاست که نه زهیرېږئ یو واري یې حضور ته ورسئ ډېر به ښه سي.
مومن خان ویل پر غبر گولېمو و ر به سو.

لنډه دا چي مومن خان او رېدي خان ور رهي سول، د باچا حضور تـه راغله، د باچا چي ستر گي پر وموښتلې د ده د ښایسته ځخه ډوب ولاړ، باچا ورته ولاړ سو خیال یې په ورسېدی چي دا هم د باچا زامن دي، د ځنگه سره یې کښېنول نو یې پوښتنه ځني وکړه چي ځوک یاست؟

مومن خان ورتـه وویل چي زه د پلاني باچا زوی یم هلتـه مي خوابده سوې ده دلته هندوستان ته راغلم.

باچا وویل چي ډېر ښه کار وسو، خوا مه بدوه د پلار د پاچهی ځخه راغلې دا دي هم خپل ځای دئ، ما کاکا فرض که هر څه چي غواړې درکوم یې، ده ویل ښه دئ.

لنډه دا چي مومن خان و رېدي گل خان دالتـه اوسېږي، ځو شپې باد یوه شپه مومن خان بیده دئ خوب ویني چي ږغ پر وسي چي پورته سه د دې پسه پهلواني کوه، پر ټولو پهلوانانو به دي خدای قوي او زوره ور او غلیچ کي.

مومن خان راویښ سو، ری یې نه پکښې وواهه، سهار راکښېنوست فکر یې وکړ چي دغه خوب بې ځه نه دئ او ځان هم خورا غښتلی ور معلوم سو، نو راغی چي زه ځان و ازمویم و باچا ته وایي چي صاحبه ! ته خو پهلوانان لرې؟ باچا ویل هو ! زما داسي غښتلي پهلوانان دي چي ساری یې نسته.

مومن خان ویل چي ستا پهلوانان نن ما ته په غېږ راوله چي زه هم ځان

پر واتکلوم، باچا ورته ویل چي ته او ستا نازک بدن او زما پهلوانان ! خو د یوې واري به دي پوښتې به غوټي درماتي کي، ده ویل وي دي زه خامخا په غېږ ورځم.

باچا هم ویل ښه دئ دستي یې هغه غښتلي پهلوان رااووست د خدای عالم جمع سو مومن خان په غېږ ورغی، مومن خان چي مټ پر ونیو پورته یې کی په هوا یې وګرځاوه وګرځاوه بیرته یې پر مځکه لکه یو وړوکی کښېښنو، باچا اریان ورته ولاړ، خو ډېر خوشحاله سو چي داسي زلمی پهلوان مي په لاس کښېووت.

یوه ورځ مومن جان د باچا سره پر اړخ ناست دئ چي نابېره یو چا خط راوړ، باچا ته یې ورکی، مومن خان ورته وایي دا څنګه خط دئ؟ باچا ویل څه یې کوې؟ ده ویل چي خامخا به دا خط راښکاره کوې ! باچا نه ورښکاره کاوه، مومن خان ور حمله کړه خط یې ځني واخیست چي ویې کوت پکښې لیکلي وه، چي د پروسږ کال ججه دربانديي پاته ده، دا ژر تحویل که ! "دا خط د یوه باچا و چي پر دې باچا زوره ور و، په زوره یې هر کال ججه ځني اخیستله"، مومن خان باچا ته وویل چي ججه نه ورکوم، زه هیله و خدای ته لرم چي د دې ججې څخه دي خلاص کم، زه پښتون یم دا بې ننګي پر ځان نه قبلوم، څو یا تا د ججې څخه خلاص نه کم یا سر بای نه لم نه یې پرېږدم.

باچا هر څه ورته وکړه چي زه ججه ورکوم ته به نه ځې، ده ویل یه زه پښتون یم خامخا ځم، او هم یوازي ځم، دغه خپل ملګري لا تا ته دلې پرېږدم.

لنډه دا چي مومن خان یوازي را رهي سو راغی د دې باچا ښار ته، د یوه زرګر دوکان ته ورغی زرګر ته یې څه بتکۍ د جېب څخه وکښلې ور یې کړې ورته ویې ویل چي ما ته د سرو زرو د آس نالونه راجوړ که، زرګر وخندل چي دا وګوره ! چا د آس نالونه د سرو زرو جوړ کړي وي.

اُریان ولاړ، خو مومن خان ورته وایي چي ته یې ژر راجوړ که، زرګر په کار اخته سو، دی ورته ناست دئ، نور خلک هم بانديي راتول دي، مومن خان که کتل یوه ښځه ده ځان یې ښه جوړ کړی دئ، پر اوښ په بار کي سپره ده، یو سړي اوښ تر مهار نیولی دئ کشوي یې، ښځه چي د زرګر د

دوکان پر حد راغله ناره يې وکړه :

څوانانو ننګ راباندې وکئ

پلار مې مغل دئ ما ښامار لره لېږينه

په دې مجلس کې يو تو کمار ناست و، د دې ښځې په جواب کې يې ناره وکړه :

موږ خو به ننګ درباندې وکړای

مېړه دې ناست دئ په مجلس کې څوږ بړېتونه

مومن جان د زرګر څخه پوښتنه وکړه چې دا څه ناره او دا څه نقل دئ؟ زرګر ورته وويل چې هلته په غره کې يو لوی ښامار دئ، هره روځ يوه ښځه يو اوښ په ډوډۍ بار باچا د ښار څخه ورلېږي، ښامار يې خوري، که يې يوه ورځ ور ونه لېږله نو ښامار راځي په ښار ګډېږي سړي په ساکې الوزوي خوري يې، مخلوق غرقوي او دغه ښځه او اوښ و ډوډۍ په دې ښار کې په وار ورلېږي، نن د باچا د لور وار دئ دا ښځه د باچا لور ده او دا سړی چې په دوکان کې ناست دئ، د وزير زوی دئ د دې ښځې مېړه دئ.

مومن جان ويل خدای يو مالګي تروې چې شېرينو هم ښځه ده او دا هم که زه ژوندون وکم، څو يا ځان بای نه لم يا دا ښځه خلاصه نه کم.

لنډه دا چې مومن خان دستي راولاړ سو، توره يې راواخيستله په دغه اوښ او ښځه پسې پټ رهي سو، کرار کرار پسې څارو دئ، هغه سړي اوښ راووست د هغه غره په شپله کې يې ايله کی، سړي ځني را الا کړه، مومن جان په مخه ورغی، سړي ورته ويل چې دوري مه ځه اوس ښامار راځي ښوی به دې تېر کي، ده باک په ونه کی خو راغی هغې شپلې ته ښځه پر اوښ سپره ده، ښامار لا نه دئ راغلی. ښځې چې تر اوسه ښامار نه وليدلی پر مومن خان يې سترګې وموښتې خيال يې دا سو چې همدغه لکه چې ښامار دئ، نو د وهمه څخه د اوښ څخه لاندې راولوېده، تر دغه نازک بدن يې ژرګي او ازغي پورې ووري ووتل، نو ښځې په ژړا ناره پر وکړه :

ته مې انسان يې که پېری يې

زما تر زړه وخاته د ژرګو سره مېخونه

مومن خان ناره پر وکړه :

زه خو انسان یم پېری نه یم
یم مومن خان ستا په کومک راغلی یمه

مومن خان راغی ښځي ته یې وویل چي ېغمه اوسه خدای ساتندوی دئ، ته ورسه پر هغه چینه پټه کښېنه، زه بېدېږم هر وخت چي ښامار راغی پر ما بږغ وکه.

دې ویل ښه دئ، خو دی پرېووت نجلۍ پر چینه کښېنسته چي مومن جان بیده سو دې وویل چي ده پر ما سر کښېښېښو نو چي دی خوري ما دې په سر کي وخوري، نو راغله د مومن خان سر یې کرار پر خپل زنګانه کښېښو، په څونو کي یې ګوتي ور وهي باندي مینه سوه، د یوې خوا د ښامار وهم و د بلي خوا د مومن خان د میني اور سو، نو ته وا څنګه به وي؟ یو ګړی چي وسو ښامار لکه غونډۍ، غونډۍ غونډۍ کېږي راغی. ښځي چي مار ولید ګنګوړه سوه بږغ یې تر خوله نه خوت د حرکته ولوېدله، چي مومن خان یې خبر کړی وای، خو د سترګو څخه یې اوښکي د مومن خان پر مخ راتوی سولې، مومن خان په راویښ سو. چي ویې کتله سر یې د دې پر زنګانه پروت و، خوا یې بده سوله چي سر دې د نامحرمي پر زنګانه و، خو بیر ته یې وویل چي دا ځای د دغه نه دئ مه کوه د شېرینو لا ارمان په زړه کي پاته سو، دا خواره لکه چي د بېري دلته راغلې ده.

لنډه دا چي ولاړ سو دا ښځه یې ګوښه کړه، ده بسم الله کړه ! توره یې اوږده اوږده په خپلو تلو پوري وتړله نو ستوني ستخ پرېووت پښې یې په هوا ونیولې، ښامار چي راورسېدی پر مومن خان یې امله وکړه، مومن خان پښې ور څرمه کړې، د ښامار په خوله کي یې پښې ورکړې، خو ښامار تېر اوه خوله یې سمدلاسه په توره څرېده، څو ښامار تر نیمي څیري سو مړ سو، مومن خان بیر ته ژوندی څني راووت. ښځي ته یې بږغ کړه چي راسه ښځه چي راغله مار لکه غونډۍ پروت و مړ دئ، وروسته مومن خان د مار څخه یوه نرۍ تسمه سر تر پایه وایستله په جېب کي یې واچوله، نور یې تکر تکر کی، ښځي ته یې وویل چي زه نو ځم ته پر اوښ سپره سه کرار کرار راځه، که چیري بل چا دعوه وکړه چي ښامار ما وژلی دئ نو ته ورته ووایه چي مار هغه چا وژلی دئ چي پوره تسمه یې

ورځخه وي او زماځای هغه د زرګر دوکان دئ زیاته نو ته او خپله راستي.

نو مومن خان ځني ولاړ، ښځه تر یوه ځایه راغله کښته سوله نو پر یوه غونډۍ کښېنستله چي یو څوک پیدا سي ورسره ملګرې به سم.

دلته د باچا مایني یعني مور یې یو سړی راولېږی چي ته ورسه زما لور خو به یې اوس خوړلې وي، که یې چیري یو څه نخښه یا د پوړني څوکه پر ته وه رایې وړه چي پر هغه یو قبر جوړ کم. سړی چي را رهي سو راغی هغې شېلې ته نابېره یې یو وار پر ښامار ستر ګي ولګېدې، مخامخ یې را الا کړه، هله هله چي راغي د باچالور یې ولیده چي ژوندۍ ناسته ده، اوښ ور ته ولاړ دئ، د باچالور وویل چي ولي ځغلې؟ مار خو مړ دئ، سړي فکر وکي چي د باچالور به و باچا ته ور ولم باچا به خوشحاله سي زه به ور ته ووایم چي ښامار ما مړ کی، خلعت به راکي منصب به را لوړ کي، د باچالور یې پر اوښ سپره کړه سره را رهي سوه، هله هله دا دي د باچا و حرم سرای ته ورننوتل، سړي باچا ته وویل چي صاحبه ! دا دئ ښامار مي کړ کی او لور مي دي هم راوستله، باچا ډېر خوشحاله سو، غوښت یې چي شاباسی ور کي لور یې ناره پر وکړه :

ښامار هغه سړي وژلی
چي خپل په جېب کي د ښامار نخښه لرینه

نو باچا د دغه سړي ځخه پوښتنه وکړه چي ستا ځخه د ښامار نخښه سته؟ ده ویل نخښي ته حاجت نسته هغه دئ مار مي ټکر ټکر کړی دئ پروت دئ، باچا د لور ځخه پوښتنه وکړه چي هغه سړی چي ښامار یې وژلی دئ او نخښه یې ور ځخه ده چیري دئ؟ دې ناره پر وکړه :

ګل د زرګر پر دوکان ناست دئ
چي دغه سپین مخ یې د لمر شغلې وهینه

دستي باچا سړي و مومن خان ته راولېږل، په ډېر عزت یې مومن خان وغوښت، مومن خان چي راغی باچا پوښتنه ځني وکړه چي ښامار تا وژلی دئ؟ ده ویل هو ! دغه یې نخښه ده. باچا ور ته ویل آفرین ! دغه زما لور او

نیمه پاچهي ستا ده. ده ورته ویل چي زه ستا پاچهي نه کوم او لور دي هم نه کوم څو زما یو ناز وانه خلې. باچا ورته ویل پر غبر ګولېمو هر څه چي وایې زه یې قبلوم، ده ویل چي د پلانکي باچا ښځه به ججه نه اخلې او زه راغلی یم چي پوښتنه در ښځه وکم چي ته دده ښځه ولي ججه اخلې؟ باچا ویل چي ما یې پهلوانان ور مات کړي دي، مومن خان ویل چي ستا پهلوانان هم زما سره وازمویه که یې زه مات او غوڅار کړم خو ججه ځني اخله که نه وي، وربخښې به یې.

باچا ویل چي دا خو څرګنده خبره ده چي زما په پهلوانانو کي دونه پهلوان نه و چي دا بلا یې وژلې وای، تا مړه کړه، یه نو ما خپله لور او ججه او نیمه پاچهي دربخښلې ده، مومن خان ویل چي زه پاچهي نه کوم او نه ماینه کوم، زه ماینه لرم باچا و دې ته اړ کی چي پاچهي نه کوې دغه لور به مي خامخا کوې، مومن خان ناچاره سو د باچا د لور سره یې نکاح وتړله، ماښام چي یې لور ورته راوستله چي نوري ښځي ووتې نیمه شپه سوه مومن خان توره وکښله په ځای کي یې تر منځ کښېښووله، نو یې د باچا لور ته وویل چي زما مطلب او د زړه مینه شېرینو ده، بل چا ته مي میل نه کېږي، او ما د شېرینو سره قول کړی دئ چي زه په پر بل چا مینه نه کوم نو باید پر خپله پښتو ټینګ سم، ته هوښ کوه چي لاس یا پښه راوانه ړوې چي په دغه توره به یې غوټ پرې کم. د باچا لور ورته وویل چي زه ستا پر مړانه او دوو سترګو مینه یم، نور څه مي نه دي په کار، زه ستا په مرضا ځم چي هسي زه ستا په نام یم دغه فخر مي بس دئ.

سهار مومن خان و باچا ته ویل چي زه ځم، باچا هم دستي خط ورکی چي ما ججه دربخښلې ده، ده خط ځني واخیست را رخصت سو، "دي نو پرېږده چي پر لار وي"، هلته چي مومن خان د خپله کوره او مور ښځه را رهي سو د ده اشنایانو پر زبردست خان دوی لاس واچاوه، هره شپه به یې مالونه ځني بېول، سړی هم نه و معلوم چي څوک یې بیایي، دوی د وهمه ښځه چي شېرینو بو نه زي، نو شېرینو به یې په منځ کي د شپې پرې ایستله دغه اووه ورونه به شاوخوا پر راوګرځېده بیده به سول، او زبردست خان به د دروازې و خوا ته پروت و، او د مومن خان مور یې د خپله کوره وشړله څه

چي يې درلوده ځني وايي خيستل، د مومن خان د مور يو ماجتي[1] زوی و، دا يې په يوه کلي کې ګوروان کی، يوه ورځ د دغه ګوروان ځخه غواوي د زبردست خان په کښت ګډي سوي وې د زبردست خان بزګرو دی وواهه، دی کور ته راغی و مور ته يې وويل چي زه هم ځم دا وطن يې پاته، خو دا ماجتي هم مخ د هندوستان پر خوا راهي سو، هله هله راغی هم هغه مخني باچا ته چي مومن خان ورسره و، د هغه باچا پايدواني يې ونيوله، دی چي ولاړ د زبردست خان هم لږ ځه زړه نری سو چي دا خو بد کار پېښ سو.

مومن خان چي راورسېدی دغه خپل ماجتي ورور يې وليدی ناره يې وکړه :

که پايدوان يې پر ما ګران يې

د ژړو ګلو باغ پر ځای که خزان وونه

چي يعني شېرينو ناسته وه که يې چا ته ورکړې وه، ده چرت وواهه چي راسه داسي جواب ورکه چي راسره ولاړ سي نو يې ناره وکړه :

که مومن جان يې پر ما ګران يې

د ژړو ګلو په باغ ګډ واته مالونه

د مومن خان ډېره خوا بده سوه دستي يې پر باچا ناره وکړه :

باچا رخصت راکه چي ځمه

پر دنباله مي غمازان کوي شورونه

خو باچا ته يې هغه د ججې بخښلو خط ورکی باچا ډېر خوشحاله سو نو ده ويل چي زه رخصت يم باچا ويل چي مه ځه زه او زما ټوله عسکر پر تا ولاړ يو، د هر چا سره چي دي بدي ده موږ به سرونه دربانديي کښېږدو، ده ويل يه! حاجت نسته موږ خپله درې ملګري يو ځو، نو باچا اوه غاړي په بتکيو ور بار کړې ځو کسه نوکران يې ورسره کړه چي دوی تر وطنه ورسوي. مومن جان دوی مخ د کور پر خوا راهي سوه. "دوی نو دلې پرېږده چي مزل کوي"، مومن خان چي هلته د باچا يعني د خسر د کوره راهي سو، ماينې يې

---

[1] ماجتي هغه کوچني ته وايي، چي مور و پلار يې نه وي معلوم، او په مسجد کي يې ځوک پيدا کي لوی يې کي.

وباچا ته وویل چي زه په مومن خان پسې ځم، باچا ویل چي څنګه ځې؟ دې ورته ویل چي زه ده د مرګه خلاصه کړم بلکي ټوله رعیت او ښار یې د بلا څخه وساتی او تا هم ور وبخښلم، نو ما ته اجازه وکه، او نه دېرش نجوني نوري راسره که موږ به درېشي وکو هلته به پسې ورسو، دریمه ورځ به دغه نجوني بیر ته راواستومه ستا به نوم سي او مومن خان به دي ښه ترا خپل او خوشحاله سي، باچا ویل ښه دئ.

بس دستي یې نه دېرش نجوني راټولي کړلې ښې دریشی یې په وکړلې پر اسانو راسپرې سوې، دا دي د دې بل باچا ښار ته راغلې، د مومن خان پوښتنه یې وکړه چي مومن جان چیري کښېني؟ دوی ورته وویل چي نن دریمه ده، چي د خپل وطن پر خوا رهي سو، کور ته ولاړ. د باچا لور سره له هغه نورو نجونو هم دستي د دوی په پله پسې رهي سولې، هله هله شپه و ورځ یې پر ځان یوه کړه خو دا دي د مومن خان په ډله پسې راورسېدلې، پوښتنه یې وکړه چي مومن جان څه سو؟ دوی ورته وویل چي هغه د خسر کره ولاړ، تاسي هم دلې اوسئ اوس به دستي راسي، "دلته چي مومن خان دوی و سهېل[2] ته راورسېدل، نو همدالته د زبردست کور نژدې و، شپه ده، نو مومن خان و خپلو ملګرو ته وویل چي تاسي دلې دېره سئ، چي زه یو واري یوازي ورسم چي وګورم چي رشتیا یې شېرینو ورکړې ده که نه؟ که یې ورکړې وه نو شېرینو او مېړه به یې غبرګ په توره ووهم مړه به یې کم، زیاته هر څه چي پېښه سوه زما د توانه وتلې ده، او که یې نه وه ورکړې نو بیر ته به دستي راسم"، نو مومن خان چي ولاړ، د زبردست خان و کلا ته تر دېواله ور واووښت، خپل کرنګ آس یې دباندي وتاړه، د زبردست چارپایي د دروازې سره پر ته ده او شېرینو د دغه نورو وروڼو په منځ کي بیده ده، نیمه شپه ده د مومن خان د توانه ووته ور تېر سو، د شېرینو څخه یې مچه واخیسته، شېرینو راویښه سوه مخ یې په ناړو لوند دئ، ناره یې وکړه :

ورونه د مرګ په خوب بیده دي
پر نیمه شپه مي غمازان آزارونه

---

[2] سهېل نوم د یوه وطن دئ.

دستي يې ورونه راوغورځېده هر يوه يوه يوه چاره وواهه، خو مومن خان د غير ته ږغ نه کوي او نه جنګ کوي، زبردست راغی يوه چاره يې په دغه ځګر کي وواهه غوځار سو، نقاب يې د مخه ايسته سو، شېرينو په دغه تاريکه کي وپېژاند، نو يې ناره وکړه :

ادې راکښېنه اور رابل که

د مومن خان په وينو رنګ سوه بالښتونه

خير خو د کلا دروازه يې خلاصه کړه چي مومن خان يوازي راغلی دئ که نور څوک هم ورسره دي، دباندي چي يې وکتل هيڅوک نسته، يو کرنګ تړلی دئ نو شېرينو ناره پر وکړه :

کرنګه مات دي سه بندونه

پر نيمو شپو دي مومن خان راوی د کمه

د ميني خواست و کرنګ پر دغه ځای خوځار سو بندونه يې غوټ مات سوه. مومن خان ژوندی دئ، دستي يې په مور پسي سړی واستاوه چي دا اوستری ديد يې وکي، سړی چي راغی د مومن خان مور ته يې وويل چي مومن خان راغلی دئ اوس دستي بير ته ځي راسه که يې ديدن کوې!

مور يې خوابدې سوله چي زبردست زما سره څه بې وري کار وکی او داسي جفلوي يې زمور سره وکړې، دی لا ورځي مېلمه کېږي يې، خو زوی و نه کېده را رهي سوه، چي راغله که ګوري خلک راټول دي نو يې ناره پر وکړه :

مخلوقه څنګ وهئ څنګونه

چي زه په زړه د مومن خان يم ګيله منه

خلکو لار ورکړه دا چي راغله که ګوري چي مومن جان په وينو کي غرق او لړند پروت دي، نو يې ناره وکړه :

ما به پر کور کول فالونه

چي مومن خان به هندوستان راوړي شالونه

نو يې وژړل ويې ويل چي زما خيال دا و، چي دی به د هندوستان څخه بتکی او شالونه راوړي، ده ځان بايلو، نو يې پر شېرينو مخ راوګرځاوه چي مومن خان خو ستا د لاسه تکر تکر سو، نو د دې په جواب کي شېرينو ناره

پر وکړه :

د مومن خان عقل کوتاه و
پر نیمو شپو څوک د چا سرای لره ورځینه؟

بیا د زبر دست مور ناره پر وکړه :

مومن مي د وولس کاله تللی
پر دیار لسم کال چي راغی اجل نیولی

چي یعني تاسي ګیلې مه سره کوئ د مومن خان اجل پوره و، وروسته د مومن خان مور د مومن خان ځخه پوښتنه وکړه چي په دغه اوو تپو کي دي کم تپ ډېر خوږېږي؟ ده ویل دغه د ځګر د چړې تپ مي ډېر خوږېږي، نو یې ناره وکړه :

مومن اووه چړې خوړلي
د زبر دست د چړې ډېر فریاد کوینه

زبر دست چي دا ناره واروېده، چي مومن زما د چړې ځخه مري، جدایي یې زړه نری کړی و زړه یې درد وکی چي په داسي پر دېسي کي مي مړ کی، نو یې هغه چاړه په خپل ځګر کي ووهله سوړ پوړ واوښت، خلک پر راټول سوه یو غم دوه سوه. زبر دست وصیت وکی چي زما جنازه د ده د جنازې دمخه وړی او ما د ده دمخه ښخ کئ، ځکه چي ما ډېر ظلم ورسره کړی دئ، دا یې وویل مړ سو.

مومن خان چي دا احوال واروېده چي زبر دست خان ځان ووله مړ سو، نو یې وویل چي زه خو مړ سوم نو ده ولي ځان واژه، لږ ګړی وروسته د مومن خان ستر ګي ودرېدلې تور یې ولاړه سپین یې راغله، سګلی وهي مور یې په وپوهېده چي د مرګ څپه پر راغله نو یې ناره وکړه :

یاسین شروع کئ ملایانو
چي مومن خان د زکندن سګلی وهینه

ملایانو یاسین پر شروع کی پر مومن خان خوله راغله مور یې بیا ناره وکړه :

یاسین په زوره باندي وایاست
پر مومن خان د زکندن خولې راځینه

لنډه دا چي مومن خان مړ سو، خلک پر ناست دي سهار سو، ملايان يې اخلي غسل ورکوي، شېرينو ناره پر وکړه :

جانان زما پر خولگی مړ دئ

عالمه مه يې لمبوئ چي شهيد سونه

"دی نو پر بړده چي جنازه يې ور سموي"، هلته هغه څلوېښت نجوني او د ده ملگري سره له بوڼي را رهي سوه چي ورسو کور ته، د باچالور يې دمخه ده چي راغله په لار کي د کلي دباندي يو بزگر اوبه لگوي ژاړي، د باچالور پوښتنه ځني وکړه چي د مومن خان کور کمه دئ؟ بزگر ناره پر وکړه :

پر نيلي سپور راغلې ښه ځوانه

مومن جان مړ دئ په هوا ژاړي مرغيه

بزگر دا نکل ورته وکی چي داسي مړ سو، نو دې ناره پر وکړه :

يو دا دي څه ويل بزگره !

غشي دي راکی د ځگر پر پيوستونه

نو د باچالور خپل آس د مومن خان د ارواح په خوښي و بزگر ته وروباخښه، خپله دريشي يې وکښله، هغه خپل د ښځي کالي يې واغوسته، هغه نوري نجوني يې بير ته هندوستان ته رخصت کړلې، ورته ويې ويل چي بابا ته وواياست که زه مړه سومه خو ښه، که ژوندۍ ومه نو زه دلې د مومن خان پر زيارت ملنگه يمه، "دلته يې د مومن خان جنازه را اخيستې ده، بزگر ورته وويل چي کور ته مه ورځه، هغه ده د مومن جان جنازه يې را اخيستې ده، جنازې ته يې ورسه"، شېرينو د جنازې په وخت کي وويل "چي د مومن خان ارمان نه دئ ختلی، د ده جنازه دي تر هديرې پوري پېغلي نجوني يوسي"، د باچالور چي راغله پوښتنه يې وکړه چي د مومن خان کمه جنازه ده؟ دوی ورته وويل چي هغه پېغلو نجونو چي را اخيستې ده، نو دې ناره پر وکړه :

د پاسه دوې جنازې راغلې

د مومن خان جنازه پېغلي نجوني وړينه

خو دا يې هم تر جنازې لاندي سوله، جنازه يې هديرې ته راوړه، کښې يې ښووله نو د باچالور پوښتنه وکړه چي شېرينو کمه ده؟ دوی ويل دغه ده،

نو دې ناره پر وکړه :

مومن پر تا مړ سو مرداري

ما د انار تر ګل نازک ساتلی وونه

د زبردست خان مور ته درد ورغی چي زما زوی خو هم مړ سو، زه څه نه وایم نو یې په جواب کي ناره پر وکړه :

د مومن عقل د مريي و

کاروان یې پرېښو د سهېل پر میدانونه

د باچالور راغله ویل یې چي اوس خو مړ سو، څه څېړنه، نه ده په کار او که تاسي ښه کوئ ایسته سئ چي زه د مومن خان دغه آخر دید وکم زما ارمان نه دئ ختلی، خلک سره ایسته سوله، نو دا راغله د مومن خان د جنازې سره وغږېدله، ویل خدایه ! که به د زهیرو او رښتیني مینو زړو خواست اخلې، نو زه زیاته ژوند نه غواړم !

لنډه دا چي الله تعالی یې خواست قبول کی دې خپل نفس د مومن خان پر نفس خیرات کی، مړه سوله.

وروسته یې د مومن خان قبر پرېکاوه، چي ښخ یې کي، مور یې ناره پر وکړه :

مومن پر لوړه غونډۍ کښېږدئ

چي خواره مور یې هر سهار زیارت کوینه

خو د مومن خان قبر یې پر لوړه غونډۍ پرېکاوه، مور یې راغله ورته ودرېدله، نو یې پر قبر کیندونکو ناره وکړه :

قبر یې ښه پرې کئ یارانو

مومن پردېس دئ پکښې تېر به کي کلونه

چي قبر یې ور جوړ کی، مومن خان یې پکښې کښېښو، شېرینو راغله ورته ودرېده، د مومن خان پر برېتو خاوري پرتې وې، نو یې ناره وکړه :

مومن په ګور کي دستمال غواړي

په پاکوي دا خپل د خیال کاږه برېتونه

چي مومن خان یې ښخ کی پټ یې کی، نو شېرینو اوسترۍ د ارمان ناره پر کوي:

ارمان ارمان لا خانه مومنه

ارمان مي دا دئ خانه مړ وې مړ مي کړې پخپله[٣]

لنډه دا چې مومن خان يې پر لوړه غونډۍ ښخ کی او د باچا لور او زبردست يې په هديره کي ښخ کړه، دعا يې وکړه چې خدای دي دوی او ټوله مسلمانان وبخښي، دنيا بې وفا ده، هيڅ بار نه ديئ پکښې تړلی، خپلوان يې کور ته راغله، د غمو شپې يې تېرولې و بس !

(تمام سو)

وايي چې دوی يې ښخ کړه، ماښام يوه ښه سړي خوب وليد، چې د باچا لور په خپل قبر کي نه وي، سهار يې دا خوب ووايه، د زبردست ورونه چې ورغله قبر يې وشانه، دا نه وه، اريان ولاړه چې دا څه سوه نو يې يو ښه صاحب الحاله سړی و، د دې څخه پوښتنه وکړه چې ته وګوره چې دا ښځه څه سوې ده؟ ده چې سر پټ کی ... وروسته يې سر راپورته کی ويل يې چې هغه د مومن خان په قبر کي ده.

دوی راغله د مومن خان قبر يې وشانه لڅ يې کی هلته پرته وه، نو يې بيرته راوکښله بل ځای يې ښخوله، دغه ښه سړي ورته وويل چې دا رښتيني مينان دي، چې هر ځای يې ښخ کئ، بيرته د خدای په حکم سره ورته راځي، يه ! تاسي يې د لاري پر هغه بله خوا ښخه کئ چې خلک يې په منځ کي تېرېږي نو نه سي سره ورتلای[۴].

د باچا لور يې پر هغه بله خوا ښخه کړه، وايي چې څو ورځي وروسته د مومن خان او د باچا د لور د قبرو څخه زرغونه نهالان راشنه سوه، دواړه سره راکاږه سوه، سرونه يې يو تر بله سره جارواته، لار يې په منځ کي تېرېدله چې اوس هم هغه وني پر هغه ډول سته.

---

[٣] دا ناره نکل چيان د کسر پر ډول تر هري ناري وروسته کوي.

[۴] اوس هم وګړي وايي چې هديره بايد و لاري ته نژدې وي، نه د لاري پر يوه خوا پر بله خوا، ځکه دغه مړي بيا نه سي سره ورتلای.

**تبصره :**

د مومن خان د نقل ناري که څه هم بېل وزم لري، مګر په وزن او قافیه کې کټ مټ لکه ملي لنډۍ داسي دي، ډېر وګړي وايي چې ملي لنډۍ یا د مومن خان او یا د طالب جان د نقلو څخه شروع سوي او په پښتنو کي رواج سوي دي، او د طالب جان نقل او ناري يې چې ما اروېدلي دي کټ مټ همدغه اوسنۍ مروجه لنډۍ پکښې وايي، مګر په بېل وزم.

د مومن خان د ناري وزم :

د ناري لومړۍ مسرۍ دوه واره ویله کېږي، او د دوهمي مسرۍ اووم یا اتم یا نهم او لسم سېلاب دوه واره ویل کېږي، او د ناري د کلمو په منځ کي (لا)، (وی)، (وی) ور زیاتوي، مثلاً :

ارمان ارمان (لا) خانه مومنه (دوه واره)

ارمان مي دا دئ خانه مړ (وی) مړ مي کړي پخپله

او همدغه ناره د هري ناري وروسته د کسر پر ډول ویله کېږي.

# جلات خان او شمایله

ته وا ښه !

چي و، یو ډېر غریب سړی و، دوه یې زامن وه، یوه یې ماینه وه، د مشر زوی نوم یې خنکار و او د کشر زوی نوم یې مسلم و[1].

نـو دی دئ دوه یـې زامـن دي د ورځـي ولاړ سـي و چوغکـو تـه دامونـه ایږدي، مرغان نیسي ښار ته یې راوړي خرڅوي یې، خپل کفاف او ګوله پـه برابروي او خپله شپه په تېروي. دې پلار یې وویل چي تر څو به دا آزارونه ګټم، او تر څو به دا د ژوند غم ګلوم؟ ماینې ته یې وویل چي زه خو دغه غره ته ځم ګوندي خدای وي چي یا مړ یا به موړ سم.

خیر ! خو وغره ته راغی په غره کي تمامه ورځ ګرځېدی خو څه یې نه کړه پیدا، آخر ته یې یوه تکه سپینه اګۍ پیدا کړه دا اګۍ یې راواخیستله کور ته راغی، ماینې ته یې ویل چي بل شی می نه کی پیدا دغه یوه اګۍ مي پیدا کړه راوامي خیستله.

ماینې یې ورته ویل چي ته یې ښار ته یوسه ښایي چي په څو ایکۍ یې ورکې، او د هغې خوا به یوه ګوله ډوډۍ راوړې، دې سړي همدا اګۍ ښار تـه راوړه یوه دکاندار ته یې ښکاره کړه چي دا اګۍ نه رانیسې؟ دوکاندار چي وکتله ورته ویې ویل چي زه د دې اګۍ قیمت نه لرم، صراف ته یې یوسه.

بیا یې یوه صراف ته راوړه هغه هم چي وکتله ورته وې ویل چي زه یې قیمت نه لرم، سړي فکر وکی چي رشخند راوهي، ولي خو یو څو ایکۍ به یې قیمت وي بیا یې بل غټ سېټ ته راوړه، هغه اګۍ ولیدله ورتـه ویل یې چي په څو ده؟ ده فکر وکی چي راسه ډېري روپۍ ورته ووایه، ورته ویل یې چي

[1] دغه زامن یې د دغي ماینې نه وه، د بلي ماینې څخه وه، دغه ښځه د دوی میره وه.

په درې سوه روپۍ، سبې هم دستي روپۍ ور کړې دا غریب سړی ډېر خوشحاله سو، روپۍ یې راواخیستې کور ته راغی ماینې ته یې روپۍ ور کړې خو ډېر خوشحاله دئ.

هره ورځ غره ته ځي دا اګۍ د هغه مرغه د ځالي څخه را اخلي، راوړي یې خرڅوي یې، په لږه موده کي ماړه سوه.

آخر ته دې سړي فکر وکی ماینې ته یې ووېل چي زه به دا مرغه ونیسم دلې به یې راوړم د دې تکلیفه به خلاص سم، ماینې وېل ښه دئ.

خیر ! څو ولاړی هغه مرغه ته یې دام کښېښو، په دام کي یې ونیوی کور ته یې د اګۍ سره راوړی، دغه مرغه اګۍ ور اچوي دوی یې خرڅوي، خورا دولتمند سوه، یوه لو کلا یې جوړه کړه.

آخر ته دا سړی مړ سو، اجل یې پوره و، دې عیال ته یې دغه مرغه اګۍ اچوي په دغه اګۍ یې ګذران کاوه، خو مور یې کونډه سوه، دا یو هلک اګۍ وړي پر هغه سبې بانډي یې خرڅوي. میرې یې ویل چي زویه ته و دغه سبې ته ووایه چي نن مي مېلمه یې، ولي هره ورځ اګۍ راڅخه رانیسي، زوی یې ویل ښه دي.

بله ورځ چي دا زوی یې سبې ته اګۍ راوړه نو یې و سبې ته ووېل چي ادې مي ویل چي نن شپه مي مېلمه یې. سبې ور ته ووېل چي مور ته دي ووایه که دغه مرغه را حلالوې او ټول یوازي ما ته راکوې، او نو کی نه ځني ګرځوې نو درځم که نه وي ... نه درځم.

زوی یې راغی مورٍ ته یې ووېل چي سبې داسي وایي ...

مور یې ویل ښه دئ[۲].

دستي یې مرغه حلال کی په دېګ کي یې سور کی سبې یې راوغوښتی سبې چي راغی ویل نو کی غوښي به د دې مرغه وچا ته نه ور کوې، دې ویل ښه دئ.

وختي چي مېنځي دا مرغه سور کاوه، نو دغي مېنځي په غلا د دې

---

[۲] و دې دولتمند ته معلومه وه چي د دغه مرغه زړه او سر چي څوک وخوري هغه پاچا کېږي.

مرغه زړه و یوه هلک ته اوسر یې وبل هلک ته ورکی، ویې خوړ، چې دوړې یې راوړه د مرغه غوښې یې ورته کښېښوولې، سبټ چې وکتل سر او زړه یې نښته نو سبټ ډېر خوابدی سو، چې زما د زړه مقصد خو سر او زړه و هغه خو نښته، نو یې ورته وویل چې زه ځم ته پر قول ونه درېدې، مینځه راغله هلکانو ته یې وویل چې که کور ته ورغلاست میره مو وهي وایي چې د مرغه سر او زړه یې ولي خوړ، نو دستي خونکار و مسلم د بېري دواړه ولاړه وتښتېده.

هله هله راغله تمامه ورځ یې مزل کړی دئ، ستړي دي تر یوې وني لاندي کښېنسته، خو دا مشر ورور خونکار نامی ورته پرېوتی، دغه کشر مسلم نامی په مچلوغزه چوغکي ورته ولي، یو ګړی یې چوغکي ووېشتې خو چې بیر ته راغلی که ګوري دا ورور یې مړ دئ.

خو ډېر خوابدی سو ژاړي، اوس اریان دئ چې څوک به یې راسره ښخوي، آخر ته پر یوه لو لوړه غونډۍ وختی شاوخوا ګوري چې ګوندي څوک به پیدا سي چې دا ورور راسره ښخ کي، د دې غونډي پر سر ولاړ دئ که ګوري چې لیري خورا نهایته ډېر خلک سره ټول دي، دی را رهي سو چې زه ورسم چې دا څه خلک دي، چا ته به ووایم چې راسي دا ورور راسره ښخ کي.

مسلم چې راغی د دې خلکو باچا مړ دئ، باز یې ایله کړی دئ د هر چا پر سر چې کښېني هغه باچا دئ، نو د خدای عالم دئ، باز ایله دئ یو وار باز راغی د مسلم پر سر کښېنستی، خلکو ویل باز خطاوتی.

خیر ! خو په درې څلو باز د مسلم پر سر کښېنستی، مسلم یې راکش کی، باچا سو، هغه خپل ورور یې هېر سو.

"دا تأثیر د هغه مرغه د زړه و، چې خوړلی یې و"، دا مړ ورور یې پروت دئ تر دې وني لاندي. وروسته درې تک سپین مرغان راغله په دې ونه کي کښېنستله، دې یوه مرغه ویل دا څنګه ښه ځوان دئ، دې بل مرغه ویل :

دا سړی خو نه دئ مړ، او د دې وني په پاڼو به جوړ سي.

دې بل ویل : راسئ چې دا پاڼي ور ورژوو ګوندي یوه پاڼه یې په خوله کي وموښلي. پاڼي یې ور ورژولې، یوه پاڼه د دې خونکار په خوله کي

ولوېده، د دې پاني اوبه يې په خوله کې توی سوې، قدرت د خدای دئ دا سرې ژوندی سو، بير ته جوړ سو، داغسي راپور ته سو شاوخوا يې وکتل چي زما ورور څه سو؟ خو ورور يې نه وليدی.

دستي راولاړ سو پر يوه لوړه غونډۍ وخوت شاوخوا يې وکتل چي زما ورور څه سو؟ خو هيڅ پته يې نه کړه پيدا.

وروسته يې مخ راونيو را رهي سو څو شواروزه يې مزل وکی، څو يو ځای ته راغی چي ډېر عالم سره ټول دي دغسي د خلکو غلغلې دي، دی چي ورته راغی که ګوري يو باچا مړ دئ خلک پر پاچهي نه جوړېږي، باز يې ايله کړی دئ، د هر چا پر سر چي کښېنوست، هغه باچا دئ.

خونکار هم سيل کوي، يو ګوښه ځای حيران ولاړ دئ، باز راغی د خونکار پر سر کښېنستی، خلکو ويل باز خطاووت.

بيا يې باز ايله کی د دې وار بيا د خونکار پر سر کښېنوست.

خير ! خلکو هم قبول کی خونکار يې راکش کی باچا يې کی، "دا سبب د هغه مرغه د سر و، چي خوړلی يې و".

مسلم په يوه ښار کي باچا سو، خونکار په بل ښار کي باچا سو، يو تر بله نه دي سره خبر، د مسلم باچا خالص زامن پيدا کېږي، څو اووه زامن يې سوه او د خونکار باچا دا لوڼي زېږي، خو دغه خونکار چي لور يې وزېږي هغه دستي مړه کي، لور نه پرېږدي وژني يې[۳].

آخر ته ماينې يې يوه لور وزېږوله څو خونکار خبرېدی و يوې دايي ته يې پټه ورکړله، چي ته دا لور راساته او د هغې مزدوري به يې هم په پټه ورکړله. دې دايي دغه لور څني واخيستله، نوم يې (شمائله) پر کښېښو، ساتي يې، "عمر دئ تېرېږي"، دغه شمائله لو سوله.

خورا ډېره ښايسته ده دا دايي راغله د شمائلې مور ته يې وويل چي لور دي اوس لو سوله، او خورا ډېره ښايسته ده، هر څه چي پيښېږي پلار يې په خبر که. مبادا سبا به يې خپل پلار خونکار باچا په خبر سي، چي يوه ښايسته

---

[۳] د دې لوڼو د وژلو سبب يې دا دئ چي خونکار ته به هغه خپله ميره ور په ياد سوله، نو ويل به يې دا خو به هم هغسي سي، نو به يې مړه کړله، د ميرې کسات يې څني اخيست.

نجلۍ ده، خونکار خو ناخبره دئ، چي په زوره به يې کش کي، نو به ستا هم او زما هم او د خونکار مخان تور وي، ولي خو د خپلي لور سره به زنا کوي.

مور يې فکر وکی چي ښه وايي، نو يې شمائله راوغوښتله خپل کور ته يې راوستله، شمائله پر بام وختله په مکڼ کي شاوخوا ګوري سيل کوي، د هغې خوا خونکار کور ته راتلی، دا شمائله يې د دباندي څخه وليدله، ډېره يې خوښه سوله پر مين سو، کور ته چي راغی د ماينې څخه يې پوښتنه وکړه چي دا ښځه څوک ده؟ دې ورته وويل چي دا دي لور ده. ده ويل زما لور د څه وه؟ درواغ مه وايه.

دې ماينې يې دا نکل ورته وکی چي ...

نو خونکار ورته وويل چي ورسه مخامخ يې پر ما راوله، ماينې يې هم د بامه څخه راشوه کړه مخامخ يې پر راوستله، نو خونکار وويل چي دا لور مي د مرګ وړ نه ده، نه يې وژنم، ليکن مېړه هم نه ورکوم، دا په شرطو ده، چي څوک دا شرطونه پر ځای نه کي نه يې ورکوم، هر چا چي دا شرطونه پر ځای کړه دا زما لور د هغه ده، زما پاچهي هم اووه روځي د هغه ده، او که يې نه کړه پر ځای د هغه سر به غوڅ پرې کېږي.

د شمائلي د ښايست نوم په ټولو ښارو کي ولاړ، ښه ښه ځوانان شازاده ګان پر عاشقان سي، راسي دا شرطونه نه کي پر ځای سرونه يې غوڅ پرې کي مړه يې کي.

يوه ورځ د مسلم باچا شېر زامن په ښکار راوتلي دي، ښکار کوي، په دښت کي ګرځي که ګوري په دې دښت کي پر يوه بوډۍ پېښ سول.

دې بوډۍ ورتـه ويل چي تاسي څنګـه ښـه ځوانان ياست ولاړ سئ د خونکار باچا لور ده شمائله چي داسي ښايسته ده، داسي و داسي، څنګه و څنګه ... ده.

خو دوی يې ناديده پر عاشقان کړل، بس دوی هم د روه را رهي سول، د مور او پلار څخه يې رخصت راوانه خيست، هله هله مزل پر مزل د شمائلي ځای تـه راورسېدل، دوی هم خبر ورکی، د شمائلي د غوښت نغاره يـې وډنګوله، خونکار ور وغوښتل ورتـه ويې ويل چي تاسي ډېر ښـه ځوانان ياست پر مرګ مي نه پېرزو کېږئ، زما د لور شرطونه خورا ګران دي ارمان

به وکړئ.

خو دوی نه درېدل، ویل یه موږ ورځو ستا د لور شرطونه پر ځای کوو، لور دي غواړو، ته یې شرطونه راوښیه باچا ویل شرطونه یې دا دي :

۱. د اوسپني کونده به د لرګي په تبر ماتوئ.

۲. د شمائلي ژړه غوا چي ښکر یې په الماسو کي نیولی دئ، دا به لوشئ.

۳. دغه غوا چي ولوشئ شیدې به یې درې واره په ځغاسته وبام ته خېژوئ.

۴. شګي او ایرېدن یې سره ګډ کړي دي نیمه خونه یې په ډکه کړې ده، دا به سره جلا کوئ.

۵. زمري به راولئ د باچا د زمري سره به یې جنګوئ، که یې دا زمری مات نه کی هم یې بایلوله.

۶. د شمائلي د بنګلې لار به پیدا کوئ چي یعني د کمي خوا د دې د ناستي ځای ته لار ورځي.

دغه شرطونه یې ور وښوول، ویل دا به پر ځای کوئ، که مو د دې شرطو څخه یو پر ځای نه کئ یا در څخه پاته سو، دستي مو سر د تنه څخه جلا دئ.

اول وار دغه تر دوی کشر ورور ورته ویل که ما وګټله هم د لالا ده، که آبل وګټله هم د لالا ده، خو دغه کشر ورور یې اول وار راغلی د لرګي تبر یې د اوسپني پر کونده راپورته کی، ډب سو د لرګي تبر مات سو کونده خونه ماتېږي.

سر جلاد ورته ولاړ دئ سر یې غوټ ځني پرې کی.

بیا یې دوهم ورور پر راتېر سو، دې هم شرط نه کی پر ځای جلاد پر راتېر سو، چي اوس یې سر پرې کي، ده ناره پر وکړه :

که ځووم دئ لویه خدایه نن د دې میاشتي ځووم دئ

زما یې یو ورور دئ وژلی، چي دا زما سر پرې کوي دا یې دوهم دئ

دا مسری "څوک چي غواړي شمائله سر خو به بایلي خود به یې بایلي"

وروسته تر هري نارې ویله کېږي.

څه سر دي ګرځوم دا پنځه وروڼه پنځه سره مړه سول، او هر يو چي سر به يې ور پرې کاوه دغه پورتني ناره به يې وکړه، دا يې تفاوت دئ : "دا يې دوهم دئ"، آبل ويل "دا يې دريم دئ"، آبل ويل : "دا يې څلرم دئ" ...
څو شپېږم مشر ورور ته وار ور ورسېدی، ده هم شرط نه کی پر ځای جلاد پر راتېر سو، چي اوس يې سر پرې کي، ده ورته ويل چي ته وده، ناره يې وکړه :

يو که کښته د بابا شينکيه کښته

پر جلات مي سلام وايه چيري نوم د خونکار اروې ځني تښته

خير ! سر يې ځني پرې کی شپږ سره مړه سول.
جلات خان د دوی کشر ورور دئ، چي ښځي کوچني و کور پاته سوی و، خير جلات خان کوچنی دئ، د مسلم باچا کشر زوی دئ خورا ډېر پر ګران دئ، ولي هغه شپږ زامن يې مړه سول دا جلات خان هره ورځ په کوڅه کي د يوې بوډۍ د زوی سره بجلي کوي، خو دا د بوډۍ زوی بجلي ځني وګټي، جلات خان يې بير ته په زوره ځني واخلي، د بوډۍ زوی په ژړا کور ته ولاړ سي، مور يې ورته وايي چا ووهلې، دی وايي جلات خان په زوره بجلي راڅخه واخيستې، وې وهلم، خو هره ورځ يې دغه حال دئ.
يوه روځ يې مور ورته ويل که يې نن ووهلې، نو ورته ووايه که ته داسي ښه يې د خپلو وروڼو بازخواست وکه، چي څنګه مړه سول، ته پر ما زلنده سې، د بوډۍ زوی ويل ښه دئ.
بله ورځ بيا د بوډۍ زوی د جلات خان سره بجلي کوي، خو بيا د بوډۍ زوی ځني وګټلې بيا جلات خان وواهه بجلي يې په زوره ځني واخيستې، د بوډۍ زوی ژاړي ورته وايي : که ته داسي ښه يې د خپلو وروڼو بازخواست وکه.
جلات خان چرت يووی چي زمانو وروڼه د څه وه، خو بجلي يې ټوله د بوډۍ و زوی ته ور وغورځولې کور ته را رهي سو، راغی مور ته وايي ادې ! داسي مي پر دا سر درد دئ، ته نو کی نيني راوکه چي و دې تندي ته يې ونيسم، چي سر مي ټکور سي، ګوندي دا درد يې وشلېږي، "پر مور خو ډېر ګران و نو يې د هغه نورو وروڼو د حال څخه نه خبراوه، ولي ويل يې دی به هم

پسي ولاړ سي خونکار به يې مړ کي"، کړايي يې باندي کی نيني يې وکړې په کړايي کي سرې پرتې دي جلات خان ورته وايي هله ادې ته نوکي راکه چي زې و دې تندي ته ونيسم، دې چي مټ په ډک کی. جلات خان په دواړو لاسو د مور مټ پر دغه تودونينو ټينګ ونيوی ويل ژر کوه ما وروڼه درلوده که نه؟ او څه سول؟ د مور يې لاس وسو، ويل "د خدای پار دئ"، لاس دي راوسو، ايله مي که، خبروم دي. څو جلات خان قسم په وکی د مور لاس يې ايله کی، نو مور يې د وروڼو کيسه ورته وکړه، چي داسي شپږ وروڼه دي وه، داسي پر شمائلي باندي خونکار باچا مړه کړل، داسي، داسي و داسي ...

خير ! جلات خان په حال خبر سو، دستي را رهي سو، مور ته يې بږغ ونه کی، هله هله ... دا دئ يوه ځنګله ته راورسېدی.

که ګوري يو فقير ملنګ يې وليدی چي توله په خپلو ورېښتانو کي پټ دئ، نو جلات خان راغی ورته ودرېدی، پر ملنګ يې ناره وکړه :

که بير دئ شاه فقير سر مي بير دئ

يوه نېکه دعا راکه، چي په خوا مي د خونکار باچا سفر دئ

فقير هيڅ بږغ ونه کی، بيا جلات خان ناره پر وکړه :

که بير دئ فقير ګل سر مي بير دئ

يوه مسته دعا راکه چي په خوا مي شمائلي سخت سفر دئ

فقير ال کړه، سر يې راپورته کی ويل څوک يې؟ څه کوې؟ جلات خان دا خپله کيسه ورته وکړه چي داسي دئ، داسي دئ، داسي ځم ... فقير ورته وويل چي د مور و پلار څخه دي حق پليت را اخيستی دئ که يه؟ ده ورته وويل : يه ! فقير وويل ولاړ سه د مور و پلار څخه حق پليت راواخله نو راسه چي زه دعا درته وکم، هغه نور وروڼه دي پخپل سر تللي وه پای يې څه سو؟

جلات خان بير ته کور ته راغی پر مور يې ناره وکړه :

که مرلۍ[۴] يه د جلات خان په لاس مرلۍ يه

که را خپل کې موري ستا د ځګر پۍ يه

---

[۴] مرلۍ : توله دو زبانه را ميګويند که مارګير در وقت مار ګرفتن آنرا مي سرايد.

"یعني موري ! حق راخپل که" زه ځم.
مور چي یې فکر وکی چي نه پاتېږي، خو ورته ویل یې حق مي در خپل دئ، په مخه دي ښه.
بیا راغی پر پلار یې ناره وکړه :

که مرلی د جلات خان په لاس مرلی یه
که راخپل کې پلاره ستا ډېرې خواری یه

پلار یې هم دعا ورته وکړه، ویل ځه زویه پر ټولو بلاوو برسېره سې.
جلات خان بیر ته را رهي سو، بیا ملنګ ته راغی، بیا یې هغه ناره پر وکړه :

که بیر دئ شاه فقیر سر مي بیر دئ
یوه مسته دعا راکه چي په خوا مي شمائلي سخت سفر دئ

فقیـر سـر راپورتـه کـی، ویـل د مـور و پـلار څخـه دي رخصـت راواخیستی؟ ده ویل هو ! نو فقیر ناره پر وکړه :

که بیر دئ د فقیر سر خو بیر دئ
یوه ښه دعا مي درکړه ورځه لاس دي پر اوو بلاوو بر دئ

(یعني مقصد دي حاصل سه) نو جلات خان ته ملنګ وویل چي ملا میـرو زمـا مریـد دئ، او د خونکـار باچـا مـلا دئ، دا زمـا خـط چټـی (رقعـه) درسره واخله هغه ته به یې ورکې نو ملا میرو به کومک درسره وکي.
جلات خان د ملنګ څخه چټی (رقعه) راواخیستله (ملنګ په خط کې د ده ډېر سپارښت ولیکی) جلات را رهي سو، هله هله دا دئ راغی یوه بل ځنګله تـه، کـه ګوري یوه زړه زمری ده د دې زمری په پښه منډه تللی دئ، ناري وهي په عذاب ده، جلات خان ورته راغی.
ویل آ زمری ! زه به دغـه منډه د پښې څخـه در وکـاږم، دې زمـری پـه زبان حال یا پـه سر ښورولو دی وپوهاوه چي ښه دئ. جلات خان یو غار وکیندی په ننوت، او یوه لو سنګړه یې پر سر ور کښېښووله چي که زمری خوړ سوله زه به په غار کې یم، دې زمری تر چوله پښه ور ننه ایستله جلات خان منډه ونیو کش یې کی، دې چغه کړه ! د ځنګله ټوله زمریان راحاضر سول ویل خیر ! دې ویل خیر خیریت دئ، هو هغه بیا دوهم وار منډه ځني کش کي خو وې کیښ. زمری ډېره خوشحاله سوله پښه یې ښه سوله، دا

زمرۍ د ټولو زمريانو انا ده، مشره يې ده، نو يې دې زمريانو ته وويل چې دې انسان له ما سره ډېر ښه کړي دي، تاسي به هيڅ نه ورته وايـاست خـوړا خدمت به يې کوئ، ټولو ويل پر سترګو !

نو جلات خان د غاره راووت ټوله زمريان ورته په سلامي سوه، د ده خدمت کوي، څو زمرۍ حکم وکی چې ولاړ سئ تارو ورته راوړئ، زمريان ولاړه تارو يې ورته راوړي، ورته کښې يې ښو، جلات چې تارو وليدی ناره يې وکړه :

شاه زمرۍ چې پر تور ځنګله دي کور دئ

دا تارو دي ما ته راوړي، شاه زمرۍ يه د تارو پخلنګ په اور دئ

چې يعني دلته خو اور نسته نه اورلګيت سته او زه خو انسان يم اوم يې نه سم خوړلای خود را رخصت سو.

خير جلات خان چې د زمرۍ څخه را رخصتېدی، زمرۍ ورته وويل چې څه غواړې؟ ده ويل هيڅ ! څو زمرۍ درې واره ورته وويل چې څه غواړې؟ ده به ويل هيڅ آخر زمرۍ د خپلو برېتو څو تاره ورېښتان وکښله ده ته يې ورکړه ويل يې چې هر چيري دي موږ په کار سوو، دا بريت په اور کي وسوځه موږ به دستي حاضر سو.

نو را رهي سو پر لاري ځي يو بزګر اوبه لګوي پر مځکه يې اوبه راسمي کړي دي، که ګوري په يوه پوله کي داسي مېږيان راوتلي دي، چې دغه مځکه يې توره اخيستې وه، د دې جلات خان زړه پر وسو، نو بزګر ته يې وويل : آ بزګره ! دا پوله دي څو حاصل کوي؟ ده ورته وويل چې شل منه ! جلات خان ورته ويل پر دې پوله اوبه مه ايله کوه زه به يو په درې قيمت درکم، بزګر هم ويل ښه دئ. بس اوبه يې ځني واړولې، شاوخوا يې ځني وتړلې. مېږيانو چې دانېکي وليدله، جلات خان ته مندوشاه[5] راغی چې زموږ مېلمه يې. جلات خان چې يې راوستی مېږيانو د ملخ پښه ورته کښېښووله، جلات خان ويل په عزت اوسئ ستاسي مېلمستيا راورسېده زه نو رخصت يم، خو جلات خان ځني را رخصت سو، دې مېږي هم برېتونه

---

[5] مندوشاه – د مېږيانو پادشاه.

ور کړه ویل هر وخت چي دي موږ په کار سوو دا بریت اور ته ونیسه، موږ به ژوله حاضر سو. جلات خان را رهي سو، دا دئ د خونکار ښار ته راورسېدی، ولاړی د ملا میرو کور یې پیدا کی، چي راغی د ملا میرو پر سرای یې ناره وکړه :

یو که لوړ دي ملا میرو سرایونه لوړ دي

ته راووزه میرو گیه ! دا ښایسته جلات ولاړ دئ مسافر دئ

(یعني جلات داسي ښایسته ځوان دئ ته خو راووزه ویې گوره)، دستي ملا میرو راووت ویل خدمت ! جلات د ملنگ کاغذ ورښکاره کی، ملا میرو چي وکتی ویل ډېر ښه دئ، دستي یې حجرې ته راوستی د ځان طالب یې کی، سبق یې په شروع کی، دی ډېر چالاک و، ذهن یې درلودی په لږ موده یې کتابونه ژوله خلاص کړه، ډېر هوښیار فهمیده سړی سو.

یوه ورځ د قاضي لور مړه ده، ملا میرو پاتا ته تی، نو یې مایني ته وویل چي بیا طالب ته د گل غوټۍ[6] په لاس ډوډۍ ورولېږه، دی ولاړی مایني یې د ډوډۍ کاسه تیاره کړله د گل غوټۍ په لاس یې ورکړه چي ملا جلات طالب ته یې وروړه، ملا جلات چي خبر سو، چي د ملا میرو لور راځي (جلات خان خو ډېر ښایسته و) دستي یې لرې پیدا کی، په سر کي یې وتړی ویل چي فساد راځخه پیښ نه سي، د ملا میرو د لور به خوا راځخه وگرځي بیر ته به ولاړه سي، خیر گل غوټۍ چي راغله (چټه پیغله ده) چي جلات یې ولیدی بس په دغه حال کي پر عاشقه سوه، دالته غوځاره سوه، مور یې پسي راغله چي دا لور مي څه سوه، مور چي یې راغله چي جلات خان یې ولیدی د دې هم خوښ سو، دا هم پر عاشقه سوه، خیر خو دې لور و مور چي هر څه ورته وکړه دی گردسره ستر گي نه وراړوي، بله روځ چي ملا میرو راغی دې مایني یې ورته ویل چي راسه سړیه دا گل غوټۍ به و دې ملاجلات ته ورکړو، ملا میرو هم ویل ښه دئ، ملا میرو راغی ملاجلات ته یې خپله لور وروبخښله، ملا جلات ناره پر وکړه :

یو که توره ملا میرو له رنگه توره

گل غوټۍ دي ما ته راکړه – گل غوټۍ زما په دین و دنیا خوره

---

[6] گل غوټۍ د ملا میرو لور وه.

چي يعني زه يې نه کوم ملايان ټوله سره خوابدي سوه، ګرده ولاړه دي هم په حجره ننوتی، ملا ميرو وويل دا څنګه کار وسو؟ ماينې يې ورته ويل دا خو لا ښه سو، د ګل غوټۍ ورور سو خلک به تهمت نه وايي.

جلات خان اوس نو د سره څخه لري وغورځاوه ګل غوټۍ پر عاشقه ده دا د ملا ميرو لور د شمائلي مجلسي وه، څو شپې پرله پسې نه ورغله، آخر ته يې پوښتنه وکړه چي دا ګل غوټۍ ولي نه راځئ؟ يوه ښځه يې ورته راولېږله چي ورسه ګل غوټۍ ولي نه راځي؟ هغه چي راغله جلات خان يې وليدی دا هم پر مينه سوله، دالته پسي کښېنسته.

بله ورځ يوه بوډۍ ده چي د شمائلي له پاره يې د ګلانو دستې جوړولې، دا بوډۍ ده ګرځي د ځان سره ګډه ده، جلات خان و نورو ښځو ته ويل چي دا څه وايي؟ هغو ورته ويل چي د دې هم يو زوی ورک دئ نوم يې "جلات" دئ (جلات خان موقع پيدا کړه) ويل هغه خو زه يم، راغی بوډۍ ته ودرېدی چي ادې ! "هغه بوډۍ هم شوقي وه جلات خان ښايسته و" ويل قربان چيري وې زويه ! بس را رهي يې کی د دې بوډۍ دوه زامن نور وه، د يوه نوم مومندی د بل نوم سومندی دئ، دوی دواړه زرګري کوي، مور يې راغله ويل زامنو ! هغه ورک ورور مو دغه دئ پيدا سو.

آبس جلات خان يې پر زرګري کښېناوه (جلات خان بچه مرد هلک و نهايته ښايسته و هر څوک به دده ديدن ته راتلی) نو داسي يې دوکان په چل کي سو، چي په لږه موده کي مومندی او سومندی خورا دولتمند سول.

يوه ورځ دغه بوډۍ د ګلانو ګېډۍ جوړوي جلات خان ورته وايي چي دا څه کوې؟ بوډۍ وايي دا دغه د شمائلي مجلسيانو ته ور وړم، جلات خان ورتـه وويل چي دا کمه ګېډۍ اخلي؟ دې ورتـه وويـل چي د سودې آخره ګېډۍ دا اخلي، "نو جلات خان خو نقاش هم و"، پټپله يې يو ګېډۍ جوړه کړه. د سودې په آخره کي يې واچوله، بوډۍ چي ګلان يووړه هلتـه يې وويشله، آخره دسته شمائلي واخيسته د شمائلي خوښه سوله، شمائلي ويل آ بوډۍ انا ! دا دسته چا جوړه کړې ده؟ دې ورتـه ويل زما يوه پکه لور ده هغې جوړه کړې ده، شمائلي ورته ويل چي ولي دي دا دونه عمر نه راوستله، سبا به يې خامخا درسره راولې، چي زه يې وګورم. چي بوډۍ هر څه وکړه

چي د سر يې بوی ځي ښنګه ده... خو مجبوره يې کړه چي خامخا به يې نن شپه راولې! بوډۍ چي کور ته راغله حيراني اخيستې ده چي څه به کوم، لور خو مي نسته، شمائله به مي مړه کي، راغله جلات خان ته وايي چي زويه! شمائله خو داسي وايي، د دې پای يې څه؟ جلات خان ويل دا خو اسانه خبره ده، ورسه و ګل غوټۍ ته ووايه چي دا ستا کالي و ګېڼه ټوله راکه، بوډۍ هم راغله د ګل غوټۍ جامې يې ټوله جلات خان ته راوړې، جلات خان د ګل غوټۍ کالي واغوستله، د پنبه تي (پستان) يې جوړ کړه سر يې بيا په لري کي وتاړه، ويل چي بوډۍ دروا‌غجنه نه سي او زما خو کوښۍ هم نسته، دا ده ماښام بوډۍ دمخه ده جلات خان په پسې دئ، راغله د شمائلي کره، نو جلات خان تر پايه چي ورځي چپه پښه اخلي (چي وايي شک يې راونه رسېږي) شمائلي چي جلات وليدی چي ورته وې کتله پر مينه سوله، نو يې ناره پر وکړه:

يو که توري شاه زرګري ستر ګي توري
شاه زرګري که ته نر وای نجوني نوري
"يعني کشکي ته مي زرګري نر وای".

جلات خان فکر وکی چي شک يې نه در ورسېږي نو يې پر شمائلي ناره وکړه:

يو که توري شمائلي ستر ګي توري
شمائلي که ته نر وای نجوني نوري
"يعني کشکي ته نر وای نوري نجوني وای".

د شمائلي شک نه ځني خېژي، اوس نو په جلات خان ازمويښتونه کوي چي نر دئ که ښځه؟ اول چي کښېنسته د جلات خان زنګون يې پر خپلو ورنو سربېره کی چي زنګون به کښېکاږي، بيا يې خپل زنګون د ده پر ورانه سربېره کی چي ګوندي ده ته به خوند ورکي، خو جلات خان لکه ښځه هيڅ ادرم[٧] نه پر کېږي. بيا يې د ګلانو دستې جوړي کړې، تر ځايو يې ور لاندي کړې چي که ښځه وه دا د ده دسته به خزانه سي، او که نر و تازه

---

[٧] ادرم: تأثير، اغېزه.

به وي، ولي ښځه خو ګرمه ده، جلات خان فکر وکی، چي دا زما دسته خونه خزانېږي، زه خو نارنیه یم.

نو یې سهار وختي د بلي ښځي د ځای څخه پټه د ګلانو دسته راواخیستله تر خپل ځای یې لاندي کړله، خپله دسته یې هلته کښېښووله.

خیر ! خو هر څه چي یې وکړه تر پایه شمائلي نه وپېژاند "ویل دا شاه زرګره ده"، دوې درې شپې یې تېري کړې، خو بله ورځ بوډۍ ورته راغله چي دا زما لور را پرېږده مېړه یې راغلی دئ کور ته یې بیایي، نو جلات خان یې را رهي کی کور ته راغله چي هغه جامې یې وکښلې خپلي جامې یې واغوستلې نو په یوه کوټه ننووت، د زرګرۍ اسباب یې ورسره واخیست و دې مومندي و سومندي ته یې ویل چي په ما دا یو څو عمر کار مه لرئ.

جلات خان په دې کوټه کي و زمري ته وجوړېدی، زمري جوړوي، کار یې وکی، هله هله داسي زمری یې جوړ کی چي ډېر ښه ایسي، کُل یې تر مریو، غمیانو وکیښ نو یې نس ګوک (خالي) و رپرېښو او په پای کي یې پېچ ورکی چي وې پېچې لکه دربچه دونه سي، او یو بل پېچ یې پکښي کښېښو، چي دا وپېچې زمری بازۍ کوي، وروسته جلات خان و مومندي ته ویل چي زه په دې زمري ننوزم ما په شا که باچا ته مي یوسه، باچا به وایي چي دا څنګه ښه زمری دئ نو خود به ته ورته ووایې چي دغه پېچ یې وپېچې دا زمری بازۍ هم کوي.

څو ورځي پس به راسې باچا ته به ووایې چي زما زمري راکه، کور ته به مي راوړې.

آبس جلات خان په زمري ننوت، مومندي واخیستی باچا ته یې دا زمری راوړی. باچا زمری ورته وتړی هره ورځ بازۍ ورته کوي، د باچا سات په تېر دئ، په دې مابین کي شمائله خبره سوله چي پلار دې داسي زمری لري.

شمائلي پلار ته حال راولېږی چي دا زمری راواستوه، چي موږ یې هم وګورو او څو ورځي سات په تېر کو. پلار یې هم زمری ورته راولېږی. چي شمائلي ته یې زمری راوست، زمري بازۍ ورته وکړې، دا د شمائلي مجلسیاني څوک پر سپرېږي څوک یې تر لکۍ کشوي، تر نیمو شپو یې

ساتېږي په کاوه، وروسته ټوله ستړي سوي راغلي ډوډۍ يې وخوړه، بېدي سوې، زمري يې وتاړه، چي ټوله بيدې سوې شمائله هم بيده سوه. جلات خان د زمري څخه راووت ورغی د شمائلي پلنګ ته، د شمائلي د پلنګ سره څراغان لګېږي، جلات خان يې د سر څراغ و پښو ته د پښو څراغ يې و سر ته کښېښو، خپله ګتمۍ يې د دې په ګوته، د دې ګوتمۍ يې په خپله ګوته کړله، د دې دسمال يې څني واخيست، خپل دسمال يې ور پرېښو، نو بير ته راغی په زمري ننووت.

شمائله چي سهار راويښه سوه، اريانۍ واخيستله چي دا څه نکل دئ؟ دا سړی د کمي خوا راغلی دئ؟ ولي دا ګوتمۍ خو د نارينه ده، نو يې ناره وکړه:

که کرار دئ نن زما زړه ناکرار دئ

تاسي کښېنۍ سهېلۍ[8] دا په لاس ګوتمۍ زما ده که د يار ده

خير! سهېلۍ هم اريانۍ واخيستلې، خو دغه روځ يې په چرت تېره کړه، ږغ يې ونه کی، بيا يې په زمري بازۍ کولې، بيا ماښام سو، بيا بيدې سوې، جلات خان بيا د زمري څخه راووت، بيا و شمائلي ته راغی، خو د دې واري يې مچه څني واخيسته، بير ته په زمري ننووت.

دا چي راويښه سوه مخ يې لوند دئ، دوباره يې ناره وکړه:

که کرار دئ نن زما شوی کرار دئ

تاسي کښېنئ سهېليو چي پر مخ مي د خوني زمري پرهار دئ

خو شمائله پوه سوه چي دا په زمري کي علت دئ، خو زياته يې ږغ ونه کی، بيده سوه. چي سهار سو نو يې ټولي سهېلۍ (مجلسياني) شمائلي رخصت کړې ويل دا څلور ورځي به نه راځئ. سهېلۍ هم ولاړې، يوازي دا و زمري پاته سوه، چي ماښام سو مينځي ډوډۍ ورته راوړله، شمائلي يو څه وخوړله، او نوره يې دالته د سره سره پټه کړله، مينځه يې وشړله، ويل څه! پام کوه چي رانه سې زه بيدېږم.

مينځه ولاړه شمائلي ځان پر خوب واچاوه، مينځه چي ولاړه شمائلي

---

[8] سهېلۍ: مجلسياني.

پر زمري ناره وکړه، څه به يې ويلي وي؟ وابه يې روې:

که کرار دئ نن زما زړه ناکرار دئ

ته را ووزه د زمريه! که غوبه يې که چاميار[۹] يې زما يار يې

جلات خان چي دا واروېده فکر يې وکی چي څوک نسته او شمائلي پېغور درکی، نو ده ناره پر وکړه:

نه غوبه يم نه چاميار يم لويه خدايه

ښايسته جلات مي نوم مسلم مي پلار دئ

خود جلات خان د زمري څخه راووت، سره غېږ په غېږ سوه، سره کنښېنستله، هغه ډوډۍ يې وخوړله، جلات خان ورته ويل چي څنګه به سي، دا شرطونه به پر څه ډول پر ځای کم؟ دوباره دې شمائلي دا خپل شرطونه داسي ور وښوول.

۱. دا زما د سر ورېښته به هغه د اوسپني تر کونډې وپېچې د لرګي په تبر به يې ماته کې.

۲. دغه زما دستمال به غوا ته وښوروي نو به غوا در ته ودرېږي، وبه يې لوشې.

۳. دغه زما ګوتمۍ به د هغې غوا په شيدو کي ووهې، هغه به پوڅه سي بام ته به يې په تاخت وخېژوې.

۴. زما د ځای لار زما د پلار تر تخت لاندي ده، دی به تر لاس ونيسې چټک به يې ولاړ کې ته به راسې.

او هغه نور دوه شرطونه زمانه دي زده، ده ورته وويل هغه زما زده دي، چاره به يې وکم (دجلات خان خو زړه پوړه دئ)، خو بير ته راغی په زمري ننووت.

خير سهار مومندي و باچا ته راغی چي صاحبه! هغه زما زمری راکه، اوس نو بسته سات به دي په تېر سوی وي، باچا هم حکم وکی زمری يې ور ته راوغوښتی، زمری يې د شمائلي څخه راواخيستی، رايې وړی د مومندي په لاس يې ورکی، مومندي هم زمری را په شا کی، چي کور ته يې

---

[۹] موچي.

راوړی جلات خان د زمري څخه راووت، فوراً يې خپله درېشي وکړه پر آس سپور سو، راغی باچا ته يې سلام وکی چي صاحبه ! زه ستا د لور شرطونه پر ځای کوم. که مهرباني وکې او را معلوم يې کې. خير ! خو باچا هر څه ورته وويل چي مه کوه ارمان به وکې، ده ورته ويل چي : "وي دي".

باچا اول د اوسپني کونده د لرګي تبر، په لاس ورکی چي دا کوند په دې تبر ماته که، جلات خان هم ماته کړه.

بيا يې هغه نور شرطونه ورته وويل چي دا ... داسي او دا ...

لنډه دا چي جلات خان دا څلور شرطونه پر ځای کړه.

وختي چي پنځم شرط يې پر ځای کاوه نو راغی د شپې په هغه د اوړدنو او شګو په خونه ننوتی د هغه مېږي بربت يې اور ته ونيو، يو ګړی چي وسو هغه مېږيان چي د بزګره يې خلاص کړي وه ټوله را حاضر سوه، ويل خدمت ! جلات خان حکم پر وکی چي تر سهاره پوري به دغه شګي او اوړدن داسي سره جلا کوئ، چي يوه دانه ګډه سره پرې نه ږدئ، که يوه دانه سره ګډه پاته سي زما مرګ دئ.

مېږيان هم ورته وجوړېده يو دم يې شګي و اوړدن داسي سره جلا کړه چي يوه دانه يې پرې نه ښوول، مېږيان يې رخصت کړه دا شرط يې هم پر ځای کی.

بيا چي يې زمری د باچا د زمري سره جنګاوه نو ولاړ پټ يې د هغې زمري بربت پر اور کښېښو، دستي زمريان راحاضر سوه، يو غټ زمری يې راوستی د باچا د زمري سره يې وجنګاوه، د باچا زمری يې ور مات کی، دا شرط يې هم پر ځای کی، "خو چوک چوکه" سوه شرطونه يې ټوله پر ځای کړه، شمائله يې په نره توره وګټله، باچا هم شمائله په لاس ورکړه.

باچا فکر وکی چي دا ګرده علت په دغه د مومندي په زمري کي و، خوراً قهر ورغلی دئ، مومندی يې راوغوښتی حکم يې پر وکئ چي بو يې زئ مړ يې کئ. د مومندي لاسونه يې ور وتړله راکش يې کی، مومندی چي د جلات پر رده راغی نو يې ناره وکړه، "چي جلات خبر سي" :

جلات خانه وروره ! ولي دي موږ هېر کړو

جلات خانه لاس تړلي تر تا تېر کړو

جلات خان چې دا ناره واروېدله و خونکار باچا ته یې وویل چې اوس نو اوه ورځې پاچهي هم راکه، خونکار هم پاچهي دستي ور ایله کړه، جلات خان چې د اوو ورځو باچا سو، دستي یې حکم وکی چې د خونکار سترګي وکاږئ، او مومندی و سومندی مه وژنئ.
دستي جلاد د خونکار سترګي وکښلې ړوند یې کئ، اووه ورځي تېري سوې، جلات خان ورغی ملا میرو یې راوستی، پر تخت یې کښېناوه، باچا یې کی، مومندی و سومندی یې ور وزیران کړل.
جلات خان خونکار و شمائله او نوره عمله ټوله را رهي کړله د خپل پلار ښار ته یې راوستله، مسلم باچا خبر سو، چي هم دي زوی راغی او هم یې هغه باچا راوستلی دئ چي ستا شپږ زامن یې وژلي وه.
مسلم راغی نو یې ور تـه وویل چي ولي؟ ظالمه څونه ځوانان دي مړه کړل او دا لوني دي ولي وژلې؟
خونکار خپله کیسه د سره څخه تر پایه پوري و مسلم تـه وکړله چي داسي ... و داسي ... و .
وروسته مسلم ویل تـه خونکار یې، ده ویل هو ! ویل هغه مسلم ورور خو دي زه یم، نخښي یې سره وویلې، وروسته یې سره وپېژندل، په غاړه کي یې لاسونه سره واچول، خورا یې ډېر سره وژړل، پر دې خپلو تعداوو یې افسوس وکی، خو تر ورخ تېري اوبه بیر ته نه راګرځېدلې، صبر یې سره وکی سره کښېنستله، جلات خان او شمائلي خپل عشرت کاوه ... و بس
کیسی ولاړه پور ته – زه راغلم کور ته

# تبصره

د شمائلي د نقل د نارو وزم :

۱. اول او وروسته تر هري نارې دا ویل کېږي :

څوک چي غواړي شمائله، سر خو به بایلي، آخود به یې بایلي
یو که کښته د بابا "وا" شنکیه کښته "لا" شنکیه کښته.
میر جلات مي سلام وایه، چیري نوم د خونکاري اروې "لا" ځني تښته !آ "لا" ځني تښته.
۲. اکثراً چي یوه مسرۍ یې لنډه وي د سر جمله یې مکرراً (دوه واره) ویله

کېږي او چې اوږده وي تکرار ته یې حاجت نسته، فقط پخپله یې وزم پوره راځي.
۳. د ټولو نارو د دوهمې مسرۍ وروستۍ جمله خامخا دوه واره ویله کېږي، نور نو زیاته زه د ناري وزم په قلم نه سم ښوولای، دا د جزب الصوت د آلې کار دئ یا په اروېدو اړه لري، وبس.

## عذر

د امیانو څخه لیکلي ما قصې دي | د مینو ښې خوږې ناري پکښې دي
دا په ډېر زیار و زحمت ما غونډې کړې | چې راغلي مې پر وچولي خولې دي
نه زیادت او نه کمبود مې پکښې کړی | د هم هغه نقلچې د خولې جملې دي
د هر قوم راز معلومېږي له قصو څخه | د هر چا هنداره خپلې افسانې دي
که څوک نور څه اهمیت نه ورکوینه | د تفریح او ساتېري د پاره ښې دي
دا قصې خلک په ډول ډول کړینه | څوک وایي داسې څوک وایي داسې یې ناري دي
که څه زیات یا کم غلط درسي په سترګو | عفوه غواړم ځکه دا د بل د خولې دي

محمد ګل "نوري" له دغه فخر بس دئ
لځي کړي یې د پښتو په خدمت پښې دي

# لومړۍ خبرې

د ملي هینداري لومړی ټوک دمخه د پښتو ټولنې له خوا خپور سوی و، ځکه چې د پښتو د ملي افسانو او نکلو یوه مهمه برخه پاته وه، نو دا دئ چې ښاغلي محمدګل خان "نوري" اوس هغه دوهم ټوک هم بشپړ کړ، او موږ یې د کابل مجلې په پای کې برخه برخه خپروو.

"ملي هینداره" د پښتو ژبې ملي نکلونه دي، چې زموږ د عامي ادب مهمه برخه ګڼله کېږي، او د پښتو د ادبي تاریخ غوره او خوږه ټوټه هم دغه ده.

هغه ښاغلي مشترکین چې د پښتو ادب له دغې برخې سره مینه لري، د مجلې د پای دوې دوې پاڼې دې ساتي، هر وخت چې ګرده کتاب تمام سو، نو دې سره یو ځای کړي او د ملي هنداري د دوهم ټوک خاندان به سي.

او که یې د مجلې په کالنۍ مجموعه کې پرېږدي، هم به مسلسل وي، او کتاب به تکمیل سي. د هرې شمارې دوې آخرنۍ پاڼې اوس د ملي هینداري له پاره ټاکلې سوې دي، او د هرې ګڼې هر جزو ته مسلسل نمبر هم ورکول کېږي، چې په تسلسل کې کومک وکړي.

عبدالحی حبیبي

# د طالب جان نکل

## یا ملا عباس او گل بشره

ته وا ښه ! چي و یو سوداګر و، درې یې زامن وه. دوه زامن یې له یوې مایني څخه وه، او یو زوی چي عباس نومېدی د ګراني مایني څخه یې و، د دې سوداګر خورا ډېره دنیا وه، و هیڅ شي ته نه وا ړ. دغه د ګراني مایني زوی، یعني عباس یې په مسجد کي پر ملا پر سبق کښېناوه، نور د دنیا کار یې نه په کاوه په هغه نورو زامنو یې سوداګري کوله، تجارت یې په زده کاوه، دا هلک هم خورا د سبق او د علم شوق درلود، ګرده ورځ به یې سبق وایه.

په دغه مسجد کي یوه د باچا لور ګل بشره نومېږي دا هم پر ملا سبق وایي، څه سر دي ګرزوم دا هلک چي عباس نومېږي او د باچا لور ګل بشره په دغه کوچنیوالي سره مین سوله، څه سر دي ګرزوم عمر دئ تېرېږي، څو دواړه غټې سوله، منګر په سبق کي ګل بشره تر تېره وه، ولي چي هغه تر ده دمخه لا پر سبق کښېنستلې وه، په دې مابین کي سوداګر خدای وژلی و، مړ سو، پس له څو عمره چي د پلار پاتا یې واخستله سوه، دغو نورو ورونو یې بد ورسره کول، سبق ته یې نه پرېښو، ویل راسه زموږ کار کوه، عباس ډېر په تنګ سو، مور یې ورته ویله چي زویه ! راسه خپل وېش ځني وکړه، ولاړ به سو یو بل ځای ته، ته به هم خپله سوداګري کوې. اوس نو بسته پخپل لمانځه او اوداسه پوه سولې دغه د خپل پلار سوداګري کوه، سبا به نه په رانیولو پوهېږې، نه په خرڅولو، اریان به پاته یې پر یوه ګوله ډوډۍ به قدرت نه لرې، وروڼه به دي سوداګري کوي خانان به وي.

عباس ورته ویل چي یه ادې، چي زه ژوندی یم، سبق وایم، پر ما د دنیا

کار حرام دئ که يې وکم، زه د سبق شوق لرم، د دنيا حب نه يم اخيستی دنيا دي ورونو ته پاته وي، تا ته دي يوه ګوله ډوډۍ درکوي.

خو څه سر دي ګرزوم مور يې هم ويل ښه دئ زويه چي ستا خوښه ده زما خوښه ده، لنډه دا چي عباس د ملا داسي خدمت کوي چي توبه! هره ورځ مسجد جارو کوي، اوپاشي کوي يې، اوس عباس د "طالب جان" په نامه مشهور سو. د دغه په هيسته باره کور ته هم نه ورتلی، دالته په مسجد کي يې حجره ونيوله، څه سر دي ګرزوم د خدای شپې او ورځي دي تېرېږي د باچا لور ګل بشره غټه پېغله سوه، طالب جان هم لوی سو، ځلمی دئ، وروسته ملا راغی د ګل بشرې پلار ته يې وويل چي اوس نو بسته، لور دي غټه سوله، ډېر سبق يې ووايه، اوس يې نو کور کښېنوه، مبادا انسان دئ نفس و شيطان لري، سبا يو څه پېښه نه سي، ستا به هم رنګ ژړ سي زما به هم.

آبس باچا هم لور د مسجد څخه منع کړه، کور يې کښېنوله، دلته نو د طالب جان او ګل بشرې په زړه يو الله خبر دئ، چي پر دوی څنګه شپې او ورځي تېرېږي! يوه ورځ د طالب جان د توانه ووتل هيڅ رسد يې نه ورته کېږي، خو ورغی د باچا د سرای دروازې ته کرار يې د دروازې ځنځير وشرنګاوه، چي ګوندي ګل بشره يې واوري، راسي يو ديدن يو سوال و جواب سره وکو، ګل بشرې چي د دروازې د ځنځير شرنګی واورېدی، راولاړه سوله، که يې کتل تر دروازې تر چاکو يې طالب جان وليد، ناره يې پر وکړه:

زه په مين سړي پوهېږم

د دروازې په ځنځير ځان مشغولوينه

وروسته ملا عباس ناره پر وکړه:

د دروازې به دي ملنګ سم

ديدن به ستا کم رزق به خدای را رسوينه

وروسته ګل بشره پټه راغله ورته، د دروازې تر شا يې خبري ورسره وکړې ويل ته بې تابي مه کوه، نو يې په دغه نصيحت کي ناره پر وکړه:

صبر کوه خدای به مي درکي

په بې صبري معشوقې چا موندلي دينه

بیا طالب جان ناره پر وکړه :

صبر په هر څه کي په کار دئ

په عاشقي کي بې صبري مزه کوينه

ګل بشرې په جواب کي ناره پر وکړه :

صبر په هر څه کي په کار دئ

په صبر صبر معشوقو لاس ته راځينه

وروسته يې طالب جان ته ښه د زړه ډاډ ورکړ، چي ته په دغه مسجد کي اوسه، صبر وکړه خدای به مي در کړي، خدای به مو سره يو ځای کړي، خدای مهربانه دئ. زه به هر ماښام د مينځي په لاس ډوډۍ درلېږم، زما زړه خو هم تا راڅخه وړی دئ، بې غمه اوسه، پر ما بل مېړه حرام دئ، او دغه ډوډۍ زما و ستا نښاني ده، که هر وخت دغه درڅخه منع سوه، نو پوه سه چي زه نه يم، يا يو څه پېښه ده. ده ويل ښه دئ ! طالب جان بير ته حجرې ته راغی، زړه يې خوشاله سو، پس له دغه به هر ماښام ګل بشرې ښه د ورجو د غوښو ښه غاب ډکاوه د مينځي په لاس به يې ورکاوه، مينځي به طالب جان ته راوړی ... يوه ورځ طالب جان د هجرې پر بام پروت دئ سبق ګوري، په زړه کښي يې د خپلي ميني مينه ده ظاهره کتاب ته ګوري، د ځان سره ګډ دئ چي دا د کتاب اشې لکه زما د ميني خالونه داسي دي، اها ؟ ذ دې تر شنو خالو جار سم ! هلته د باچا لور ګل بشره پر بام ختلې ده، مسجد ته ګوري چي ګوندي طالب جان ووينې، کې کتل چي طالب جان کتاب ګوري، او وايي چي د دې کتاب اشې لکه زما د ميني خالونه داسي دي، ميني يې دا واورېدله د هغه ځای څخه يې ناره پر وکړه :

طالبه خدای که به ملا سې

پر کتاب پروت يې يادوې شينکي خالونه

طالب جان پورته وکتل د بام د تيغې څخه يې د ګل بشرې ميني سر وليد، ويې پېژندله چي دا ناره دې وکړه، نو ده هم ناره پر وکړه :

تر دېوال دوې ګوتي سر لوړ که

د زني خال به دي دېوال وسولوينه

ګل بشره بير ته کښته سوله، ملا عباس فکر وکړ، چي ولچي رشتيا يې

درته وویل، سبا به امي پاته یې، یه ولچي دا پخپله راسي که باره ری پکښې
ووهم، وروسته به هره شپه پر کتاب پروت و، کتاب بې کوت، مینځې به
ډوډۍ راوړه هلته به یې ورته کښېښووله، دابه ورته ولاړه وه، طالب جان چي
به یو وخت سر راپورته کړ هغه به ګرده یخه پخه سوې وه، ده به وخوړه، یوه
ورځ ګل بشرې د مینځې څخه پوښتنه وکړه چي ته ډوډۍ وروړې طالب
جان زما پوښتنه در څخه کوي که یه؟ مینځې ورته ویل : کو، یه، بي بي هغه
ګردسره د کتاب څخه سر نه راپورته کوي، ډوډۍ چي ورته کښېږدم زه
ورته ولاړه یم ولاړه یم پر پښو وچه کلکه سم ورجي ګرده یخي پخي سي،
ولاکه بړغ لا کوي، یو وخت سر راپورته کي هغه چي ډوډۍ وخوري زه غوري
ځني راواخلم.

ګل بشرې فکر وکړ چي لکه چي خوابدی سوی دئ، که مینځه پر لاري
غوښي ځني خوري او که څه چل دئ؟ ری یې وواهه چي راڅخه ولاړ نه سي
کالي وانخلي په دابله شپه یې توره چادري پر سر کړه پټه را رهي سوله[1]،
راغله د طالب جان حجرې ته، کې کتل چي طالب جان د کتاب په مطالعه کي
غرق او ترک دئ، په هیڅ کي چرت نه وهي، ګل بشره یو ګړی ورته ولاړه وه،
طالب جان سر نه کړ راپورته، دا پر پښو وچه سوله نو یې ناره پر وکړه :

یو سر راپورته که د کتابه
ما ملغوزي نصوار په لاس نیولي دینه

طالب جان هیڅ بړغ ونه کړ، دې بیا ناره پر وکړه :

یو سر راپورته که د کتابه
ستا د کتاب تراشو ډېر دي زما خالونه

ملا عباس بیا هیڅ چرت نه پکښې وواهه، دې بله ناره پر وکړه :

یو ګل په لاس درته ولاړه
یا مي ګل واخله یا رخصت راکه چي ځمه

---

[1] وایي دي ګل بشرې د خپلي ماڼۍ څخه د طالب جان تر حجرې یو نغم پرې کړی و، په دغه نغم کي به مینځې ډوډۍ وروړله، دا هم په دغه نغم کي ورته راغله د نغم یوه خوله د حجرې په نس کي وه، بله خوله یې د دې د ماڼۍ په نس کي وه.

ده بیا بړغ ونه کړ، ورته وې نه کتل نې سر راپورته کړ، خپله مطالعه یې کوله ولي چي ده ویلي وه چي دا خپله راسي زه به چرت نه پکښې وهم، وروسته دې پر کتاب پښه ورکښېښووه ناره یې پر وکړه:

سر راپورته که د کتابه

په سترګو روند سې پر کتاب در وختمه

وروسته طالب جان سر راپورته کړ، کتاب یې ټول کړ؟ ورته ویل یې، چي څنګه راغلې یې؟ دې ورته ویل چي: ما چي ویل ته خوابدی سوی یې، مینځي ویل چي زه ډوډۍ وروړم، دی هیڅ بړغ نه کوي، ستا پوښتنه نه کوي چي څه حال یې دئ، څه احوال یې دئ؟ نو زه راغلم ما ویل زه به دي پخلا کم، که چیري زما څخه یو بد دلاسه ختلي وي بخښنه به در څخه وغواړم.

طالب جان ورته ویل چي زما روح ته یې، زما ژوند ته یې، زما زړه ته یې، زه به څرنګه ستا څخه خوا بدوم، منګر هغه ورځ چي تا ویل ولاکه ملا سې چي ګورې کتاب، او په خوله کي دي د میني شنه خالونه دي، نو د هغه راهیسي ما کتاب ته زور ورکړی دئ، اوس پر زړه زور تېروم مطالعه کوم، ځکه چي وایم امي پاته نه سم، سبا به دي مینه او نور طالبان پېغور در کړي چي څنګه امي پاته سولې او خلک به هم وایي چي تش یې نس اړولی و، د نس طالب و، وروسته ګل بشرې آفرین ورکړ، چي شابس زموږ پښتني ښځي خو په عالم او بل په توریالي سړي فخر کوي او په نازېږي، د ناپوه او بې علمه او بې همته، بې غیر ته څخه یې بد راځي، لنډه دا چي خبري مبري یې سره وکړې ګل بشره بیرته ځني رهي سوله، طالب جان په حجره کي پاته سو، خپل سبق وایي...

هغه مینځه چي د طالب جان د ډوډۍ له پاره مقرره وه، لټي به یې کوله، نو بي بي ورته په قهر سوه سپکه یې کړه او د دې پر ځای یې بله مینځه ودروله، تر دغه وروسته هغې اولي مینځي قسم واخیست، چي ولاکه مو پرېږدم په هر چم چي وي چي زه تاسي سره بدورده نه کم، زه دي داسي سپکه کړم، ګورم به.

یوه شپه دغه دوهمه مینځه ناجوړه وه، ډوډۍ یې نه سوای وروړای، په دغه شپه یې ډوډۍ نه ورته راواستول طالب جان وپوهېدی چي څه پېښه ده،

خو برغ يې ونه کړ، ډېره يې خوابده سوله، په دا بله شپه گل بشرې د ناچارۍ څخه د هغې اولي مينځي په لاس ډوډۍ ورته راواستوله، د دې مينځي خو دمخه لا زړه ورته ډک و، قسم يې اخيستی و چي زه تاسي سره بېل نه کم که مو پر ېږدم ! آخود ډوډۍ چي يې راوړه، طالب جان پوښتنه ځني وکړه چي بي بي څنگه وه؟ مينځي ورته ويل کو يو خوار کيه ! هغه اوس ولاکه په تا کي ری لا وهي، هغه شل نور ياران لري ! تا څه کوي غريبه اسي اسُکېرلې، دغه نوکی پسمانده ډوډۍ هم ما درلره راوړه، ما ويل طالب دئ خوار کی به وږی وي.

آبس د طالب جان پر سر اور بل سو، چي مينځه ولاړه دی په چرت کي سو چي دا څنگه بې وفايي يې درسره وکړه.

مينځه چي بي بي له راغله گل بشرې پوښتنه ځني وکړه چي طالب جان څنگه زما د خوا يې څه نه ويل، مينځي ورته ويل چي بي بي که څه درته ووايم خوابه دي بده سي، که نه وايم هم اريانه يم، خواره مه سې هغه والله که په تا کي ری وهي، زه چي نن ورغلم درې څلور داسي چتې ورته ناستي وې چي توبه ! ښه ورجي و غوښي او مسري ونُکل ورته پراته وه، ما چي ډوډۍ وروړه، د پيالې سره يې هيسته وغورځوله، پياله ټوکر ټوکر سوله دغه يې کودر کي دي.

گل بشره هم ډېره خوابدې سوله، پس له دغه يې ډوډۍ ځني منع کړه، عمر يې په دار سو، څو ورځي وروسته طالب جان يو خط ورواستاوه چي ته وده دا مينځه خو درواغ نه وايي، په خط کښي يې دا وليکله :

کاغـذ په لاس قلم په گـوتو
ستا د جفا کاغـذ لـيکم ژړا راځـينه
ستا دي قسم په ذو الجلال وي
يو يار دي زه يم نور دي څو نيولي دينه؟
ستا دي قسم په ذو الجلال وي
که دي دا حال وي ما ته راکه جـوابونه

خط چي گل بشرې ته ورغی، چي وې لوست، په جواب کي يې له درده وليکله :

زما دي قسم په ذوالجلال وي
يو يار مي ته يې شل مي نور نيولي دينه
ورځه ورځه تر دکـن تېر سې
زه چي پر مخ زلـفي لـرم بل به يار کمه

خط چي راغی طالب جان چي ولوستی، پر سر يې اور بل سو، مځکه ځني ورکه سوله، نو يې دستي فکر وکړ، چي زياته په دې مسجد کي زما اوسېده ښه نه دي جواب يې درکړ، آخود په ډېر ارمان يې دغه مسجد او حجره پرېښووله ولاړ، چي تلی نو يې دالته په يوه کاغذ کښي دا لاندي مسری اولندۍ وليکلې، نو يې د حجرې دننه په يوه چاک کښي خط کښېښو، نو ولاړ :

د کلي مينځ کي به ناري کــــم
لـيلا زمـا د ياری واخيســـته لاســـونه
زما و ســـتا لــېونی مينه
تر مـينځ مـو چـا وکړه د صـبر تعويذونه
اول مي خـداى اسره بيا ته وې
جواب دي راکی خـپل نصـيب مي ژړوينه
غــمازه غـبرگ زامن دي ومره
چي يو ښـخېږي بل سلـگی درته وهـينه
زما له هـيچا گيله نســـته
مـا ته پخـپله بخت کـرلي دي غـمونه
يو مي کتاب زړگوټی خوږين کی
بل مي مـيني راڅه واخيســته لاســونه

دا يې د حجرې په يوه چاک کښي کښېښو، نو طالب جان ولاړ، منگر زړه يې د ميني د اوربل په ځنځيرو بند دئ کله ليري تلای سي، وروسته هغه مينځه راغله گل بشره يې خبره کړه چي طالب جان نسته، کالي يې اخيستي دي تللی دئ، گل بشرې چي دا واورېده آه يې کړه يو سوړ اسوېلی يې وکيښ، چي څه پسات راوسو، خو زړه يې د بېلتانه په اور کباب سو، مځکه ځني ورکه سوه، دستي يې توره چادري پر سر کړه پټه راووتله راغله که

ګوري ځای سته جولا نسته!

حجره توره ولاړه ده، دغسي دستي د حجرې پر بام وختله چي شاوخوا وګورم چي ګوندي د حجرې پر بام پروت وي، يا نڅړدې مي دالته په ستر ګه سي، خو شاوخوا د حجرې پر بام وګرزېدله، طالب جان نه و، نو يې ناره وکړه:

حجره سته طالب يې نسته

پر حجره يې لــکه مار وګــــرزېدمه

په طالــبانو دي اوروسي

سرې مين کړي کالي واخلي ځني ځينه

وروسته بير تـه راکښته سوله، وې ژړل وې ژړل ډېـر ارمـان يې وکـړ، وروسته يې د خپل زړه د داړ له پاره ناره وکړه:

جانان به ليري له ما نه ځي

که يې د زړه ولې زما د باغه وينه

آخر ته راغله په حجره ننوتله، شاوخوا ګوري چي ګوندي د طالب جان يو مات قلم يا څيري کاغذ يا يو بل شی د ده د لاس نخښه پيدا کړي، او د خپل سوي زړه سوده په وکړي کې کتل په يوه چاک کي يو پېچلی کاغذ دئ دا يې راکش کړ، چي خلاص يې کړی وې لوست يو ګړی يې پر وژړل وژړل وروسته پوه سوله، چي پسات په مينځه کښي و، چي زموږ په منځ کي يې غمازي وکړه او پر خپلو ويلو يې ډېره پښېماني وکړه، ناري يې کړه:

که ګــــرمه يم ناکاره نه يم

د مرور اشــــنای و پښو ته به ورځــــمه

يار مي پخپله مارخصت کی

د پښېمانی اوښکي مي ځي پر ګرېوانونه

خو لنډه دا چي بير ته پټه خوله کور ته راغله، ماښام سو، د طالب جان د بېلتانه څخه خوب نه ورځي، سپوږمۍ راوختله، دا ورتـه ګوري د آسمان تر نيمايي چي راغله دالا ويښه ده، نو يې پر سپوږمۍ باندي ناره وکړه:

سپوږمۍ پر مينځ د آسمان راغله

بې ياره خوب نسته که ما له نه راځينه

خو خير شپه پر هر ډول چي پر تېره سوې وي تېره سوې به وي، سهار سو پلار ته يې ووېل چي زه نن داسي خواشيني يم، زړه مي راته ډک دئ نه پوهېږم چي څه راکېږي؟ که ستا خوښه وي زه به نن باغ ته ولاړه سمه يو ګړی به سات تېر کړم، مابښام ته به بير ته کور ته راسم، پلار يې هم وېل ښه دئ شل کر ته ولاړه سه خپل طبيعت راسته کړه، سيل وکړه ! آبس دا او يوه مينځه سره رارهي سولې د باغ په پلمه، مينځه يې هم وپوهوله چي ته د طالب جان پوښتنه کوه ګوندي په دغه شاوخوا کلاچو کي يې پيدا کړو، څه سر دي ګرزوم دلته ګوره، هلته ګوره، هه هه هه ! څو پر ګل بشرې د طالب جان ميني غلبه وکړه، ناره يې وکړه :

نن مي جانان ليدلی نه دئ

لکه سپين باز لوړي ژوري لټومه

وروسته يې ښځي د توانه ووتله، وبېرېده چي لېونی نه سم او په عالم کي رسوا نه سم، نوم مي بد نه سي نو يې د دعا پر ډول ناره وکړه:

عالمه ما ته دعا وکړه

چي ناقرار زړګی زما پر قرار سينه

آخر ته يې اميد پرې سو، طالب جان يې نه کړ پيدا، ستړې هم سوله نو يې مخ د باغ و خوا ته ونيو، باغ ته ولاړه دلته طالب جان خبر سو، چي يوه ښځه درپسي ګرزېده، ويل څه سوه؟ خلکو ويل اوس داغه ده مخ د باچا د باغ پر خوا ولاړه، ده هم دستي را الا کړه مخ د باغ پر خوا هله هله چي طالب جان را رسېدی دا په باغ ننوتله ده ناره پسي وکړه :

باغ له دي تله مناسب نه دي

پخپله ګل يې ګل دي ستا سلام له ځينه

ګل بشرې دا ناره نه واورېدله، په باغ ننوتله د باغ دروازه يې کلپ کړله ملا عباس بله ناره پسې وکړه :

نجلی د باغ و لور ته ولاړه

سالو کې نه و مخ يې پانې پټوينه

د ګل بشرې دا الندی لړ څه تر غوږ سوله، په باغ کي ودرېدله شکي سوله، چي دا ږغ د کمي خوا وسو، خو په داغه چرت کي ده باغوان کلي

یووړه، ملا عباس فکر وکړ چي زمانا ره یې نه وا روېدله او دروازه یې هم کلپ کړه، په راسه څو ډبري ګوښکي ګوښکي ور وغور ځوه ګوندي فکر یې سي او راسي دروازه در خلاصه کړي، وروسته یې ډبري و باغ ته ونیولې څو ډبري چي یې ور وغور ځولې ګل بشرې فکر وکړ، چي هغه ناره دي هم تر غوږ سوله نه چي طالب جان نه وي، که و ملا عباس دئ، نو یې ناره پر وکړه :

په باغ کښي مه وله ډبري
ښاخ به زخمي کې بیا به نه نیسي ګلونه

پس له هغه یې مینځه باغوان ته ور واستوله چي ورسه کیلي د باغوانه څخه راوړه ځکه چي د دې یقین سو، چي طالب جان دئ ولي چي دې دا ناره وکړه، ملا عباس زیاته لوټي ور ونه غور ځولې، مینځه راغله د باغوانه څخه یې کیلي راوړه، ګل بشره راغله د باغ دروازه یې ور خلاصه کړه، طالب جان یې په باغ ننیوست، نو یې د ګیلې پر ډول ناره پر وکړه :

ولي دي بد راسره وکړه
ما په نجلتوب کي پر تا ایښي وه لاسونه

طالب جان په جواب کي ناره پر وکړه :

اول یاري دي په زاري وه
بیا دي راتله په غم لړلي جوابونه

بیا ګل بشرې ناره پر وکړه :

جانان دي بد کي زما دي ښه وي
بد به یې هېر سي زما ښه بې ژړوینه
جانان که بد کي زه به ښه کم
د جانان بد مي پر لېمو منلي دینه
جانانه راسه چي پخلا سو
دنیا فاني ده په ارمان به ځني ځونه

وروسته سره پخلا سوله، په باغ کي سره ګرزي، ګل بشرې ته یې خوند ور کړ چي دا ګل وګوره چي په ګلانو کي څنګه ګرزي نو یې ناره وکړه:

په باغ کي مه ګرزه دلبره
ګلان شرمیږي مخ په پاڼو پټوینه

وروسته طالب جان د گلانو د منځه راووت يو ژړ د همېشه بهار گل يې وشکاوه راېې ووړ و گل بشرې ته يې ورکړ، دې ناره پر وکړه :

يو مي د اصله رنگ ژيړی دئ

بل مي جانان په لاس کي راکړه ژړ گلونه

وروسته راغله تر يوې ولي لاندي سره کښېنستله گل گلاپ او سنځلي يې شکولي دي، طالب جان ته خوب ورغی سر په وځړېدی، گل بشرې ناره پر وکړه :

گل د گلاپ بوی د سنځلي

سيوری د ولي خوب د پېغلي پر ورنونه

وروسته طالب جان بير ته سر راپورته کړ، نو يې ورته وويل چي دا ناره مناسب نه وه، چي تا وکړه، موږ خو مسلمانان بيا پښتانه يو، تا پخپله نصيحت راته وکړ، چي صبر کوه صبر وکړه، خدای به مي په حلاله نکاح درکړي وروسته طالب جان له درده په گل گلاپ پر دا ځگر وويشته، دې ناره پر وکړه:

په گل گلاپ دي وويشتمه

خوږ دي زما د زړگي سر کی وبه مرمه

په گل گلاپ دي وويشتمه

تر لاس دي جار سم دښمنانو وليدمه

په پټ کي تو مسلی ښه دئ

بې پته يار که شاهزاده وي ځې کومه

چي يعني آفرين دي ستا پر پت ساتلو وي، وروسته باغوان د باغ د پايه څخه دا د دوی ږغ او نارې وارېدلې دغسي يې د باچاله بېري څخه را الا کړه چي دا څه نکل دئ دا سړی څه کوي چي په باغ کي د باچا د لور سره تر ولي لاندي ناست دئ، مينځه هم ږغ نه کوي. خو چي راغی پر طالب جان باندي په قهر سو درد يې پر وکړ باندي غوړمبی يې کړه، چي ته څه کوې چي دلته راغلی يې؟ چابک وزه که نه وي اوس به دي لاسونه تر شا درو تړم باچاله به دي بوزم گل بشره هم حيرانه سوله، چي دا څه چل پيښ سو؟ باغوان ته يې ويل چي داِ زما خپل دئ، زما په اجازه راغلی دئ، مه يې کوه، اوس پخپله

ځي، باغوان ويل يه وزه ! اوس به دي په بد رنګ کړم !!!

د طالب جان خورا خوابده سوله او ډېر شهيد سو، وې ويل چي ولچي رسوا سولو، يه څه ځان کاږه، طالب را رهي سو د باغه راووت ولاړ، د ګل بشرې هم خورا طبيعت خته سو، پر باغوان يې ناره کړه :

باغ دي د زاغ په حـــواله سي
بلبل نرى فـرياد كـــوي له باغه ځينه
طوطي به خداى په ګلو موړ کي
باغوانه ستا نيمګړى نيت مي ژړوينه

وروسته ګل بشره د مينځي سره ډستي د باغ څخه پسي راووتله په طالب پسي يې ناره کړه، چي د خداى پار دئ يوار راوګرزه ودرېږه ته چيري ځې زما له خوا خو به څه نه وي درته ويل سوي؟ بيا به دي زه چيري غواړم چيري به يې؟ ده هيڅ ږغ نه وکړ، وروسته مينځي ګل بشرې ته ويل چي کو بي بي ! ته دا سپېره سړى سودايي طالب څه کوې ! ته څنګه پر دې طالب مينه کېدلې؟ دې ناره پر وکړه :

خو اصل ګل د ګل ګلاپ دئ
کم اصل ګل که بويوم ډک دي باغونه

وروسته بيا ګل بشرې په طالب جان پسي ږغ وکړ، چي تـه ودرېږه! تـه خو يوه پته رامعلومه کړه چي تـه نه يې نو زما ژوند به څه وي؟ طالب جان ويل يـه زه ولاړم، ګردسره دا وطن پرېږدم، خبره مو تيته سوله، توکل پر خداى دئ که خداى يو وخت په حلاله نکاح راکړې خو ښه که نه وي دغه د بېلتون غمونه به دواړه ګالو !

لنډه دا چي طالب جان ځني چابک سو، د دې زړه درد وکړ، چي تـه پر کوچني خبره او ناچيز شي ځغلې ځان ورک کوې، زه نارې درپسي وهم چي ځاى رامعلوم کړه ته ږغ نه کوې، يه نو زه ملامته يمه ناره يې پر وکړه :

تبې راواخلئ مخ راتور کئ
د باچا لور وم پر طالب مينه سومه

دا چي طالب جان وارولېدله، ويل اوس نو دخداى په امان ! اول به مي يا ځاى درښو يا به مي نه ښو اوس نو خداى خبر چي بيا به مي وينې ! زه لکه

چي په خيال انسان نه درغلم، طالب لکه چي د خداى بنده نه دئ ! نو يه، د شاه او د فقير ياري نه سره کېږي، ګل بشرې چي هر څه توري تپي ورته وکړې چي اوس که طالب يې ما د باچا پر زوى نيولى يې، د خداى پار دئ يوه پته دي رامعلومه کړه ! ملا عباس ويل زما پته نه ده معلومه زه په هر مسجد کښي چي وم هغه مي ځاى دئ.

څه سر دي ګرزوم د نکل کار دئ، طالب جان ولاړ ورک سو، دا او ميځنه په غم او ژړا کور ته راغلې، د ګل بشرې د بېلتانه خاوري پر مخ پرتې دي، بڼه يې الوتې ده، شونډان وچکلک راغله خپلي مانۍ ته وختله په کړکۍ کښي يې شاوخوا وکتله چي ګوندي طالب جان يې په سترګه سي ! طالب جان چيري دئ؟ يو وار يې زړه جوش وکړ غوښت يې چي ښرا ورته وکړي، بير ته يې لاحوله وويل چي د زهير زړه دعا او ښرا خو قبلېږي نو يې ناره وکړه :

صبر به کړم ښرا به نه کړم

صبر سرور دئ ځواني مرګ مه سې مينه !

خو پر خپل ګوپال سر ګومه بېسده واوښتله، زړه يې د بېلتانه د وينو ډک دئ مور يې راغله پوښتنه يې ځني وکړه چي ولي زويه ! خير دئ؟ څه در سوي دي؟ "فضل وکړې خدايه" زويه ستا تر سترګو وګرزم ته سر راپورته کړه حال راته ووايه ! ولي دي داسي د لحد خاوري پر مخ پرتې دي، مخ دي تک ژړ دئ؟ نفسه ! تر تا وګرزم، تر تا سپلنی سم. حال ووايه، ستا بلا دي پر ما سي حال ووايه ! ګل بشرې ناره پر وکړه :

صبر و خورک خوب و آرام مي

شېرين جانان له ما څخه واړه وړي دينه

اشناى په داسي لمبو وسوم

چي نه يې دود سته نه يې تاو چا ته ورځينه

بېلتانه وسوم غير ايرې کړم

رضا د باد ده چي مي هري خوا ته وړينه

زړه مي د تورو وينو ډک دئ

که غرغرې کم ملک به تول په وينو کمه

ستر ګي مي زړه ته ور ننژدې که
چي پکښې وويني د سرو وينو ډنډونه
بېلــتون خنـــجر و د پولادو
په زړه مي ښخ ســو غرغرې د وينو کمه

مور يې نصيحت ورتـه وکړ، چي ځان پر لېونتوب مه اچوه، ناري مه وهه! که دي پلار در خبر سو مړه به دي کړي، دې ناره پر وکړه :

خلک به وايي لېوني ده
لېوني نه يم د يار غم لېوني کړمه

مور يې د زړه ډاډ ورکړ، چي اوس ږغ مه لره خداى د کراري مل دئ، خداى بې اسانه کړي، نو ځني راووتله، مينځه يې راوغوښته ورتـه ويل يې چي دا څه نکل دئ؟ ته خو په خبره يې؟ مينځي ورتـه ويل چي زياتـه نه يمه خبره خو دونه قدر خبره يم چي مور باغ تـه ولاړو، يو سړي و راغی، دې دروازه ورخلاصه کړه، باغوان راغی و سړي ته يې ښکنځل وکړه د باغه يې ويوست دا خوابدې سوله، پسي راووته، پسي ناري يې کړه چي آسړيه! تـه ځای راوښيه! هغه هم مرور سو ولاړ، ويل زما ځاى نه دئ معلوم! آبس د دې رنګ والوت، څو دغه ده پر تـه ده، مور يې و مينځې تـه وويل چي تـه هم هوښ کوه، چي دا نکل و چا تـه ونه کړې، نور عالم خبر نه کړې، يا يې پلار خبر نه کړې.

څه سر دي ګرزوم ګل بشره ناجوړه سوله، پر تـه ده، خوب و خورک و مجلس و خبري ځني پاته سولې، پلار يې په ناجوړي خبر سو راغی پوښتنه يې ځني وکړه، چي زويه ستر ګي دي جار سم! څه در سوي دي؟ ګل بشرې ږغ نه ورتـه کاوه، ډوبه پر تـه ده، د پلار يوه لور ده خورا پر ګرانه ده، حيران ولاړ! چي څه وکړم، څه په وسوه؟ وروسته يې د ښار طبيبان ورتـه پيل کړه خو هر څه طبيبان چي راځي ګوري يې د رنځ درک يې نه ور معلومېږي، بير تـه ځني ولاړ سي، وروسته يې يو طبيب ورتـه راووست چي په هوښياري او پوهه وتلی و، طبيب چي ورتـه وکتل ويل د ستر ګو علاج يې پـه کار دئ، دغه دوا واخلئ په ستر ګو کي يې ور اچوئ! ګل بشرې چي دا واروېدله ناره يې پر وکړه :

پر څه ناپوه طبيب مي مخ سو
خوږ مي د زړه دوا د سترګو راکـوينه
طبـــيبه پوه نه يې ولاړ سه
ما له په کار دي د زخمي زړه ملهمونه

وروسته يې پلار او طبيب وويل چي په پلاني ځای کي پلانی طبيب دئ هغه د زړه په رنځو پوهيږي هغه ورته راولئ چي وې ګوري. ګل بشرې بيا بږغ پر وکړ :

که د جهان طبيبان راسي
چي زما د زړه طبيب رانه سي وبه مرمه

وروسته طبيب وويل چي دا لکه چي د پيري اثر دئ، يو تعويذ ماويذ ور وکړئ خدای بې ښه کړي، زه نو ځم که اجازه وي، باره يې طبيب رخصت کړ، پلار يې راغی و مور ته يې وويل چي يو څه چل خو خامخا سته که ته په خبره يې راتـه ووايـه، دغه يوه لور مو ده چي راڅخه مړه نه سي، بيا به څه کوو؟ مور يې ورته وويل چي هو زه لږ څه نيم ښوره په خبره يم، منګر زه ستا څخه بيرېدلم بږغ مي نه کاوه. باچا ورته ويل چي ووايه زما دغه يوه لور ده زړه مي ورسره الوزي، ته بږغ نه کوې ولي؟ ماينې يې ورتـه ويل دا خو د هغه راهيسي ناجوړه سوه، چي د باغه څخه راغله، مينځي ويل داسي سړی باغ تـه راغی، باغوان پـه زوره ويوست د دې خوابده سوله، داسي و داسي څنګـه و څنګه، خو په اصل حقيقت زه هم نه يمه خبره، باچا ويل ولي دي دمخه نه ويل ولي بيرېدلې، ښځه خو چي خدای پيدا کړه د بل د کور ده دا خو لا ښه کار دئ، چي د دې يو سړی خوښ وي هغه وکړي هغه و، چي مور و پلار يې دواړه ورته راغله، د ګل بشرې څخه يې پوښتنه وکړه چي زويه رشتيا ووايه درواغ مه وايه او هم مه بيرېږه موږ ستا په رضا ځو، چي ستا خوښه وي هغه کار کوو، کـه دي ميړه زړه غواړي هم به دي ورکو، کـه دي يو ځای څوک خوښ دئ هم به دي ورکو.

ګل بشرې ناره پر وکړه :

د طالبانو مير به يار کړم
تر پيښوره به مي تول لېږرونه سينه

دوی ورته ویل چي د طالبانو میر څوک دئ؟ مور یې چیري پیدا کړو؟ دې ورته ویل چي هغه ملا عباس نومیږي، چي پخوا دلته کوچنی و منګر په بل چم هغه نه پیدا کیږي، ته د خپل ملک ټوله طالبان راوغواړه دلته دي زما د ماڼۍ سره تېرېږي، زه یې د خپلي بنګلې څخه ګورم، چي ما ولید درته وبه وایم، مور یې ناره پر وکړه :

د طالبانو یاري مه کړه

د طالبانو اسپې ځین ولاړي دینه

خو پلار و مور یې دواړو ورته وویل چي طالب څه کوې؟ طالبان خو سودایان دي. نن دلته سبا هلته دي، د وزیر زوی یا د کوتوال زوی وکړه، یا به دي بل ښه شاهزاده ته ورکو. ګل بشرې ویل په هغه هم د وزیر زوی دئ، هم شاهزاده، خدای یو مالګي تروې که بل سړی وکړم بیله طالب جانه، زیاته اختیار لرئ، اول خبره پټه وه باک مي نه کاوه، اوس چي خبره لڅه سوله نو بل میړه پر ما حرام دئ، که یې وکړم بیله ملا عباسه او که مو بل چا ته ورکړم، زه په هغه ګړي ځان وژنم، زیاته ستاسي خوښه ده !

آبس باچا هم مجبوره سو، چي لور مي مینه ده که یې و دغه طالب ته ور نه کړم مري، یا پخپله ځان وژني او دغه یوه لور مي ده، دستي راووت دربار ته حکم یې وکړ چي که د ښار دي که د دباندي ټوله طالبان دي سهار راسي زما د حرم سرای تر ماڼۍ لاندي دي یو یو تېرېږي که یو پاته سوی و، د ژوند څکه ولاکه راڅخه وکړي ! حاکمانو هم دستي و خپلو ملکانو ته خبر ورکړی چي سبا به هر یو د خپل محل د مسجدو طالبانو ته خبر ورکړي چي سهار ټوله طالبان ارګ ته راسي، او یو یو د باچا د حرم سرای تر بنګلې لاندي تېرېږي، ملکانو هم هر یو د خپلو مسجدو طالبان خبر کړه، لنډه دا چي سهار دا دئ په ډلو ډلو طالبان راځي هر یوه لویه بګړی، شنه شنه پر توګان اغوستي دي ږیري یې ږمونځ کړي دي، کتابونه یې په بغل کي د باچا د حرم سرای تر بنګله لاندي تېرېږي، تېرېږي، تېرېږي، د باچا لور ګل بشره د بنګلې تر کړکۍ تر هنداره پټه ورته ګوري، ټوله طالبان تېر سوه، خپل سپېرکی ملا عباس طالب یې ونه لید، نو یې ناره وکړه :

طالبان راغله ډلي ډلي
زما د زړه طالب رانه غی وبه مرمه

یو ګړی پس که یې کتل چې د طالبانو په پایڅوړ کې یو سپېره اسیګی، اسکېړلی طالب دئ، تر ټولو وروسته لیري معلوم سو، د ګل بشرې په ستر ګه کښېووت، نو یې ناره وکړه :

یار مي طالب د وروسته راغی
دا سپینه خوله به وظیفه ورله ور ړمه

ملا عباس یعني خپل مین یې پلار او مور ته ور وښو، چې هغه تر ټولو وروسته چي عاجزه او سپېره مخ راغی زما زړه هغه وړی دئ، مور یې ویل : دا سپېره طالب ! خواره سې دا اوسْ څه شي دئ؟ ګل بشرې ناره پر وکړه :

پر سپېره بد مه وایه موري
سپېزې دي خاوري چي ګلونه شنه کوینه

لنډه دا چي باچا حکم وکړ، چي هغه د پای سپېره طالب راوګرزوئ، زه خپله لور هغه ته ورکوم، آبس طالب جان یې راووست، نور طالبان یې رخصت کړه، ولاړه څوک، څوک پاته سوه چي موړ ماښام غزلي وایو اتڼ کوو. د ملا عباس واده دئ، څه سر دي ګرزوم د نکل کار دئ معطلي نسته پکښې، دستي یې طالب جان بوت حمام یې په وکړ، ښه کالي یې په واغوسته، ماښام یې قاضي او مفتیان او وزیران راوغوښتله، ډوډۍ یې وخوړله نکاح یې ور وتړله، هشت و مشت دئ. سازونه دي او غزلي دي، د طالبانو اتڼونه دي، تر سهاره پوري خوشحالي ده، د دوو مینو وصلت دئ، دغه شپه تېره سوه، "د خوشحالۍ شپه لنډه وي"، سهار سو خلک ولاړه رخصت سوله، دغه ورځ هم تېره سوله، په دغه بله شپه یې خوابښې ګل بشره ناوې جوړه کړې و طالب جان ته راوستله، بنګله ده، تخت دئ د باچا لور ده، ډېوې بلې دي، فرشونه "د شوتالوو من په غاز دئ" هغه د ښځو مځو دود چي وو په وه یې کړ یو ګړی یې خوابښې ورسره ناسته وه، باره یې دروازه پسې وتړله ځني ولاړه، مین او مینه، طوطي و مینا، ګل او بورا، پتڼ او ډېوه یې سره پرېښووله.

صادق مین دئ، طالب جان دې کیفیت و وصلت او د دې مخ ته ډوب

او محوه تللی دئ، هيڅ ږغ نه کوي، ګرمي ده د ميني پر مخ يې لکه سپيني مرغلري دانه دانه خولې بهېږي، د ګل بشرې د توانه ووتله پر مين يې ناره وکړه:

جانانه راسه ځان او به که
پر سپين بارخو مي خولې دم ولاړي دينه
او ربل مي جګ که خال مي ګوره
د جنت ګل دئ په تازه به سې مينه

طالب جان هيڅ ږغ ونه کړ، هيڅ جواب يې ورنه کړ، ډوب تللی دئ، د ګل بشرې د مخ تصور کوي، نتيجه نه سي ځني را ايستلای، نه لاس ور وړي، نه بازئ ورسره کوي، ګل بشرې فکر وکړ چي لکه چي مخ مي د ډېره غمه سياهي پيدا کړېده، لکه چي خوند نه ورکوي، نو يې ناره پر وکړه :

په اولنئ ستر ګو مي ګوره
که مي مخ تور وي ستا غمو به کړی وينه

طالب جان په دې ناره هم هيڅ جواب ورنه کړ، ګل بشرې بله ناره پر وکړه:

د پېغلي خوله د جنت ور دئ
د جنت ور ه ته هر مومن هڅه کوينه
ولي خفه ناست يې مينه
راسه پر سپينه سينه واچوه لاسونه

وروسته طالب جان ناره پر وکړه :

مخ دي فقط شکل رابع دئ
په نتيجه مي زړګی دړي وړي سونه

ګل بشرې فکر وکړ چي د منطقو او فلسفې بحث يې درسره شروع کړ، خوا بدئ نه دئ، يه راسه دئ طالب دئ، بحث يې خوښ دئ، د ده پر مرضي برابر بحث ورسره وکړه او په عين بحث کي به د خپل وصلت درخواست ځني کومه، نو يې پر طالب جان ناره وکړه :

په تصور کي مي زړه شين دئ
څو تصديق مقام راځي خاوري به يمه

**طالب جان ورته ویل :**

د تصور تصویر مي مات سو

نور به دي خیال خندا د چا سره کومه

**ګل بشره ورته وایي :**

د دې مسرۍ جواب مي راکه

کور مي د سین پر غاړه دئ له تندي مرمه

**ملا عباس ورته وایي په جواب کي :**

د دې مسرۍ جواب دي دا دئ

ځوک چي مین سي همېشه د تندي مرینه

په اخر کښي ګل بشرې فکر وکړ چي دئ خو منطقي طالب دئ، منطق يې ویلي دي زه يې نه سم ملامتولای راباندي غښتلی دئ، په راسه په بدیع و په بیان کښي سوال ځني وکړه نو يې یوه پوښتنه ځني وکړه، طالب لاجوابه سو پړ يې کړ، په جواب کښي بند سو، دستي طالب سپک وغورځېدی، ولاړ سو، میني يې ورته وویل چي څه کوې؟ ده ویل ځم ! دې ویل چیري ځې؟ ولي څه وسوه خیر خو دئ؟ ملا عباس ویل چي زما دي نو ملا رګ سي چي ته ښځه يې زه نر او تا زه په بحث کښي ودرولم. په نو زما و ستا تر هغو وار تېر دئ ځو زه پوره علم حاصل نه کړم، زه درځخه ځم ! ګل بشرې ورته ویل چي مه کوه څه وسو چي په بحث کښي ودرېدلې، زه يې ملامته، هیڅ پروانه لري ! او زما خوله دي ماته سي چي ستا سره مي بحث کاوه، زه خو نه وپوهېدم، زه خو ستا پر مرضي درسره ولاړم ما ویل ښه دئ طالب جان دئ په بحث اموخته دئ خوشحاله به سي، سات بې تېر سي اوس هم کراره ده، مراد دي حاصل سو د باچا زوم سوې، دلې به پر کور سبق وایي، هر رنګه ملا چي دي خوښ وي او زړه دي وغواړي در پیدا کېږي، په شپه د لحاظه او خوشامنده سبق درته وایي.

طالب جان ویل یه ! زه دي د دوو سترګو په تصور کي سم، که سبق ووایم، چي د وطنه ورک نه سم سبق نه سم ویلای په کور کي سبق نه وایه کېږي، ګل بشرې ورته ویل چي اوس خو شپه ده، او ته خو وده چي

يو ځو شپې خو په خوشحالي راسره تېرې کړې چې ارمان سره وکاږو، دا اووه اته کاله مو ارمان په زړه کې و، ياري مو پټه ساتله د بل تهمتونه مو پر ځان يووړه اوس چې په حلاله نکاح خدای سره وروستو، ته ځې يه نو خپل ارمان به سره وکاږو، بيا که ځې که نه ځې. ملا عباس ويل يه ! زه اوس ستا څخه شرمېږم نه سم درته کتلای، زه اوس ځم. ميني يې ويل : د خدای روی وګوره مانو څه در وکړه چې ته مرور سولې؟ يا ما ته نه سې کتلای ناحقه دي پر ځان غمونه ګوټه کړي دي، په دې مابين کښې يې تر خبرې پوري ناره پر وکړه :

طالبان مه کړې مين خدايه

يو غم د ميني بل د علم کي غمونه

طالب جان ناره پر وکړه :

چيري چي علم حاصلېږي

هلته به خاوري کمه غوښي او هډونه

اوس نو نيمه شپه ده ! طالب جان په حيرت کي ولاړ دئ سر يې کښته ځړولی دئ ځو ګامه بېر ته په کوشکن کي کښېنوست چرت وهي، ګل بشره زاري او جګې ورته کوي، طالب جان ږغ نه کوي اوس نو نيمه شپه سوه ناره يې پر وکړه :

سپوږمۍ پر سر د اسمان راغله

زه خواره ناسته مرور پخلا کومه

بله ناره يې پر وکړه :

اشنايه راسه چې پخلا سو

څو چې بېلتون پر دنيا وي جدا به يونه

ده هيڅ ږغ ونه کړ ورته، پر ميني يې د ميني غلبه وسوه، د ميني لمبه پر وځر خېده بله ناره يې پر وکړه :

جانانه داسي خو ځوک نه کړي

لکه سپينکۍ غوښه پر اور دي ويلي کړمه

يار را ولاړ سه بيا راجـا ر سـه

په زړه ظالـمه جانه خـدای در کـړې يمه

ستا په ديدن به مړه نه سم

که تمامي وجود مي سترګي سي مينه

**طالب جان ناره پر وکړه :**

ديدن د بادو پيمانه دئ

نه به مړه سې نه به وتړې بارونه

**څه سر دي ګرزوم دغه شپه ګرده په غم او په ناتار تېره سوه، اوس نو د سهار خواده، څراغ لګېږي، طالب جان ولاړ سو، ګل بشرې پر څراغ ناره وکړه:**

څراغه بلي لمبې وکړه

آخر ديدن دئ بيا به نه وي ديدنونه

**طالب جان ناره پر وکړه :**

څه سو که اوس سره جدا سو

که ژوند باقي و بيا به وکو ديدنونه

**بيا ګل بشرې ناره پر وکړه :**

ستا د قامت په تخيل کي

صبر لمبه سي ځني وخېژي دودونه

**طالب جان په جواب کي :**

ستا د شين خال په تصور کي

زړه مي بېحده سو تک شين او وبه مرمه

ستا د خالونو له حسرته

ګل د لاله پر ځيګر ايښي دي داغونه

**تر دې نارو وروسته بيا د ګل بشرې څه اميد پيدا سو، چي زما صفت يې وکړ، نو يې ورته وويل چي مه کوه مه څه، هغه دي بيا هېر سوه چي زما مينه اور وه، در لګېدله او زه ستا په مينه پسي مړه کېدمه ته زما په مينه پسې، چي ولاړ سې خو بيا به دغه خوارۍ وي، ستا به هم زړه د کوټلو وينو ډک وي زما به هم، دغه ساعت به بيا پيدا نه کړو.**

**ملاعباس په جواب کي ناره پر وکړه :**

زما همزولي ملايان سوه

زه دغه ستا ميني د علمه وايستمه

سلام علیک زه در ځخه ولاړم

بیا به دیدن په آخرت سره کـــوونه

مېني یې بغاري کړې دغسي پرله وځر خېده، طالب جان ناره پر وکړه :

په ژړا مه راپسې ژاړه

سهار دعا راپسي کړه ماښام نفلونه

ګل بشرې په جواب کي ناره پر وکړه :

ستا پر جفا نه یم چي ژاړم

مـــا ژړوي د رقـــیبانو پېغورونه

ستا پر جفا نه یم چي ژاړم

دا ستا بېلتون مي لکه ناوې ژړوینه

یعني که څه هم تا خو جفا راسره وکړه منګر سره له دې ستا پر جفا نه یمه چي ته ولاړ سې، رقیبان به پېغورونه راکوي، چي تا پر طالب مینه کوله ځنګه درځخه ولاړی او بېلتون دې ژړوي، خو بیا یې ورته وویل چي مه کوه مه څه ! ده ویل یه نه پاتېږم، د خدای په امان، ګل بشرې بیا بغاري کړې ناري یې کړه :

نن خو به کاڼي بوټي ژاړي

چي مي جانان له ما ځخه غواړي رخصتونه

په اشـــنایي دي نازېدمه

په جـــدایي دي لـــکه ګل ورژېدمـــه

جانانه ځه په مخ دي ښه سه

زه پښـــتنه یم ســـتا پر پټ به ناســـته یمه

لنډه دا چي طالب جان په خړه ځني ولاړ، زیاته یې څه نه سره وویل نه یې ارمان سره وخوت د دواړو په زړو به یو الله خبر و ! خو ملاعباس ولاړ ورک سو، ګل بشرې پر ژړا سر کښېښو، یو د مور و پلار او نورو د پېغوره ځخه بل د طالب جان د بېلتون ځخه ساندي وایي، په ساندو کي دا ناري کوي :

اشـــنایه ولاړې اسماني سوې

اسمان چي مځکي له راځي قیامت به سینه

اول مي کله غم و

اوس مي کتاب سو مشغولا پکښې کومه

بېلتونه څنګه دي جلا کړو

مور په يوه بادام کي دوه مغزونه وونه

که زه خبره په بېلتون واى

ما به جانان تر لاس نيولى ګرزاونه

اسمان ته لاړ د ختو نسته

د مځکي سر دي راته بلي لمبي کنه

څه سر دي ګرزوم اوس نو لمر راوخوت د ګل بشرې ژړا او نارې مور وارو پېدلې دغسي يې را الا کړه چي بيا څه نکل دئ، چي راغله که ګوري طالب جان نسته لور يې په سرو سترګو ژاړي، مور يې ويل څه نکل دئ ويل چي طالب جان ولاړ، ولاکه يې بيا ووينم، هغه پلا لا په يوه چم لاس ته راغی، دا پلا پسي ولاړ، خداى خبر چي بيا به يې وينم، مور يې ورته ويل ښه سو، چي ولاړ دمخه مي درته وويل چي طالب څه کوې د طالبانو ياري نه ده ښه، طالبان سودايان دي خو تا نه منله اوس يې هم پر لويه لار ايله کړه، د ګل بشرې ژړانه کرارېدله، مور يې درد پر وکړ، چي خواره سې مه ژاړه اوس به دي پلار خبر سي لور يې ناره پر وکړه :

و ما ته مه قهرېږه موري

پر تا تېر سوي پر ما اوس راغلي دينه

مور يې د ناچارئ زړه پر وسو د زړه داد يي ورکړ چي ته مه ژاړه چيري ځي بير ته به راسي دغه ورځ يې په ژړا تېره کړه، ماښام سو يوازي ناسته ده د ځان سره د طالب جان په ياد دانارې کوي :

اوس به د کم مسجد څراغ يې

زه د بېلتون په تاريکو کي ناسته يمه

شپه د جمعې وخت د ماښام دئ

پر ما تورتم دئ چي دي نه وينم مينه

شفق يې مه بولئ عالمه

اسمان زما پر ژړا ويني تويوينه

پرون لا دا مـــــــهال دلې و

نن به دي چيري خلاصوې د بګړۍ ولونه

پرون لا دا مـــــــهال دلې و

نن به يې توري څـوښي چـيري باد وهينه

لنډه دا چي دا شپه يې بيا په ژړا او په نارو تېره کړه، سهار سو نه څه خوري نه څه چښي، ډوبه پر ته ده مور يې ډوډۍ اوبه ورته راوړې چي دا دوې شپې دي څکه نه ده کړې، ډوډۍ وخوره، ګل بشرې ناره پر وکړه:

پر زړه مي ليک د اشناى نوم دئ

د اوبو غوړپ کولاى نه سم وران به سينه

چي يعني اوبه لا نه سم چښلاى ډوډۍ خو څه کوې زما وار تېر دئ ادې موري چاره مي کوه، مور يې ورته ويل چي زويه نو زه څه وکړم زه خو ښځه يم څه مي د لاسه نه کيږي، وروسته يې مور ناچاره سوه راغله پلار ته يې وويل چي طالب جان تللى دئ ګل بشره بيا دغسي ډوبه پر ته ده دا پلا که دي لا علاج وکړ او پيدا دي کړ رادي وست نو بې دلې په تېنګه يوه چاره وکړو، پلار يې هم دستي شاوخوا سړي ولېږله چي وګورئ په هر مسجد او هر ځاى کښي چي مو پيدا کړ په زوره به يې خامخا راولئ، په دغه ورځ ګل بشره بيا په هيله سوه، چي ګوندي پيدا يې کړي او را يې ولي، منګر سړو چي هر څه وکړه نه يې کړ پيدا، ماښام تش تور راغله، باچا ته يې وويل: چي شاوخوا مسجدونه مو ټول وغوښته نه و، نې چا څرک او پته په لاس راکړه! باچا ويل ښه سو، هغه خداى خبر پر کمه تللى وي؟

ګل بشره بير ته تار و نار تکه ژړه ډوبه پر پوتله، دغه شپه په غم پر تېره سوه، سهار سو، مور يې راغله و پلار ته يې وويل چي ګل بشره نه پاتېږي، منګر که دي خوښه ده نن به يې زيارت لره بوزم، ګوندي صبر يې سي، پلار يې ويل ښه دئ بو يې زه، اوس يې تر ژوند په مرګ خوشحاله يم.

آ بس مور يې راغله لور ته يې وويل چي زويه ته بې صبري مه کوه راځه چي پلانکي بابا زيارت له دي بوزم ګوندي زيارت در ورسېږي او صبر دي سي، لور يې ناره پر وکړه:

زړه ته که سل تسلی ورکم
سترگو لیدلی جانان کله هېروینه

ویل که پر سلو زیارتو وگرزم د زړه څخه مي نه وزي، مور یې ویل خیر دئ لوري. زیارت لره به ولاړي سو، دعا به وکړو گوندي بیر ته راسي، دې ویل دا دي ښه خبره وکړه درځه!

آبښ مور ولور دواړي زیارت لره را رهي سولې هله هله راغلې یو زیارت یې وکړ، چي څني راووتلې لور یې لکه لېونی و زیارت ته ډېري ونیولې، زیارت یې په سخرو ویشت، وروسته یې د ځانه سره فکر وکړ، چي زیارت دي ولي وویشت؟ خو لا به طالب جان تری تم سي نو یې ناره وکړه:

د لېونو کانه راوسوه
پر لاري ځم په غونډو ولم زیارتونه

مور یې ورته وویل چي راځه! یو زیارت لا وکړو نو به ځو کور ته! باره را رهي سولې هغه بل زیارت لره، چي زیارت له نژدې راغلې گل بشرې ناره وکړه:

زیارته تا لـره درځــمه
پښې مي تناکي اوس اورغوي لگومه
زیارت کوم نه را رسېږي
خدایه که گډ کې دا د کاڼو زیارتــونه
زیارت کوم نه را رسېږي
یا تکه زه یم یا تـګان دي زیارتـــونه

یو وار د زیارت له خوا ناره پر وسوه:

زیارت و تا ته نه رسېږي
د مخه ستا پر زیارت ما ایښي لاسونه
زیارت و هر چا ته رسېږي
چي په اخلاص ورلره ورځي حاجتونه

اوه! ناره نه وه د جنت زېری و پر گل بشرې وسو، د دې په زړه دي وا "ناره د طالب جان وه چي د زیارت څخه یې باندي وکړه، ځکه چي دی خو هم مین و زړه یې د دې په زلفو بند و په هغه شپه چي د خپلي میني څخه ولاړ

سودا ور ولوېده زړه يې پر يوه خوانه تی، نو راغلی و دغه زيارت ته، دوې درې شپې يې په دغه زيارت کښې تېرې کړې وې، دالته د ميني او د علم په غم کښې وږی تږی پروت و".

ګل بشره او خوابنې چې ورغلې که ګورې چې طالب جان دئ، مخ سپېره، شونډان وچکلک، وږی تږی، پښې ټوکر پروت دئ، خوابنې يې ورته ويل چې څه کوې؟ ولې ولاړې؟ څه مات؟ څه توی؟ څه سوي وه؟ د دې خوا ګل بشرې د ګيلې پر ډول ناره پر وکړه :

زما دې ټول عمر په ډاډ کی

لکه هوسی پر مېږتون شپې تېرومه

طالب جان :

که دې خندلي راته نه وای

غريب سړی وم خپل روزګار به مې کاوونه

زمـــا د عـــلم تاوان راکه

چې په سرو شونډو دې خندل امې دې کړمه

ګل بشره :

که مې خندلي درته نه وای

حـــيران ولاړ وې پر ايمان وېرېدمه

ته دې د عـــلم تاوان واخله

زما د خولې تاوان به څوک راکي مينه؟

مور يې ويل بس دئ، تاسې اوس ګيلې مه سره کوئ، اوس درځئ کور ته چې ځو، طالب جان ويل يه زه نه ځم، زه په علم پسې ځم خوابنې يې ويل چې اوس درځه کور ته بيا به پر کراره رهي سې، څه دنيا به در سره واخلې، چې دغسې بيا په خواري نه يې ککړ !

طالب جان ناره وکړه :

طالبان واړه ملايان سوه

زما اسې پر کتاب پرېوتل ګرزونه

چې يعني زه په علم پسې ځم نه پاتېږم، په دغه نن و سبا کې مې عمر تېر سو، امې پاته سوم او نور طالبان ګرده ملايان سوه، زه دغسې پاته سوم،

ښځي یعني خپلي ماینې په بحث کښي ودرولم، نو یه زه نه درسره ځم، ګل بشرې ناره پر وکړه :

دا ستا د علم نصیب نسته

څوک چي مین سي ځني پاته سي علمونه

طالب جان په جواب کي :

که زما د علم نصیب نسته

د غم ژوندون دئ په سفر یې تېرومه

خواښي یې ورته ویل : چي کور دي خراب سه د هغه علمه سره، خو هغه دئ علم هم نه سې کولای، خو دغه دي حال دئ ! ته ځان ته وګوره پر څه لایزار دئ؟ پر څه ډول یې ! طالب جان ته دې خبرو لا زور ورکړ ناره یې پر وکړه :

علم دریاب طالب اوباز دئ

یا به ځان غرق کړي یا به وباسي لالونه

چي یاندي والله که یې پرېږدم چي یا ځان مړ نه کړم یا علم حاصل نه کړم، آبس د پښتون زوی و، پر خپله هوډه ټینګ ودرېدی، که نه وي تر زړه یې د میني زلفي ختلي دي، وغورځېدی ولاړ رهي سو زیاته سوال و جواب یې سره ونه کړ، دا پلانو په ټینګه مخ د هندوستان پر خوا رهي سو، چي ځم به هندوستان ته څو چي خپل علم پوره نه کړم تر هغو به پته او ځای نه معلوممه، طالب جان ولاړ، ګل بشرې په زیارت کښي ناره وکړه :

په زیارتو دي وا خاونده

یا یې زما کې یا مو خاوري کې چي ځونه

څه سر دي ګرزوم ګل بشره او مور یې په ډېره ناکامي په زړه زخمي او په خوابدي سره د زیارته راوتلې، را رهي سولې ګوز ته راغلې، ګل بشره نو پرېږده چي په نارو او غلبلو شپې او روځي تېروي، "طالب جان پسې راواخله" طالب جان را رهي سو، هله هله تر ماښامه یې مزل وکړ زړه یې د میني سره دئ تن یې په سفر کي دئ مینه پر دغه دښت ور په یاد سوله ناره یې وکړه :

زړه مي هلک سو راته ژاړي
اوس پر دې بتې بېبان غواړي ديدنونه

ديدن چيري دئ باندي ماښام سو، پر دغه دښت پرېووت وږی تږی، چي سپوږمۍ راوختله ښه راپورته سوله، چرت وهي چي زه دلته پروت يم مينه مي هلته پر بام چاودلې زړه پرته، باره يې پر سپوږمۍ ناره وکړه :

سپوږمۍ تا وکړه سيلونه
درته پراته دي مينان چاودلي زړونه

هلته يې مينه پر بام پرته ده سپوږمۍ ته ګوري، هغې هلته ناره وکړه :

سپيني سپوږمۍ تر تا جار يم
زما جانان به تا ته ډېر کـــــتلي وينه
سپيني سپوږمۍ حال راته وايه
چي نن د چا سره مجلس جانان کوينه؟

ميني ته يې خوب نه ورځي همدغه سپوږمۍ ته ګوري لټ پر لټ لکه مارو هلې سره اوړي بيا يې ناره وکړه :

ســـــتا دي قسم وي خوبه راسه
چي د شېرين جانان ديدن درکي وکمه
خلک په ټوله شپه کي خوب کي
زه په ګولۍ ويشـــتلي زړه ټاکورومه

دا نو پرېږده طالب جان شپه پر دښت تېره کړه، سهار را رهي سو هله هله مزل پر مزل څو شپې وروسته دا دئ هندوستان ته راغی، په يوه مسجد کي يې پر يوه ملا ځای ونيو، سبق يې شروع کړ "د طالب سودا ده" څو ورځي پس چرت ور ولوېدی، چي خدای دي خوار کړه ! دا خو هم ظلم دئ چي هغه ګل بشره دي په زخمي زړه پرېښووله، ته ځني راغلې او دې دونه ډېره وفا درسره وکړه ! چي ته خوار طالب دا د باچالور او په تا يې سر کښېښته کړ او هلته هم علم حاصلېدی، يه دا خو دي بد وکړه چي راغلې، راسه بير ته ولاړ سه دورې به هلته نژدې يو ځای ورته استېږې ! څه سر دي ګرزوم بير ته يې کالي راواخيستله را رهي سو، چي راغی د اټک رود ډک دئ، هيڅوک نه سي پوري وتلای، دالته بند سو دوې درې شپې يې ورته تېري کړې،

وروسته د دوی د ډلي ځخه يو سړی اوباز و، دا سړی راپور يوت، هله هله د نکل کار دئ معطلي نه لري برابر هغه ښار ته راغی چي گل بشره پکښې وه، دې سړي وويل چي د اټک رود خورا ډک راغلی و، هيڅوک نه سوای راپوري وتلای، گرده يې بند کړي وه، ملا عباس هم د کور پر خوالکه چي راتلی، منگر هغه هم رود بند کړی و، دا احوال تر گل بشرې پوري ورغی، گل بشرې د زړه د جوشه ناره وکړه :

زما جانان دي دورې بند کړ

تر زنگانه سې د اټک روده ظالمه

وايي چي د خدای په حکم سره د اټک رود تر زنگانه سو، طالب جان راپوري ووت پېښور ته راغی، مانښام يوه مسجد ته ورغی، ری وهي چي علم مي نه وکړ، دا څنگه سو؟ خو بير ته سودا ور ولوېده چي خدای دي خوار کړه ته په علم پسي را رهي سوې، علم دي نه کړ حاصل، اوس کور ته ځې، دا هم شرم دئ، بيا به درباندي خاندي وای ځوړي ستر گي بير ته بې علمه راغی، نو په ولا که گام لا واخلم !

آخود راغی پر يوه لوی عالم يې ځای ونيو، سبق يې شروع کړ ... څو ورځي پس يې فکر وکړ چي راسه يو خط ور ولېږه نه چي د ميني دي زهره ونه چوي، ښه دئ اميد بې پيدا سي، او په دغه خط به د زړه سوده کوي، دلته خو نه سي پسې راتلای، نو يې قلم او مشواني راواخيستل دا ناري يې وليکلې :

کاغذه ورسه په تعظيم سه

اول تر جار سه بيا پر وايه سلامونه

قلم په لاس غمونه کاږم

د ډېره غمه پر قلم تکيه کومه

دا ستا به هېر که به دي ياد يم

زه چي قدم پر قدم ږدم تا يادومه

څوک چي د چا د چينې گل سي

مناسب نه دئ چي څوک لاس ورته وروړينه

کاغذه ورسه ورته وايه

يار به دي تل مسافر نه وي رابه سينه

کاغـــذ چي لولې ورته ژاړه

مـــا چي لـــیکه ورته مي ډېر ژړلي دینه

نور يې ولیکل چي زه په پېښور کښې پر پلاني ملا چي خورا لوی عالم دئ هستېږم، دا کاغـذ یـې میـنـې تـه راولېږی، کاغـذ چـي ګـل بشـرې تـه راورسېدی، یو نوی روح پکښې ننووت، وایې خیست مچ يې کړ، چي خلاص يې کړ وې لوست، وې لوست، خورا يې ډېر باندي وژړل، وروسته يې څوک نه کړه خبر، دا حال يې پلن واچاوه هغه خط يې تعویذ کړ په غاړه يې کړ، وروسته يې فکر وکړ، چي اوس نو څه وکړم، که پسې ولاړه سم هم بیر ته راځخه ځي، او که خط ور ولېږم چي راسه، ولاکه راسي، او که راسي هم علم به يې نه وي پوره کړی بیر ته به راځخه ولاړ سي، نو یه ښه دا ده چي د علم او سبق ویلو خط ور ولېږم چي ښه ترا پر علم زور وکړي، او زړه يې بېغمه سي، نو بیا که راسي بیر ته به نه راځخه ځي، سودا به يې قطع سي، وروسته يې قلم او مشوانۍ او کاغذ راواخیست پکښې وې لیکله :

سـلام سـلام دئ خپله یاره

پس له سلامه په دیدن پسي دي مرمه

سلام په سرو شونډو قبلېږي

د مسـافرو سـلام ځي پر کاغذونه

قسم په خـدای باور په وکه

چي بېله تا څخه مي نسته پر بل مینه

ستا دي قسم په ذو الجلال وي

که به دا زما مـینه پر بل باندي کـوینه

جانانه ولـــوله مـلا سه

نجونو پېغور راکی چي یار دي امي سونه

دا کاغذ يې ولیکی طالب جان ته يې واستاوه، څو شپې پس طالب جان ته کاغذ ورسېدی، نو د طالب جان زړه هم پوړه سو، اوس نو خپل سبق وایي، د ملا هم ښه خدمت کوي، ملا هم ښه سبق ورته وایي، څه سر دي ګرزوم، څو عمر تېر سو، د ملا یوه لور ده، نوم يې "ښایسته" ده منګر دوی يې توره بولي، او په رنګ هم توره ده، چته پېغله ده، یوه ورځ ملا طالب جان کور ته

بېولی دئ څه کار يې و، دې ښايستې طالب جان ولید، دستي پر مينه سوله، د دغه وروسته يې په طالب جان پسې لاس وړی، طالب جان هم په پوهېدی، منګر هيڅ چرت يې نه پکښې واهه، يوه ورځ ښايسته د پلار په غلا د طالب جان حجرې ته راغله، دی پر کتاب پروت دئ کتاب ګوري، طالب جان وليده، منګر هيڅ بږغ نه ورته کوي، نه ری پکښې وهي، دې ناره پر وکړه :

زړه مي دا ستا خبري غواړي

لـکه للمي غنم چي غـواړي بارانونه

راسه زما د سـينې ګل سه

چي هر ساعت دي په ديدن تازه کومه

طالب جان په جواب کي ناره پر وکړه :

زه به دا ستا د سينې ګل سوای

د بېلتانه سپاهيان راځي رنګ به مو کينه

د مســـــافرو آزار مه وړه

بيا به نارې وهې چي وســـوم په اورونه

دنيا د سـوب پر لـور کړه ده

نجلۍ د هغو ياري کړه چي سودمن وينه

ګل د بلــبل سره ښـــايېږي

مـــناسب نه دي چي زاغـــان يې بويوينه

چي ياندي زه مسافر يم ما مه آزاروه زه بير ته ځم بيا به دي عمر په دار وي، او بل دا چي زه خوار کی سپېره طالب يم، ورسه يو غټ وکړه، چي دولتمن وي او زاغ لره مناسب نه دي چي ګل بويوي، يو وار ښايستې ته درد ورغی ناره يې پر وکړه :

ځـــله مي توره توره بولې

زه توره نه يم مـــور په ناز بللې يمه

پر تورو بد مه وايه ياره

تور خو لونګ دي باچهان يې بويوينه

پر تـــورو بد مه وايه يارّه

بورا په توره خـــوله ګلونه بويوينه

که توره یم تا به رنځور کم
زه غنم رنګه یم ځـوانان رنځـورومه

څه سر دي ګرزوم هر څه چي ښايستې وکړه طالب جان هيڅ نه ورتـه کتل، او جواب يې ورکړ، چي زما وستا ياري نه سره کېږي خوشي ځان مه خطاباسه، اوس نو د ملا د راتګ وخت سو توره نااميده کور ته ولاړه.

په دې مابين کي ډېر عمر تېر سو، د ملا لور يې نه پسې پرېږدي او طالب جان هم بيا هيڅ خط و ګل بشرې تـه ور ونه لېږه هلتـه ګل بشره هم ډېره اندېښمنه ده، چي طالب جان څه سو او خط يې ولي نه راځي ډېر بېلتون يې هم ګاللی دئ لکه ژړه ناړې داسي ده يو ګړی يې توان نه کېږي اريانه ده چي څه وکړم هلتـه طالب جـان غمجـن هـم دئ فکـر يې خـراب دئ حيـران تللی دئ چي څه وکړم.

يوه روځ ګل بشره پر بام راختلې ده غم خورا زور پر کړی دئ پر بام کوربل وهي زنګېږي مور يې ژړا وارو ېدله پسې راوختله چي تر بام ځان وانه چوي مور چي يې راغله ويل څه کوې چي ګرزې زنګېږې دې ناره پر وکړه:

پر بام ولاړه يم زنګېږم
د خوبه نه يم د يار غم غلطومه

يو ګړی وروسته نری باد راوالوت پر ګل بشرې وموښت پر باد يې ناره وکړه:

باده پر باد مي سـلام وايه
پر هغه باد چي د جانان لوري ته ځـينه
مابه و يار ته کاغذ ورکـړای
باد بې وفا دئ د چا نه وړي کاغـذونه
باده د خدای روی مي دروړی
ژر راته وايه ګران زړګی څه حال لرينه
بېلتون پر هر چا مېلمه کـېږي
مـا ته چي راسي نو خـېمې ودروينه
بېلـتونه بسـته ظلم مه کړه
زما پر د ېس لالی راپرېږده چي راځينه

وروسته يې مور وويل چي طالب جان دي خدای په ښادي کړي، چي

اوس يې يو څه درک وخرک معلوم وای خو خط به مو ورلېږلی و، لور يې ورته ويل چې هغه په پېښور کې دئ پر يوه ملا باندې استېږي، خط يې پروسږ کال راغلی و، ما بيرته خط ورولېږه چې علم دې پوره کړه، پر زړه مې زور تېر کړی اوس بيخي دېر عمر تېر سو، هيڅ درک يې نسته، مور يې ويل د پېښور ملا ولي داسې کوي ده خو به دونه ورته ويل چې يو خط مط کور ته ورواستوه، کور هم حق لري يه ګرده لکه چې هغه ملا ورته ويلي دي چې مه کور ته ورځه او مه خط ور استوه د ګل بشرې يو وار زړه پرله واوښت ناره يې وکړه :

زما جانان دې دورې بند کړ

تقرير دې بند شه پېښور لويه عالمه

د ميني خواست و، خدای قبول کړ، وايي چې هلته د هغه ملا تقرير بند سو، يو تکی يې نه سوای ويلای، حيران ولاړ چې دا څه چل دئ ! خو په دې مابين کې بيا دېر عمر تېر سو، طالب جان هم حيران تللی دئ چې اوس نو څه وکړم. ملا هم ډوب تللی دئ، پس له څو عمر څخه يې د ميني ببخي د توانه ووتله، فکر يې وکړ چې راسه اوس بې نو علم پوره کړی وي، يو سخت خط ور واستوه ګونډي راسي، وروسته يې قلم او مشوانۍ راواخيستل دا ناري يې پکښې وليکلې:

سلام سلام جانه سلام دئ

پس له سلامه ژر وطن لره را درومه

سلام دې راغی ته رانه غلې

زه به دې څه کړم بې ديدنه سلامونه

قلم په لاس غمونه کاږم

د عاشقۍ لنډۍ پر زړه وهلې يمه

سترګي مې ستا پر لور کږې سوې

لکه جنډۍ د شهيدانو پر قبرونه

ستا په ديدن پسې جانانه

سترګې مې وکړې د چينو په شان ډنډونه

تر تا دې غم لا وفادار دئ

ته راڅخه ولاړې غم دې تل راسره وينه

چي را په ياد مي سې جـــانانه

سر پر بالښت کم او ښکي کښته تو يومه

آســمان ته وګوره چي شــين دئ

داسي مي زړه درپسي شين دئ وبه مرمه

کاغـــذ د زړه په وينو لـيک سو

آه مي پر وکيښ ځکه تور يې سول حرفونه

کاغـــذه بخت دي مـــبارک سه

زمـــا د يار سره به وکـــړې ديدنونه

تر مـــا لا ته ښه يې کاغـــذه

زما تش احـــوال ته بې وکې ديدنونه

څه سر دي ګرزوم ډېري ګيلې او ترتاب يې په کاغذ کي وليکی، چي که رانه غلې نو زما آن تمام دئ، دا خط يې ورولېږی، "د نکل کار دئ" خط طالب جان ته راورسېدئ، "دلته چي خط راغی د ملا لور ښايسته هم په طالب جان پسي راغلې ده، د طالب جان فکر نسته نه يې ويني"، خو چي خط يې خلاص کړ وې لوست وې ژړل، ښايستې ناره پر وکړه، چي خپل کسات ځني واخلي او پر زړګي يې مالګي ورودوړوي :

طالبه بسته ژړا مه که

ځوک خو دي نسته چي دي او ښکي پاکي کينه

طالب جان ته دې نارې خورا زور ورکړ، د لاسه يې کاغذ ولوېدئ، ښايستې ور حمله کړه کاغذ يې راواخيست، برابر يې پلار ته راوړی، مولوي چي دا خط ولوست پوه سو، چي طالب مين دئ، او ميني يې دعا کړېده چي دغه زما تقرير بند سو. دستي راغی وطالب جان ته يې کالي ورکړه چي څه برابر خپلي ميني ته، اوس دي دغونه علم حاصل کړ، زياته علم نه سې کولای او نه يې ويلای سې او نه يې په دې علاقه کښې بل ځوک در ته ويلای سي، طالب جان ور ته ويل چي وده[1]، اوس نو کتاب تمام سوی دئ دغه څو پاڼې يې سته، دغه لا په دغه نيمکله تقرير راته ووايه چي خلاص سي نو سبا

[1] ودرېږه.

و بل سبا به ځم. ملا ویل ښه دغه ورځ تېره سوه، ماښام طالب کتاب ګوري
په زړه کښې یې مینه ده ناره یې وکړه :

کتابه ژړ ژړ تمامېږه
ما په وطن کښې رنځوران پرې ایښي دینه

لنډه دا چې په دوې درې ورځې یې کتاب تمام سو، کالي یې
راواخیسته مخ د کور پر خوا را رهي سو، چې د کور پر خوا را رهي سو هلته
یې میني د ده په یاد ناري کولې :

باد نن د پاسه که د کښې دئ
زما پر دماغ نن د جانان بوی لګوینه

څه سر دي ګر زوم طالب جان چې را رهي سو، هله هله هله مزل پر
مزل، هه هه څو شپې پس و خپل ښار ته نژدې و یوه کلي ته راورسېدی
ماښام یې و یوه مسجد ته ځان ور ورساوه، د ډېرو مزلو او ستړیا او خواریو او
زحمتو او لوږو و تندو په سبب یې ماښام تبه سوه، ناجوړه سو، داغه شپه یې
تبه سهار پسي یک بنده سوه دالته په دغه مسجد کښې پسې پرېوت څو
ورځي ناجوړه و، ورځ په ورځ کمبوت او کهي ته تلی مرض یې زیاتېدی، او د
ژوند په وروستیو لحظو کي یې داسي ناري په نیولي نفس وکړې :

په ګورستان کښې به ناري کړم
چې ارمانجن د سپیني خولې راغلی یمه
زه په ارمـــــان له دنیا ولاړم
په آخــــرت به سره غــــوارو دیدنونه

وروسته تر دې یې د سترګو تور تله او سپین یې راتله او داسي یې په
خپلي میني پسي فریاد کاوه :

سترګي یې مه پټوئ خلکو
روح یې معطل دئ د اشنا دیدن کوینه

آخر ته طالب مړ سو خدای دې وبخښي، ګل بشره خبره سوه، بغاري
یې کړې، ناري یې کړه :

نصیبه وسوځې ایرې سې
تندیه مات سې پر تا څه لــیکلي دینه

ګلان د خاورو پیدا کیږي
زما لالی تر ګل نازک خاورو له ځینه
پل صراط به ورته نیسم
پر مرور اشنا به غیږ وګرزومه
ما ول د غمه به دي ومرم
مرګ په وعده دئ دروغجنه سوم مینه
ما له قلم مشوانی راوړئ
د یار تاریخ د زړه په وینو ولیکمه

را رهي سوله طالب جان يې پس له مرګه ولید، چي په کفن کاوه يې مینې يې ناره وکړه :

پر یار مي سپین کفن غوړیږي
پر ما اوریږي د سکروټو بارانونه

وروسته يې طالب جان په کفن کی پر جنازه يې کښېښنو، وايې خیست هدیرې ته يې یووړ، مینه يې په پسې ده، ژاړي، طالب جان قبر ته داخلوي ښخوي يې، مینې يې ناري کړه :

قبر خو سل ګزه کوهي دئ
ځوانان کوزیږي د ناکام په تناوونه
پر تورو خاورو زما سلام دئ
اشنای مي ګل دئ ګل به نه خاوري کوینه
پر ګورستان مي دي سلام وي
چي خاوري نه کې د جانان صدف غابنونه
ولي به نه وریسې مرمه
جانان مي ګل د پسرلي خاورو له ځینه

آخر ته يې دغه لاندي ناري وکړې او طالب پر قبر يې ځان واچاوه مړه سوه :

عالمه یو تر بل جاریږئ
ما د مجلس ځوانان لیده چي خاوري خورینه

لنډه دا چي وروسته يې دواړه ارمان زده مینان هلته یو ځای ښخ کړه.

## تبصره :

د طالب جان د نکل د نارو وزم مخصوص وزم دئ، اول ناره کوي بیا کسر پسي وايي، لکه دا ناره : "حجره سته طالب يې نسته، حجره سته طالب يې نسته" دوه واره:

پر حجره يې لکه مار وگرزېدمه

دا يې کسر دئ پسي وايي يې :

ارما ارمان، چې پر دنیا نه وای بېلتونه
طالبه ورانه دي سي ستا لېونی مینه

# ظریف خان او مابۍ

چې و، یو سړی و، د دې سړي نوم میرویس و[1]، یو یې ورور و، چې خدری نومېدی، میرویس مشر و خدری کشر و. د خدای کارونه دي، دې میرویس اولاد نه درلودی، د ټوله خېل قوم مشر و خان دی و، دنیا او دولت خدای ورکړي دي د هندوستان سوداګري یې کوله، خورا ډوډۍ مار دئ، مهمانخانه یې چل ده، د خدای کوټه ډوډۍ ورکوي.

یوه ورځ یو ملنګ راغی په دروازه کې یې هل کړه ویل راوړه د ملنګ نیاز! د میرویس یوه مزدوره وه دې په پلو کې د اوړو پر ځای ایرې ور وړې، د ملنګ په کچکول کې یې ور واچولې، کچکول یې د ایرو ور ډک کړ، ملنګ ورته ویل دا چې فقر دي نه راکاوه هغه د بل د کور څه چې مي ټول کړي وه، هغه دي لا راباندي ودروله راودي لړله، ولې؟ پر څه باندي؟

دې ورته وویل چې اور واخلئ تاسي ډوګړه مستان لنډهر، را رهي سوي یاست ځانونه مو ملنګیان تراشلي دي، په باطن کې مو خاوړي لا نسته. ملنګ ورته وویل چې څه وایې دا، دا څه پېښه ده؟

هغې ورته وویل چې زموږ خان په دغه ګرده عمر اولاد نه دئ لیدلی.

ورور یې زامن لري لوښي لري، دی هیڅ نه لري هر څه خیراتونه یې کړي دي، روپۍ یې خیرات کړي دي، منګر په چا کې دونه تاثیر نسته، چې یوه دعا وکړي چې خدای خان ته زوی ورکړي، ملنګ ورته ویل چې ته خوا مه بدوه، ها دغه زما لکړه واخله ورسه باغ ته د سېب وني ته یې ور وغورځوه، هر څه سېب چې راولوېدله را یې وړه چې زه یې در دم کړم، نو یې ورکړه چې

---

[1] څوک وایي مسلم نومېدی، څوک وایي یونس و، میرویس او د دلارام د ښادي خان پلار سره خپلوان وه، منګر میرویس د کشکنخود و، ښادي د تلخک د دلارام و.

نیمی دي دی وخوري نیمی دې ماینه وخوري او لومړی اولاد چې خدای ورکړي هغه زما شکرانه ده، زما دئ. هغې هم لکړه راواخیستله راغله باغ ته یوه خورا باردانه د سېب درخته یې پیدا کړه لکړه یې ور وغورځوله، درې دانې سېب څنې راولوېدل، دغه درې دانې سېب یې ملنګ ته ورکړه، ملنګ ور دم کړه، ویل ها دغه دئ اوس یې نو ورکړه خان او ماینې ته چې وې خوري خدای به اولاد ورکړي. مزدوري یې سېب راوړه خان او ماینې ته یې ورکړه، دا نکل یې ورته وکړ چې داسي و، دا ملنګ راکړه څنګه و څنګه.

خان هم ډېر خوشحاله سو، باره ده او ماینې سېب سره وخواړه، عمر دئ تېرېږي، نه میاشتي نه ورځي نه ګړیه تېر سوه خان او ماینې ته خدای زوی ورکړ، نوم یې "ظریف" کښېښو، هی زالم(؟) خوشحالي سوه، هشت و مشت سو چې خان ته خدای زوی ورکړ.

څه سر دي ګرزوم ظریف خان ته یې دایي ګاني ونیولې هه هه هه څه سر دي ګرزوم د نکل کار دئ، ظریف خان لوی سو شپږ اوه کاله تېر سوه، دا دئ یوه ورځ بیا هغه ملنګ په دروازه کي هل کړه، مزدوري پر آواز وپېژندی، ور الا یې کړه زېری یې پر وکړ، ملنګ خوشحاله سو، راغی خان ته، ورته ویل څنګه پر قول ولاړ یې، دغه زوی خو دي زما دئ؟ خان ورته وویل چې باچا تې څه کوې؟ د ده په عوض کي هر څه مال و دولت چې غواړې در بې کړم او که یې نه کوې نو دلې اوسه ! ډوډی او پوښ به زه درکوم ظریف خان به درسره وي، د ملنګ هم خوښه سوله چې ښه دئ ! دلې به اوسم ! ظریف خان داسي ښایسته دئ چې ستر ګي نه پر رونېږي، هر څوک چې یې ویني زړه پر بایلي، ملنګ دالته ځای ورته ونیو دلې اوسي.

په دې ماین کي خان ته یو زوی او لور بله خدای ورکړه چې د زوی نوم یې "لال" کښېښو او د لور نوم یې "بیې" کښېښووله. لنډه دا چې اوس نو د خان دوه زامن یوه لور ده. دا ظریف خورا پر ګران دئ، اوس لوی دئ ښایسته زلمی دئ. د ښکار هم ډېر شوقي دئ، او د غېږي هم شوقي دئ، ګرده ورځ د خپلو همزولو سره غېږ باسي، سات ورسره تېروي کور ته چنداني نه راځي، خپله ځواني کوي.

دغه مور و پلار یې فکر وکړ چې ظریف خان دباندي اموخته سو، سبا

به يو څه نه سي ځني جوړ، دا به په څه چم کورني کړو، چي پخپل کاروبار وپوهيږي، سبا به موږ مړه يو دی به لوچک وي. دغه پيسې به دربدره کړي، د اکا تر لاس به لاندي وي، تربرونه به پر خاندي. مور يې وويل چي سړيه راسه چي کوزده ور وکړو، نو به کور ته راسي، پښه به يې تر کنده وخېژي. د مجلسه به راوګرځي ځان به په کار وپوهوي، ولي چي ښځه سړی کورنی کوي او د کور په کاروبار يې پوهوي.

پلار يې ويل ډېر ښه دئ. آبس ظريف خان ته يې ويل چي زويه موږ کوزده درکوو، پلانی ښځه داسي ښايسته ده چي توبه، هغه به در وغواړو. پلانه ده بستانه ده، ملک يې ورته خوښي کړ. ظريف خان د ني پر ميدان ورته ناست، وايي زه بالکل ماينه نه کوم، اوني هوالرم زه خپل شوق کوم.

ميرويس راغی ملنګ ته يې وويل چي ته ورته ووايه، ګوندي ستا په خوله وکړي. ملنګ ورته ويل ښه دئ. ملنګ راغی و ظريف ته يې وويل چي ظريف خانه ! سبا به دي پلار مړ وي، دنيا به دي دربدره وي، بې کوره به يې ميراث خواره به د هري خوا املې درباندي وهي، ستا په مرګ به خوشحاله وي، چي اوس دي لا پلار ژوندی دئ کوزده به در وکړو. ښه دئ مور و پلار به دي هم خوشحاله وي ارمان بې وخېژي.

ظريف خان د ملنګ د خبري نه اوښتی، ويل ښه دئ، چي ستا خوښه ده، ظريف خان ملنګ ته وويل چي ښځه راغواړې، نو بايد داسي ښايسته وي چي وتلې وي. ملنګ ول ښه دئ، د ګرده اولس په نجونو کي چي ښايسته وي او ستا خوښه وي، هغه به در وکړو. ده ويل ښه دئ. خو د کلي په نجونو کي يوه د ظريف خان نه سوه خوښه. مګر يوې بوډۍ يوه لور درلوده، چي نوم يې "مابی" ده، چې ډېره مسکينه دربدره خاک په سره ده، يو تور ځيري ټکری يې پر سر دئ، مګر په رنګ تر ټولو ښايسته ده، ظريف خان دغه پيغله ځان ته خوښه کړه، او د ظريف خان پلار وويل چي خطا وتلې چي دا مسکينه اسکېرلې دي خوښه کړېده. ده ويل نه يم خطا وتلی. پلار يې ويل چي ښه دئ چي ستا خوښه ده زموږ خوښه ده.

لنډه دا چي د بوډۍ لور يې ور وغوښتله. د بوډۍ لور هم پر مينه ده، مګر اوس ځواني ده، ږغ نه سره کوي، چي راواده يې کړي يا مي ور واده

کړه. پلار یې ویل چې وده پر کراره به یې واده کړو، خو په دغه نن او سبا کې نن او سبا کې یو وار د ظریف خان پلار ناجوړه سو، مړ سو واده یې ور ونه کړ.
ظریف خان او مه خوله هلک دئ د پلار پاتا یې واخیستله، د ظریف د پلار یو اشنای دئ دا هم خان دئ، د ظریف د پلار په ژوند یې و خانۍ ته ځان ښوراوه، خدری هم د خپل ورور په مړګ خوشحاله سو، چې ګوندي خاني ما ته راورسېږي. ظریف خان د احتیاطه څخه حال ور واستاوه چې ته اوس پاتا ته مه راځه بیا به کړه اټکلوو. څو ورځې باد د ظریف خان مور هم مړه سوه، دلته خدری ښخي خوشحاله سو، لال او ببۍ دواړه کوچني دي، دلته نو اوس خدري بدې پسي وغښتلې هر ځای بې بدناماوه، غیبت به یې کاوه چې ظریف خان ډېر ناروا دئ. بد فعله دئ څه دئ وڅه دئ. هلته یې خپلې ماینې ته ویل چې لال او ببۍ وهه ترټه یې! څه سر دي ګرځوم د ظریف خان اوقات تریخ سو، هلکان یعني خور و ورور ورته ژاړي، ظریف خان په چرت کې دئ چې څه وکم؟ دلته د بوډۍ لور "مابۍ" خبره سوه چې د ظریف خان حلق تریخ دئ، په تکلیف دئ او بې کوره دئ، نبایده خدری یې خطاباسي بله ور ونه کې، بیا به زما څه حال وي؟ باره په پټه راووتله د کوره راغله د ظریف خان کره دا حال یې ولید، کوچنیان ژاړي، ظریف خان کور نسته، ماښام دئ اکا او د اکا ماینه یې چرت نه پکښې وهي، باره مابۍ ناره وکړه:

ظریف خان ګرځي کلي په کلي – نیازمن مې غواړي په زړه ویشتلي
دغه نور خلک بیده دي – د ظریف دواړه وزر ختلي – اې وزر ختلي

یعني نه یې پلار سته، نه یې مور سته، نه یې بل غمخور سته، لکه وزر ختلی مرغه داسي دئ، خو لنډه دا چې مابۍ د لال او ببۍ پر سر لاس ور تېر کړی ایمن یې کړله. خدری ورغلی دئ هغه خان چې د ظریف خان د پلار اشنای و، او ظریف د پاتا څخه ګرځولی و، هغه ته یې ویلي دي چې ظریف خان داسي بد کاره دئ، د خانۍ وړ نه دئ، خاني خو نو اول ستا ده او که نه وي زما حق ده، د ده سره خاني نه ښایي، یه د ده یوه چاره وکه. خان ورته وویل چې مه کوه د پلار میراث د زوی وي چې پلار یې خان و اوس دی دي خان وي، او دا مناسبه نه ده چې د دې کوچني هلک څخه خاني په زوره واخلم. خدري ورته وویل هو چې دی یې اهل وای، منګر دی ډېر ناهله دئ،

خان خو باید باانصافه، عادل، دینداره وي، د بل و ناموس ته نه ګوري، ظریف خان خو ډېر بد سړی دئ که یې نه منې ته تجربه په وکه، خان ویل ښه دئ.

لنډه دا چي ظریف خان ته یې حال وکی، چي ته لکه چي خوابدی سوی یې، ستا پلار زما اشنای و خدای دې وبخښي، زه پاتا ته درتلم تا نه پرېښوولم، لکه چي چا شیطانت درته کړی دئ، منګر زما په زړه کي ولاکه هیڅ لا سته، نن شپه زما مېلمه یې، زه هغه د پلار په سترګه درته ګورم او خامخا به راځې، که نه راغلې خوا مي بدېږي.

ظریف خان راغی د خدري سره یې صلاح وکړه چي مشر دئ، د پلار پر ځای دئ چي د ده څنګه خوښه ده، خدري ورته وویل چي شل کرته ولاړ سه، ډېر ښه دئ. مېلمه کړی یې یېنو ولي نه ځې، د ده خو هلته بند د خان سره پوخ کړی دئ، په زړه کي وایي چي که ښه وي که بد، د خپلي خانۍ له پاره ولاکه د ژوند څکه ځني وکړي.

لنډه دا چي ظریف خان د خان کره ماښام ورغی، چي ډوډۍ یې وخوړله، خبري مبري یې سره وکړې، باره ظریف خان ویل ښه دئ زه به رخصت سم، خان ویل یه تاریکه ده دلې به بیده سې، ده ویل ښه دئ. خان او ظریف خان او د خان ماینه درې سره پر نغري ناست دي، خان اوس په ظریف خان امتحان کوي چي څنګه سړی دئ؟ خدری رشتیا وایي که درواغ. منګر پخپله په زړه کي څه نه ورسره لري، باره یې وویل چي زه ځم مسجد ته د خوني څخه راووت ظریف خان یې د خپلي ماینې سره یوازي پرېښو، چي ودرېږه ظریف څنګه سړی دئ؟

ظریف خان او د خان ښځه پر نغري سره ناست دي، ظریف خان کښته ګوري، ګردسره سترګي نه ور اړوي، چرت یې په مابې کي دئ، خان کله د دروازې تر چاکو ورته ګوري کله غوږ ونیسي چي څه وایي او څه کوي؟ خو تر پایه ظریف چپ ناست و او کښته یې کتل، هیڅ ږغ یې نه کاوه.

"د خان د ماینې په غاړه یو غمی دئ چي ځل و بل کېږي لکه څراغ داسي رڼا کوي"، ظریف خان اخر ته یو وار سترګي و دا غمي ته ور واړولې بیر ته یې کښته واچولې، خان چي دا وضعیت ولید لږ څه په شکي سو، خو ږغ یې ونه کی چي ته وده چي څه کوي؟

خو تر نیمو شپې ورته ولاړ و، نور څه یې ونه لیدله، نو خوني ته ورننووت، و ظریف خان ته یې وویل چې ستا لکه چې دا ښځه خوښه سوله او زما ستا د پلار سره د زړه اشنایي درلوده، نو دغه ښځه به درپر بېدم چې ستا خوښه ده، تر تا قربان ده، د ظریف خان دا خیال سو، چې خان په ما خطاوتی که څه؟ چې دا خبره یې وکړه نو یې پر خان ناره وکړه :

که ګل کي ګل کي – په هندوستان کي پسرلي ګل کي

دا هم د رب رضا ده، چې ورور یې ناست وي ورېنداري بل کي

ها ها ورېنداري بل کي

یعني دا عجبه ده چې ته ناست او زه به ستا و حرم ته ګورم، ته زما پلار یا ورور یې دا مي ورېنداره ده، خان ویل چې تا ولي ورته وکتل، ده ویل ما د دې مخ نه دئ لیدلی، مګر دغه غمي ته مي وکتل چې رڼا یې زما پر ستر ګو برابره سوله، د خان هم و زړه ته ولوېدله چې پاک یې او بېشکه د پښتانه زوی یې، لنډه دا چې سهار یې ظریف خان په ډېر عزت رخصت کی کور ته راغی.

خدري فکر وکی چې دا دو مي هم ونه چسپېدی، اوس نو چرت وهي چې په څه چم دا ظریف خان مړ کم یا یې له وطنه ورک کم، په یوه ټکه یې اخته کم، چې بیا تر مرګه پوري رانه سي، چې دغه میراث او خاني یې ما ته پاته سي، چرت یې وواهه وواهه آخر ته په ظریف خان پسې سو، چې پلار دي هم سوداګري کوله ته کور ناست یې، یه درځه چې په سوداګري دي بوزم، اوس لا زه ژوندی یم، پر ما دي حق دئ چې سوداګري در زده کم، بیا که مړ سم هم ارمان نه لرم، سبا به دي دغه پلار ګټلې بایللې وي بیا به څه کوې؟ د ظریف خان هم خوښه سوله ویل ښه دئ کاکا "خیال یې دا سو چې منشر دئ بده یې نه ده دربانډي پېرزو".

لنډه دا چې (د نکل کار دئ) کاروان ماروان یې جوړ کی، سودا وسوله، په دې سبانو و هندوستان ته باربري، مابی په دې کیفیت ناخبره ده د ظریف خان یو تور نوکر و، راغی پر مابی یې ناره وکړه :

ظریف مرغه سو – پر الواته سو

مابیه راسه دام ورته کښېږده – کې بندوې وار دي داغه سو

های های وار دي داغه سو

دا کیفیت یې مابۍ ته ووایه، چې ظریف خان هندوستان ته ځي، مابۍ راغله که ګوري کاروان ولاړ دئ، ظریف خان د آس تانګونه ټینګوي، آس یې هم نوی نال کړی دئ، نو مابۍ ناره پر وکړه :

تا د نیلي تانګونه ټینګ کړه – نال د مېخ دي د هندوستان پر خوا وهلي

ببۍ او لال او زه دي پر چا باندي سپارلي – ها ها چا باندي سپارلي

ظریف خان په جواب کي ناره پر وکړه :

ما د نیلي تانګونه ټینګ کړه – او نال و مېخ مي د هندوستان پر خوا وهلي

ببۍ لال مي اول پر خدای وای پسې پر تا باندي سپارلي

ها ها پر تا باندي سپارلي

بیا مابۍ ناره پر وکړه :

که مه ځه مه ځه ظریفه مه ځه د هند و لور ته

رازق مو خدای دئ رزق به رارسي زموږ و کور ته

های های زموږ و کور ته

ظریف خان غوږ نه پر ونیو، کاروان بار سو، که څه هم د ظریف خان په زړه یو الله خبر و، مګر د غیرته او د اکا او د تربرو له جهته هیڅ بړغ نه کوي او نه مابۍ ته ګوري، د مابۍ اوښکي راتوی سوې، چې ظریف خان نه پاتېږي بیا چې یې ظریف خان ته وکتل لږ څه خپه په خیال ورغی، فکر یې وکی چې ظریف خان خو هم درباندي مین دئ یو یې ستا غم په زړه کي وي، بل د سفر نو دغه زما د مخ په ګرځېدو به یې لا غم یو په دوه سي نو یې بیر ته د ده د زړه د ډاډ له پاره ناره پر وکړه :

یو تا چې پند کی پر ما دي غم کی

ظریفه ته چې اوس خپه نه سې

اوښکي مي راغلې درته مي څنګ کی

های های درته مي څنګ کی

یعني ته خوا مه بدوه چې ما مخ در څخه وګرځاوه چې زه نو مروره سولم، په مروره نه یم ستا د بېلتون اور مي پر زړه بل سو، اوښکي مي را ایله سولې نو مي مخ در څخه وګرځاوه، ما ویل چې ظریف جان په سفر ځي زړه یې نری دئ نبایده چې دغه زما اوښکي ووینې غم به یې یو په دوه سي.

لنډه دا چې کاروان رهي سو د هندوستان پر خوا، مابۍ پر بام وختله، پسې ګوري ژاړي هه هه خو دوی تر ستر ګو نيهام سوله، نو مابۍ ناره پسې وکړه:

اوښانو وخورئ دا اوږدې غاړې دا لوی ورنونه
پرون لا دا مال ظريف دلې و – نن خو مو تېر کې تر ولاتونه
های های تر ولاتونه

مابۍ له بامه راکښته سوله، دغه شپه او ورځ تېره سوله په دا سبا غرمه چرت وهي چې خدايه ظريف خان د چول مزلونه وهي، حلق بې ځنګه وچ کلک وي، پر مخ بې د سفر خاوري پرتې وي شونډان بې سپېره وي، اوبه به نه وي، نو يې په ژړا کې ناره وکړه :

که دوري دوري د هند پر لوري – خدايه نرۍ اوريځ پيدا کې
چې شکر ترې وای باران ترې اوري – های های باران ترې اوري

مابۍ نو دالته پرېږده کاروان او ظريف خان دوی پسې راواخله، ظريف خان او خدری او کاروان برابر راغله د هندوستان علاقې ته که ګوري په مخ کې يو رود دئ ډک بهېږي، پر يوه خوا لار د تېرېدو نسته يو پل دئ خلک پر تېرېږي، کاروان چې پر پله راغی، پلوان و مخې ته ورته را ولاړ سو ويل ودرېږئ د پله محصول راکئ بيا تېر سئ چې د پله محصول رانه کئ، نه مو پرېږدم چې تېر سئ.

خدری ورته تينګ سو ويل عجبه دي وکړه دا دونه عمر مي غم نه درکاوه اوس غم غواړې، يوه پيسه نه درکوم و ظريف خان ته يې مخ راواړاوه ورته وې ويل چې ظريف خانه ګوره عمري به موږ او ستا پلار تېرېدو ولاکه هيچا غم راڅخه اخيستی دئ، دا پلا چې ته راسره يې په نظر يې هلک ورغلې غم درڅخه غواړي. ظريف خان هم ورته تينګ سو و پلوان ته يې ويل عجبه دي وکړه زه خو هم د هغه پلار زوی يم، ته نه يې خبر چې دا د ظريف خان کاروان دئ، يوه کسيره ولاکه درکم، که جنګ کوې هم دغه ميدان دئ که باچا ته دي ځې هم درځه زه پخپله درسره ځم، پلوان ويل درځه باچا ته راسره.

لنډه دا چې ظريف خان او د پله خاوند دواړه باچا ته سره ولاړه، کاروان

تېر سو، خدري فکر وکې چي داغه دي وار دئ که دي په بلا کښېوست، کوښښ کوه که دي په باچا مړ کې يا دي عمري په بندي کې، خو دستي يې متهان تينګ کړه پسي ورغی، "ظريف خان خو هر ګوره ښايسته و، لکه شاهزاده ښه اخلاق يې درلوده، او په دغه کوچنيوالي چي اوس نو ځواني ته نژدې و، ډېر غير تمن او خورا غليچ او زوره ور او پهلوان غوندي و"، خو چي خدري ورغی کې کتل چي ظريف خان بيا باچا پر چوکۍ کښېنولی دئ، خدري په يوه ترخ کي ځان ورتېر کې، باچا ته يې ويل چي عرض لرم، هغه ويل ووايه څه عرض لرې؟ خدري ورته وويل چي پټ چي بل څوک نه وي درته وايم باچا ويل ښه دئ، خدری يې ځان ته نژدې راووست، ورته ويل يې ښه په غوږ کي راته ووايه.

خدري پټ په غوږ کي ورته وويل چي دغه ظريف خان نومېږي، ډېر شرير او جنګړه او سرشوخه سړی دئ، د هيڅ حکم نه مني دا پنځوس کاله موږ پر دغه پله او لار تېرېږو دغه محصول ورکوو، اوس دی شېر کی کېږي، وايي چي زه د باچا غم نه ورکوم او دا لا څه ستا د پاچهۍ هوا يې کړې ده، دوه سوه ښکنځل او پوچ و رد يې درته وويل، باچا چنداني غوږ پر ونه نيو، مګر په زړه کي خوشحاله سو چي ښه دئ دا ښايسته، توريالی او غښتلی ځوان دئ اوس بې په دغه بانه راوګر ځوم، لنډه دا چي باچا خدري ته آفرين ورکی رخصت يې کی، ظريف خان يې نظربنده کی، خو ظريف ښه ځوان و، نو په دغه سبب يي خورا ښه ساتی، نوکران يې ورسره کړه، چي ته خپل عيش کوه زما په پاچهي کي چي دي هر څه زړه غواړي درته اجازه ده، ته لکه زما زوی، مګر هو پر بله خوا دي نه پرېږدم چي ته ژوندی يې دغه دي ځای دئ، ځې به نه[٢].

ظريف خان باچا ته وويل چي ستا حکم مي پر غبر ګو لېمو منلی دئ،

---

[٢] څوک وايي چي د ظريف خان د بند سبب دا و، چي خدري د حکومت يو جام غلا کی، چي را رهي کېدی، د ظريف په بار کي يې پټ چخ کی، بيا يې رپوټ وکی، چي ظريف خان غلا کړېده، په بار کي يې ده، په هغه وخت کي دا قانون و، چي چا به شي غلا کی، غل به د مال والا مريی و، نو ځکه يې ظريف خان بندي کی.

مګر دغه سړی چي ستا پر غوږو درپرېووت اکا مي و، دونه مي ایله که چي یو وصیت او د خپل عیال سپارښت پر وکم، باچا ورته وویل چي ښه دئ ورسه، باره یې دوه کسه سپاهیان ورسره کړه ظریف خان چي راغی، که یې کتل خدري بیا ټول کارونه کړي دي، کوچ و بار دئ مخ د کور پر خوا را رهي کېږي، ډېر خوشحاله دئ، ظریف خان ناره پر وکړه :

که دوري دوري د کور پر لوري – ته چي کور ته ورسي ببی. به مچ کې

لال ورور به ګوري – های های لال ورور به ګوري

یعني زه خو بندي سوم، زما د عیال سره به ښه کوې، خدري په جواب کي ناره پر وکړه :

که دوري دوري د کور پر لوري – چي کور ته ورسم ببی. به مچ کم

لال به کړم وای د سترګو توري – های های د سترګو توري

چي یعني ببغمه اوسه، ښه به یې نازوم، ظریف خان بیا د ټینګار له پاره ناره پر وکړه :

که پند که پند که خدریه پند که – دا زما خبري پر زړه قلم که

که کور ته ولاړې بي بي لعل بېګ وای – د خپل عیال وای سره سم که

های های سره سم که

چي یعني بي بي او لعل بېګ کوچنیان دي، لکه خپل اولاد داسي بې ساتې، خدري فکر وکی، چي ظریف خان دي مرګ له راوستلی و، او اوس دي د زړه ډاډ ورکی، دا خو ښه نه سوه، یه راسه پر زړه یې مالګه ورتوی که چي ښه ترا خپه او دق سي او سل ور ولوېږي نو یې ناره پر وکړه :

نه به یې پند کم، نه به یې د زړه پر سر قلم کم – که د دې واري کاکا ولاړی

دا ستا عیال به زه در بدر کم – های های ښه در بدر کم

خدری ځني رهي سو، د ظریف خان خورا زړه درد وکی، چي دا لکه چي ګرده خدری دئ چي دا پسات یې در وکی، نو وروسته یې ناره پسې وکړه :

په ما دي کړي په تا دي وسي – زما زړګی دي توري او به کی

توري او به تر سخرو وزي غوغا به وکي – های های غوغا به وکي

چي یعني راته معلوم سوې، چي دښمن یې، که خدای در ایله کړم بیا

به سره ګورو، خدري غوږ پر ونه نیو خورا خوشحاله د کاروان سره را رهي سو، ظریف خان بیرته باچا ته راغی، باچا نوکران ورسره کړي دي پر باچا خورا ډېر ګران دئ، خپل سیل و تماشا کوي، مګر نه په پوري کېږي، ظریف خان نو دالته پرېږده خدری پسې راواخله.

خدری چي را رهي سو هله هله مزل پر مزل د نکل کار دئ دا دئ خپل وطن ته را ورسېدی، بېغ سو چي د خدري قافله راغله، د مابۍ دمخه لا دوې سترګي څلور وې دا بېغ چي يې واروېد روح په ننووت، د کلا پر بام وختله لار يې ګوري، قافله رانژدې سوله، ظریف خان نه معلومېږي، د مابۍ د توانه ووتله ناره يې وکړه:

سترګي مي ووتې پر دغه لاري - سترګي مي ووتې پر دغه لاري
ظریف ته ګورم کې رابنکاره کې د ظریف وای د اوبنو غاړي
های های د اوبنو غاړي

قافله بنه رانژدې سوله، ظریف نسته مابۍ بیا ناره پر وکړه:

کاروان باشي يې د کاروان - سردار يې د کاروان پر لمبر ولاړ يې
خلک پوبنتنه د سود و زیان کي - زه خو پوبنتنه د ظریف خان کم
های های د ظریف خان کم

د خدري د بېري چا جواب ورنه کی، په دې قافله کي د ظریف خان مريی و، مابۍ پر ده ناره وکړه:

که خپله خپله سري خپله - احوال يې راکه ظریف مي څه سو؟
د چا ده سو به د چا ده سلمه؟ - های های د چا ده سلمه؟

چي يعني که پخپله په خبر يې هم حال راته ووايه، او که د بل د خولې په خبر يې هم حال راکه، مريي ناره پر وکړه:

که خپل یم خپل یم سري دي خپل یم - زه چي راتلمه ظریف ژوندی و
احوال بې درکم د خپله سلمه - های های د خپله سلمه

دا چي خدري واروېدله د مريي سر يې غوڅ په توره پرې کی، ساوڼ نوماند د ظریف خان بل مريی و، مابۍ پر دغه ساوڼ ناره وکړه:

که توره توره ساوڼه توره - ما په خدای ولوباتلې ظریف ژوندی و، که و په ګوره
های های که و په ګوره

ساوڼ فکر وکی چې هغه بل مريي رشتيا ورته وويل سر يې ورپرې
کی، نو ما به هم مړ کي که رشتيا ووايم، نو يې په جواب کي پر مابۍ ناره
وکړه :

نه د کاروان سر يم نه د کاروان پای يم – تا په خدای کړم بزه ګاره مابۍ خوري
مخ دي پټ په مرغلرو خدری باچا سو – های های خدری باچا سو

چي يعني زه لاغرضه يم، په کاروان هيڅ غرض نه لرم، مګر خدری
خان سو، مابۍ پر ساوڼ ناره وکړه :

که توره توره ساوڼه توره – راغلی مه وای د هند د لوره
اول مي هيله اميد پر خدای و – اوس راوخته د هره لوره

بيا يې پر خدري ناره وکړه :

که توره توره خدريه توره – راغلی مه وای د سند د لوره
ښايسته ظريف دي څه کئ – چي درسره و د خپله کوره
های های د خپله کوره

خدري په جواب کي ناره پر وکړه :

کاروان باشي يم د کاروان سردار يم – د کاروان پر لمبړ ولاړ يم
ظريف مي مړ سو د نس په خوږو – په دواړه لاسو مي کي د سنګو باره زه ځني راغلم

چي يعني ما په دغو لاسو ښخ کی، کاڼي مي پر واچول د نس په خوږو
مړ سو، مابۍ چي دا وارويدله زړه يې درد وکی پر خدري يې ناره وکړه :

سر دي ګنجي دئ، نوم دي خدری دئ – راغلی مه وای د هند له لوره
اول مي هيله اميد پر خدای وه – اوس دي راوايسته د هره لوره

خدری په سر پک او په رنګ تک تور و، د خپل کاروان په اړولو
بوخت سو د ظريف خان يو بل سړی و، فکر يي وکی چي دا خو مينه ده زهره
بې وچوي، په يوه ترڅ کي يې ناره پر مابۍ وکړه :

که پېر کي پېر کي خدری پېرې کي – دروغ مي ښه که رشتيا مي پرېږدي
ما به رشتيا خبري وکړای – خدری ظالم دئ سر به مي پرې کي

لنډه دا چي مابۍ هر څونه چي بې ژړلي وي ژړلي بې وي، مګر په دغه
ناره يې لږ څه زړه ډاډه سو، ويل توکل پر خدای دئ، ګوندي ژوندی وي، او

ژوندی دئ، نو ګوره چي خدري ظالم په څه تکه کښېیستلی دئ؟

خدري کاروان واړاوه، خورا خوشحاله دئ، ساوڼ یې راوغوښت آفرین یې ورکی، ورته وې ویل:

هوښ کوه چي تر خوله دي ونه وزي بې بي تا ته درکوم، اوس نو خدري ته د کور سر خالي سو، د ظریف خان پر میراث کښېنوست، چي دغه مال یې سره ګوښه کی نو یې حکم وکی چي که د هند له لوري کم سړی یا مسافر کلي ته راتلی مې پرېږدئ، او نه دي د دې کلي څخه څوک هند ته ځي، د خدري مطلب دا دئ چي ګردسره د ظریف خان پته ورکه سي، نه سي معلوم، پس له دغه خدری را ولاړ سو کمبله یې واچوله چي ظریف خان مړ دئ، درې ورځي یې پاتا واخیستله، خلک ځي و راځي، دی د ظریف په ویر ځنګېږي، مقصد یې دا دئ چي د مابۍ و زړه ته ولوېږي، او ما مېړه کي.

پاتا چي خلاصه سوله خدري پر مابۍ مرکه وکړه چي ما وکه. هغې په جواب کي ورته وویل چي بېله مرګه دي ولاکه وکم، او بې مرګه ولاکه ستا ګوتي ما ته راوړل سي. بله شپه یې بیا مرکه پر وکړه، بیا یې مرکه پر وکړه، دې نه قبلاوه، بله شپه لوی سهار دئ د خدري ظالم د توانه ووتله راغی په خپله یې پر مابۍ ناره وکړه:

که صادق دئ صبح صادق دئ – پر زړه مي دق دئ مابیه راسه خدری مېړه که
خدری د درست کلي ملک دئ

مابۍ په جواب کي ناره پر وکړه:

که توره توره خدریه توره – یو شل پنځه ویشت کاله وګوره
که دا ورک ظریف رانه غی – بیا په حلاله نکاح مي بوله

مابۍ د "یه" پر میدان ورته ناسته ده، چي ولاکه دي مېړه کم، چي اسمان مځکي ته راسي، خدری هم راولاړ سو مابۍ یې د کوره وشړله، څه چي یې درلوده ځني وایې خیستله او لال یې د کبابي په لاس ورکړ، چي تمامه ورځ دي اور ته ولاړ پیک دي وهي.

ببۍ یې واخیستله د ساوڼ مریي په لاس یې ورکړه چي دا یې ستا، ساوڼ یو تک تور د ظریف خان مریی و، د دې ساوڼ دوې نوري توري حبشۍ ماینې وې د دې سره یې یو ځای کړه، مګر ساوڼ لږ څه نمک په

حلاله و، د ببۍ سره يې د خدري په غلا په پټه خورا ښه کوله او د لال سره کبابي ډېر بد کول.

مابۍ هم خوار کۍ دالته يوه د ځوزو کوډل جوړه کړه يوازي پکښې اوسېږي، يو د ظريف خان چلم يې لاس ته ورغلی دئ دا يې ورسره اخيستی دئ، نور يې نو هيڅ نه درلوده، خپل او د ظريف د بېلتانه غم يې ګاله.

يوه ورځ بېلتون زور پر وکړ د کوډلي څخه راووتله د کلي دباندي پر دښت يوه هوسۍ ګرځي، پر دې يې ناره وکړه :

که سپيني سپيني هوسيه سپيني – د کمه راغلې اې شاهوسيه

دغه کبلی به دي ښکاري وولي – داسي به ګرځې لکه مابيه

بير ته راغله په کوډل ننوتله، صبر يې وکړ خپل غمونه ګلوي، ژاړي دغه سپين مخ يې لکه ژړ زعفران داسي سو، هه هه څه ډېر کلونه تېر سوه، په سر کي يې ويشتلي پيدا سوه، يوه ورځ بيا لکه لېونۍ کلي ته راووتله د ظريف خان غم خورا زور پر کړی دئ پر کلي والو يې ناره وکړه :

زده زده يم خلکو زده يم – سينه کبابه پر اور پرته يم

که په ظريف پسې مړه نه سم – ټګه مي بولئ حرامزاده يم

خو هيڅا د خدري د بېرې چرت نه پکښې وواهه، هغه د ظريف خان د ملنګ خورا زړه پر وسو پټ راغی مابۍ ته يې وويل چي ته يو خط راوليکه خپل احوال او د لال او د ببۍ خواري، او د خدري ظلم پکښې وليکه را يې که، په هر ډول چي وي، زه به هندوستان ته ولاړ سم، د ظريف خان د مرګ او ژوند حال به معلوم کم، دا خط به ور کم، او ستاسي حال به که ژوندی و، ور ته ووايم، خو مطلب دا دئ چي هر چم چي وي ګوندي رابه سي او که مړ وهم به يې حال راوړم، ستا هيله او اميد يې پر خدای، مابۍ ډېره خوشحاله سوله دستي يې خپل ټول کيفيت وکيښ کاغذ يې ملنګ ته ور کی، ملنګ خط واخيست اوس نو د خدري څخه بېرېږي چي خبر نه سي، دا خط ونه ويني، "ولي خدري ښار کاوه چي څوک وهندوستان ته د دې خوا ولاړ نه سي، شاوخوا يې خلک ګومارلي دي، ګوري فهم کوي چي څوک تېرېږي، پکښې ګوري تلاښي پکښې کوي چي مابۍ خط مط وانه ستوي"، ملنګ خط واخيست د چوټي تلی يې وسپخاوه خط يې د تلي په مخ کي کښېښود،

بیر تـه یې پـر تلي مېخونـه ووهلـه، چوتي یې پـه پښو کـړې، ګـډېږ یې واغوستله پټ په نیمه شپه را رهي سو، هله هله د نکل کار دئ څه سر دي ګرځوم څو وهندوستان ته راورسېد، پوښتنه پر پوښتنه څو سند ته راغی، د ظریف خان درک یې ویوست خبر سو چي ظریف خان نظربنده دئ، مګر خورا په عزت او په استراحت دئ. ډېر معتبره دئ څوک په آسانه نه سي ورتلای اوداسي زوره ور او توریالی او غښتلی پهلوان ځني ختلی دئ چي د باچا په پاچهي کي نسته، ملنګ هم وس وکی په یوه ترڅ کي یې و ظریف خان ته ځان راورساوه، کې کتل یو مجلس دئ، خورا ساز و صحبت دئ، ظریف خان ناست دئ شاوخوا نوکران ورته ولاړ دي، مست ځوان دئ، پاخه حد ته رسېدلی دئ، ملنګ چي ورته وکتل ظریف خان یې وپېژانده ناره یې دلیري پر وکړه :

خدای خو دي وچ کي هغه زړونه – چي په پردي ولات کي ساز کي سوبتونه

ببی او لال مي دواړه د کبابي او د ساوڼ کي خدمتونه

دا ناره چي ظریف خان واروېدله، پوه سو چي حال بل دئ، خدري ظالم پسات کړی دئ، دستي یې پر یوه نوکر ږغ وکی، چي ورسه هغه ملنګ راوله، ملنګ یې راووست، ملنګ هغه کاغذ د ظریف خان په لاس ورکی، ظریف خان چي کاغذ خلاص کي چي وې لوست د مابی د خوا او پر ککری یې اور بل سو تر سترګو یې پر پر اوښکی راتوی سولې، خو د غیرت یې زیات څه ونه ویل، ملنګ ته یې ستړی مه سې وکړه، خورا عزت یې ورکی و نوکرانو ته یې وویل چي دغه ملنګ به خورا ښه ساتئ، عزت به ورکوئ، لاس پر نامه به ورته ولاړ یاست.

دغه ورځ په چرت کي پر تېره سوه، ماښام تر سهاره لټ پر لټ اوښتی، د خوابدی خوب نه ورتی، چي سهار سو راغی د باچا د سرای و دروازې ته ودرېدی، ناره یې پر وکړه :

که سهار سهار دئ – باد بلغار دئ – باچا ته وا راووزه

پر بندیانو سوی د کور احوال دئ – های های د کور احوال دئ

باچا خبر سو، ظریف خان یې راوغوښت ویل خیر؟ ظریف خان دا خپل کاغذ ورته ونیو، چي زما پر ببی او لال او مابی دغسي ظلمونه او جبرونه

سوي دي، ما ته رخصت راکه چي ځم. باچا چرت واخيست چي اوس يې ځنګه ايله کم، نې زړه کېږي، زلمی دئ، وايي چي بيا به په جنګو او مقدمو کي په ښه راسي، او د ده ناز هم پر مځکه نه سي اچولای، خو جواب يې ور نه کی، په حرم سرای ننووت، ظريف خان يو ګړی و دروازې ته ولاړ و باچا نه راووت ده بله ناره پر وکړه :

سهار سهار دئ باد بلغار دئ - باچا ته وا راووزه بنديان ايله که

د دې بنديانو څونه آزار دئ - های های څونه آزای دئ

دې نارې د باچا په زړه کي لږ څه تاثير وکی، راووت د ناچارۍ يې رخصت ور کی، مګر پټ يې دستي سړي ولېږله چي ورسي د رود پل ونړوي، چي ظريف خان پر تېر نه سي او بير ته راوګرځي، ولاړ نه سي. ظريف خان شپه تېره کړه، سهار يې خپل کاروبار سم کی، دا دئ مخ د کور پر خوا را رهي سو، رود ته چي راغی که ګوري پل نسته نړېدلی دئ، نو يې پر درياب ناره وکړه :

که تريخ دئ تريخ دئ کاهي درياب مي تريخ دئ

دغه ظريف نه په ګډېږي، څوک چي بې زويه پاچهي که احوال يې تريخ دئ

بير ته راوګرځېدی پوه سو چي دا چم د باچا دئ، دونه خواري يې راته جوړه کړه، نو راغی پر باچا يې ناره وکړه :

که کوته سوې د ظريف خان بخته کوته سوې

قول به يو و د پاچهانو - پر ظريف چي راغی نو دولوزه سوې

ظريف خان ور ته ويل چي ولي؟ يو وار دي رخصت راکی بيا دي په مخ کي پل راته ونړاوه، د پاچهانو خو يو لوز وي. باچا ور ته وويل چي نه مي زړه کېږي، چي ولاړ سې، زما دوې خورا ښايسته لوڼي دي هغه به ماښام در ولېږم ويې ګوره هره يوه چي ستا خوښه سوله هغه يې په حلاله نکاح ستا، خدای به دلې عيال او لوڼي و زامن در کي، زيا ته نو څه غواړي، يا ته مه ځه کده دي راوغواړه. ظريف خان د خدابدۍ سره چوي هيڅ جواب يې باچا ته ور نه کی، د باچا خيال سو چي پټه خوله اقرار دئ لکه چي خوښه يې سوله، چي زما لوڼي يوه وکي. دغه ورځ تېره سوه، ماښام د باچا غبرګي لوڼي خورا سنګاري سوي دي ځانونه يې يو غوړپ کړي دي. دا دي ځراغونه په لاس د

ظریف خان کوټې ته ورننوتلې، نجوني یې هره یوه مخ ته دوري دوري کېږي، یوه وایي زه به یې خوښه سم بله وایي زه به یې خوښه سم، د ظریف خان په زړه کي خپله مینه سپینه مابۍ ګرځي او د بي بي او لعل بېګ غم ورسره دئ، په دوی کي چرت نه وهي، سترګي یې ځني پټي کړي دي، دې نجونو پیغلانو ناره پر وکړه :

که ښاد سوې ښاد سوې – ظریفه ښاد سوې
سر راپورته که د خابه، بخت دي بیدار دئ – ته د باچا د لوڼو یار سوې

ظریف خان په جواب کي ناره پر وکړه :

که ښاد یم ښاد یم اې نجونو ښاد یم
تاسي زما خوندي مندي نن زه د خپلي مابۍ په یاد یم
های های مابۍ په یاد یم

نجونو بیا ناره پر وکړه :

که خوار سوې خوار سوې ظریفه خوار سوې
ته مي بندي د هندوستان سوې ، مابۍ که هېره ظریفه یاره
ته د باچا د لوڼو یار سوې

ظریف خان په جواب کي ناره پر وکړه :

که لوري لوري د باچا لوري – په کار مي نه دي دغسي نجوني
زما یادېږي سپینه مابیه – سپیني منګلي

د باچا لوڼو فکر وکی چي دی مین دئ، د ده په زړه کي د مابۍ مینه ده پر موږ یې باز نه کېښېني، ګر دسره راته ګوري لا نه، نو بیر ته نا امیده د ظریف خان د کوټې څخه راووتلې، راغلې و پلار ته یې وویل چي ظریف خان د مابۍ په مینه کي ډوب و، بالکل یې موږ ته نه کتل او نه یې سترګي راواړولې، باچا فکر وکی چي دا دو مي هم ونه چسپېدی، "څه سر دي ګرځوم تا ته دي خدای نېکه ورځ در کي" دغه شپه تېره سوه سهار سو، ظریف خان بیا باچا ته ورغی ورته وې ویل چي مه کوه ازار مه اخله، د مسافرو ازار نه دئ ښه، رخصت راکه چي ځم.

باچا ورته وویل چي دا دونه عمر ما ستا سره ښه کول د پاچهۍ اختیار مي در کړی و، تا نو زما څه خدمت وکی؟

ظریف خان ورته وویل چي تا کم خدمت رافرمایلی دئ چي مانه دئ کړی؟
باچا ورته وویل چي اوس خدمت درفرمایم.
ده ورته ویل پر غبرګو لېمو وایه څه خدمت دي دئ چي وې کم؟
باچا ورته ویل چي ته ښه دلاوره، زړه ور، غښتلي پهلوان ځوان یې ما هم د یوې ورځي له پاره نازولې او ساتلې مي ته به ځې پلانی راجا به رایتوې یا بې وژنې او سر به یې راوړې. دابې تانه کېږي، دغه کار چي دي وکی وروسته به دي نو د زړه د اخلاصه رخصت کم، دنیا به هم درکم سړي به هم درسره کم، کور ته به ولاړ سې.
ظریف خان ویل پر دواړو سترګو، ظریف خان خو ډېر هوښیار او باتدبیره سړی و، نو یې باچا ته وویل چي ته به ما ته دېرش توري، دېرش اوښان او دېرش دېرش کلني غښتلي غیر تمن او تر سر تېر ځوانان او شپېته سندوخان او د شپږو میاشتو غنم نفقه یې داسي غنم چي د (۹) میاشتو د کښتې پاخه غنم وي راکوې، هغه دئ زه به ولاړ سم چاره به یې وکم.
باچا ویل ښه دئ، دستي یې دېرش غښتلي اوښان، دېرش دېرش کلني ځوانان او دېرش دېرش منه غنم یعني د سړي پر سر دېرش منه غنم چي د نو میاشتو د کښتې وه او شپېته سندوخان یې ورته تیار کړه، ظریف خان ته یې ورکړه. ظریف خان دېرش منه غنم په یوه سندخ کې، یو ځوان په بل سندوخ کي واچول، په دغه ډول دا شپېته سندوخان په غنمو او ځوانانو ډک کړه، پر ښه مایه اوښانو یې د شپې را بار کړه چي بې خدای ماسوا هیڅوک نه سوه په خبر او نه چا ولیده. سندوخانو ته یې کلپونه ور واچول کیلی یې پخپل جېب کي واچولې، څو کسه ساروانان یې د اوښانو سره کړه. مارونه یې کشوي خو مدعا را رهي سوله، هله هله چي ماښام سي واړوي، سندوخان خلاص کي هغه ځوانان ځني راووزي ډوډۍ وخوري سهار بیر ته په سندوخانو ننوزي کاروان بار سي. "خو هله هله مزل پر مزل د نکل کار دئ څه سر دي ګرځوم کور دي په الله سره ودان سه" څو دا دئ د هغه راجا ښار ته راورسېدل، د ښار په دروازه چي ننوتله دروازه وان یو خورا هوښیار هندو و، په سترګو هم ړوند و، د دې بارو چغهار یې واروېدی یو وار یې وویل چي

په دې بارو کې یا ډېرش کلني ځوانان دي یا د نو میاشتو غنم دي. ظریف خان فکر وکړ چې تلاښي وانه خلې دستي یې په لاس کې څو روپۍ ورکښېښوولې چې ړغ مه لره، هندوهم روپۍ واخیستلې زیاته یې ړغ ونه کړ، ظریف خان سره د قافلې ښار ته ننوت د راجا و سرای ته نژدې یې په یوه کاروانسرای کې واړول، سندوخان یې کښته کړه، ظریف خان یوه کوټه ونیوله پکښې اوسي، سوداګر راځي چې څه شي یې راوړي دي، ظریف خان ورته وایي چې زما مالونه ډېر سنګین دي، اوس یې نه خرڅوم ستړی یمه، لسمه پنځلسمه ورځ باد یې زه سودا کوم، اوس ولاړ سئ.

ظریف خان د ورځې او د شپې شاوخوا څار کوي څو دریمه ورځ باد یې د باچا د حرامسرای او د پیره دارانو ښه درک وایستی، څلرمه شپه یې په نیمه شپه کې د ټولو سندوخانو سرونه خلاص کړه ډېرش سره ځوانان یې ځني راوایستله، توري یې په لاس ورکړې ظریف خان دمخه دوی په پسې دي، هله هله څو اولې پیرې ته ورسېده چې پیره دار ړغ پر کاوه د روه یې په توره وواهه درې ټکره یې کی، دهغه پیره دار پر ځای یې خپل یو ځوان ودراوه. څه سر دي ګرځوم څو تر حرم سرای پورې یې ټوله پیره داران مړه کړه، خپل سړي یې پر ځایو ور ودرول، ظریف خان یوازې حرم سرای ته ورغی راجا او ماینه یې دواړه مجبور کړه په سندوخانو ننوتل، او ظریف خان د شپې نوم ځني زده کی، سر یې پسې کلپ کی، پر خپلو سړو یې پټ ړغ وکی چې در واخلئ سندوخان، دستي مست ځوانان تر لاندې سوله، سندوخان یې راواخیستله، برابر یې کاروانسرای ته راوړه، خپل سړي چې د پیره دارانو پر ځای یې درولي وه ټوله ورسره راغله، دستي یې خپل بارونه سره سم کړه، بیرته یې هغه ځوانان په هغو سندوخانو کي واچول. یو ظریف یو دو کسو نورو اوښان مهار کړه، په دغه شپه د ښاره راووتله، د ښار په دروازه کې یې د شپې نوم ورته ووایه را رهي سوله، هله هله دغه شپه یې مزل وکی، دا بله ورځ او شپه یې مزل وکی، څو دا دئ "د نکل کار دئ" باچا په مخ کې یې کاروان کښته کی، ظریف خان فکر وکی چې راسه اوس نو باچا قسمي که، بیا به دي سربېره پر دې نه پرېږدي، نو یې باچا ته وویل چې ستا کار مې وکی اوس نو رخصت راکه چې ځم.

باچا وویل څنګه دي کار وکئ؟

ده ورته وویل که ته قسم راسره کوې نو زه به ستا د زړه داړ وکم، چي زړه ته دي ولوېږي.

باچا ویل زما قسم دئ درسره، که دي دا کار کړی وچي رخصت دي کم.

باره ظریف سندوخان خلاص کړه، هغه د ده دښمن راجا او ماینه یې ورته راوایستله، هغه نور ځوانان هم ټوله روغ رمټ د سندوخانو راووتله، باره یې ظریف خان ته آفرین ورکی، ډېره دنیا یې ورکړه دستي یې آسان ورځین کړه سړي یې ورسره کړه ویل تاسي د ده نوکران یاست، ظریف خان هم دستي مخ د کور پر خوا را رهي سو، راغله پول تیار سوی دئ، پر لاري یو لوی غر دئ شنې کوتري پکښي ګرځي، د هې خوا شهین پسي راوالوت، دا کوتري یې پسي واخیستلې، د ظریف خان خپل خور و ورور و مابې ور په یاد سوله چي دا کټ مټ لکه د خدري ظلم نو یې ناره وکړه:

ول که پوري غر درې درې دئ – تړلي په پنجرې دئ

کوترې راغلې شهین پسې دئ – څوک چي نه لري د موره

د هغو زړګي وي وای – های های ذرې ذرې دئ

چي یعني څوک چي د موره زوکړي ورور نه لري یو سر وي خود بې دغسي زړه ذرې ذرې وي.

(څه سر دي ګرځوم، کور دي ودان سه د نکل کار دئ) دا دي راغله تر خپله ښاره پوري راورسېده، دباندي تر ښار یې واړول، ظریف خان ښار ته ننووت، د یوه کبابي دوکان ته ورغی، چي ګوله ډوډۍ او کباب وخوري، کبابي ته یې ویل کباب راکه. کبابي و مزدور ته ورږغ کړه چي ها ارمچکه ! شرک سو په یو بنچه سیخانو یې وواهه، ویل ورسه د هغه سړي لاس ورپرېمینځه، ظریف خان چي ورته وکتل چي دا هلک یې ناحقه څنګه وواهه باره یې وپېژانده چي که و دغه لال دئ، د ظریف خان زړه خورا درد وکړ، مګر څه یې ونه ویل، خیر خو ډوډۍ یې ورته راوړه، ظریف خان ورته وایي کښېنه هلکه ته هم زما سره ډوډۍ وخوره، لال ژړغونی سو، ویل بیا مي استاد وهي، ځني تېر سو، ظریف خان ډوډۍ پرېښووله د زړه د جوشه یې

ناره وکړه:

که تا که تا که لالیه تاکه – که مي دا ستا غور ونه کی
پر ما یې سپینه مابۍ تلاکه – های های مابۍ تلاکه

لال نه وپوهېدی چي ظریف دئ، د کبابي زړه په غور ځنگ کښېوتی، چي دالکه چي ظریف دئ. ظریف خان ولاړ، لال یې کبابي ته پرېښود، ظریف خان راغی پر آس سپور او رارهي سو، که گوري له لیري یې ببۍ په سترگو سوه، چي د کاله دباندي په خورا زهیر وضعیت گرځي، چي ظریف خان یې ولید څه شک یې په ورسېدی، نو یې ناره پر وکړه:

که په ورو ځي د آس سپور په څه شان ځنگه ورو ورو رځي
ما په خدای قسم درکړی چي ته په اصل په نسب څوک یې
های های په نسب څوک یې

د ظریف خان هم شک په ورسېدی، دوباره یې ناره پر وکړه:

که پوکي پوکي نجلیه پوکي
ما ته په خدای ولو باتلې چي ته په اصل په نسب څوک یې
های های په نسب څوک یې؟

نجلۍ ناره پر وکړه:

که څوک یم څوک یم سرېه څوک یم
تا په خدای ولو باتلم د میرویس لور یم د ورک ظریف جان خور یم
های های ظریف جان خور یم

دا ناره چي یې پر وکړه ظریف خان د آس څخه راکښته سو په غېږ کي یې ونیوله پر سترگو یې مچ کړه، آخر ته یې پوښتنه ځني وکړه چي څه احوال مو دئ؟ ته دلته څه کوې؟ لال چیري دئ؟ مابۍ څه سوه؟ ببۍ ورته ویل چي لال د کبابي مزدور دئ، داسي یې وهي چي توبه، زما دغه احوال دئ، مگر ساوې د خدري په غلا ښه راسره کوي او مابۍ هلته په یوه کوډل کي اوسي. اوس ېخي ضعیفه سوې ده، دا د خدري ظلم یې ټوله ورته بیان کی. باره ظریف خان ببۍ د ساوې کره راوستله، د ساوې کره یې ور ږغ کړه چي دا نجلۍ نه خرڅوئ؟ د ساوې خو دوې ماینې وې، د ببۍ سره یې ډېر بد کوله، وهله به یې، دې د ساوې ماینو ورته وویل چي خرڅوو یې، مگر په ډېرو

روپو يې ورکوو. ظريف خان ورته ويل چي دغه دئ يو مټ بتکۍ به درکم
زه بې بوزم.

دوی ورته ويل چي ښه دئ. بتکۍ يې ورکړې ببۍ يې رارهي کړه،
ساوڼ چي کور ته راغی پوښتنه يې وکړه چي ببۍ چيري ده، ماينو يې بتکۍ
او طلاوي ورته راواخيستلې، ورته وې ويل چي په دغونه طلاوو مو خرڅه
کړه، يوه آس والا بوتله، موږ ويل څه يې کوو ناحقه راباندي تاوان ده او ته هم
غريب وې نو مو ورکړه.

پر ساوڼ خو ببۍ خورا گرانه وه، د خدري په غلا يې خوراناژوله، باره
يې ماينو ته وويل چي د ظريف خان دونه نمکونه مو خوړلي دي تاسي يې يوه
خور ونه ساتله، خرڅه مو کړه، دستي پسي راووت چي ببۍ پيدا کړي، توره
يې کښلې ده راځغلي، د آس په پلو باندي، خو دا دئ په آس والا پسې
راورسېدی، ږغ يې پر وکړ چي چيري نجلۍ بيايې، د آس و مخي ته ليري
ورته راولوېدی، توره يې کش کړه، ظريف خان ناره پر وکړه :

که غلطه ساوڼه غلطه
ما په خدای ولو باتلې چي دا دي خور ده که دي اورته
های های که دي اورته

ساوڼ ناره پر وکړه:

که غلطه غلطه سپاره غلطه –نه مي خور ده نه مي اورته
تا په خدای ولو باتلم، ما ساتلې ده د ورک ظريف د نيته
های های ورک ظريف د نيته

لنډه دا چي ظريف خان و ساوڼ سره وپېژندل، ساوڼ راغی په پښو کي
ورولوېدی، روغبړ يې ورسره وکړ، ظريف خان پوښتنه څني وکړه چي څه
حال دئ؟ ساوڼ دا تېر حال ورته ووايه، ظريف خان ويل مابۍ چيري ده؟
مړه ده که ژوندۍ؟ ده ويل ژوندۍ ده مګر مرګ ته نژدې، درڅه هلته په
يوه کوډل کي ده اوس نو بيخي ضعيفه سوې ده.

ساوڼ و ظريف وهغې کوډلي ته راغله، مابۍ يې نه پېژني، "ولي چي
ظريف خان نوی زلمی و، اوس پوخ سړی سوی و"، مابۍ په حيرت ورته
ګوري، په آخر کي يې ورته وويل چي ته څوک يې، چي ببۍ درسره ده؟ ږغ

خو دي د ظریف خان دئ، ظریف خان ویل هو زه یم !
د مابې تر سترګو اوښکي را ایله سوې، ظریف خان یې په غېږ کي ونیو، سره کښېناستل په خندا یې ورته وویل چي ښځي سپین بږیری سوی یې، ظریف خان ناره پر وکړه :

که سپیني سپیني ما یه سپیني
هنداره واخله پکښې وګوره دغه ستا ماتې دي زما تر وېښتو سپیني
های های تر وېښتو سپیني

وروسته ظریف خان ساوڼ ته وویل چي ورسه هلته زما بار و بنه و نوکران دي دلته یې راوله، ساوڼ په یوه رپ کي ورغی را یې وستله، دلته خدری خبر سو، چي ظریف راغی، دی او نوکران مست مست ځوانان ایرغ بسته ورسره دي، دنیا یې هم ډېره راوړې ده، دستي یې الا کړه لال یې د کبابي څخه راووست، ښه کالي یې په واغوسته، اغا اغا ورته وایي، راغله ظریف خان له، ځان یې نابلده واچاوه، چي زه خو تا نه پېژنم. مابې ورسره ناسته ده، پر مابې په غضب سو، سترګي یې ورته چپه کړلې په قهر یې ناره پر وکړه :

که ګل کې ګل کې په هندوستان کي وچ لرګی ګل کې
هغه ښایسته ظریف دي هېر کی – چي اوس ته مینه پر سوداګر کې
های های پر سوداګر کې

بله ناره یې پر وکړه :

که ګل کي ګل کي پر کندهار ګل کي ښه ګلان ګل کي
دا هم د رب رضا ده، چي لېور ناست وي ورېنداري بل کي
های های ورېنداري بل کي

ظریف خان ورته ویل ظریف دغه دئ خدای راوست، پر ساوڼ او نورو نوکرانو یې حکم وکی چي تاسي لا ورته ګورئ، هغه خواري و ظلم خو در په یاد که ساوڼه، پر راحمله کړه، خدري ناره پر وکړه :

که نری دئ نری دئ د مسافرو زړګی نری دئ
که دي د دې واري کاکو پرېښود کاکو مي ستا د درګاه سپی دئ
های های د درګاه سپی دئ

ظریف خان ناره پر وکړه :

که کلک دئ کلک دئ د مسافرو زړګی کلک دئ

په خدای که کاکا تا پرېږدم چي تر غوږو مي د لال د سیخو شرک دئ

های های د سیخو شرک دئ

لنډه دا څه د سر ماغزه دي باسم تا ته دي خدای نېکه ورځ درکي، خدري او کبابي یې پخپله سزا ورسول، ساوڼ یې د خدري پر میراث کښېناوه، نور یې د خدري په وړوکو غرض ونه کی، مابې او ظریف خان په خپله کلا کي سره کښېناسته، سره کور و کهول سول و بس.

کیسې ولاړه پور ته

زه راغلم کـــور ته

# خوشکیار او شاترینه

یو باچا و[1]، د باچا دوې ماینې وې، د یوې ماینې اووه زامن وه د بلې ماینې څخه یې یو زوی درلود، چې خوشکیار[2] نومېده، خوشکیار تر ټولو ورونو پر باچا خورا ګران دئ ښه یې نازوی، او دی هم خورا هوښیار هلک دئ، باچا به تل په ده د پهلوانی کارونه زده کوله، خورا زوره ور ځلمی و، څه سر دي ګرځوم، د باچا اجل پوره و ناروغه سو، چې مړ کېدی وصیت یې وکی چې زما پر ځای دي خوشکیار کښېني، باچا مړ سو، خوشکیار یې پر ځای کښېنوست، دې ورونو یې فکر وکی، چې د بابا په ژوند هم دی پر بابا ګران و، او اوس هم دی د بابا پر ځای کښېنوست، یه د ده یو چاره په کار ده چې وسي، او په پټه یې باید چاره او علاج وکو، ولې په ښکاره خلک پر ده ولاړ دي، آبس خوشکیار یې د مېلې او ښکار په بانه غره ته بوت، یو ځای یې په شېله کې اتاک ونیو، چې د غره لمنې ته سره ووتله خوشکیار یې په منځ کې دئ، دګه فهم نسته یو وار هغه مشر ورور په چپلاخه وواهه، د هغې بلې خوا هغه بل په څاپېړه وواهه، د دې بلې خوا دې بل ورور په لغته وواهه، خوشکیار خو پهلوان لوی سوی و، نو هر یو چې به یې پورې واهه دوه ګزه ها خوا ته به غوځار سو، خو بیر ته تر اتاکه راورسېدل، مګر خوشکیار پوه سو، چې ورونه مې په مرګ پسې دي، نو پر آس سپور سو آس یې د کور پر خوا را

---

[1] د نکلچیانو دا دود دئ چې اکثره چې نکل شروع کوي نو وایي یو باچا و، که نه وي نو دا معلومه نه ده، چې باچا و که یه، او بل دا چې ښایي دا به د ملوک الطوایفی د وخت نکلونه وي چې هري طایفې یو مشر درلود.

[2] څوک وایي نوم یې خشکی و، د خوشکیار نوم آدم خان متهٔ خېل پر کښېښود، ځکه چې دی په اصل خیشکی او د کندهار د خیشکو په کلي کې اوسېده.

رهي كې، كور ته راغی مور ته يې دا قصه وکړه چې ورونه مې وژني نه مې پرېږدي، هر وخت چې وي، كه اوس مقابله ورسره کوم هم نه دئ ښه، اولنو متل كړى دئ وايي : "ورور وژلی ښه دئ كه ګومل پرې ايښی ښه دئ؟ وايي ګومل پرې ايښی ښه دئ نه ورور وژلی" يه نو ځم دا پاچهي او خاني يې و دوی ته پاته، زه يې نه كوم ته حق راپل كه، بل شی نه وړم يو مې دغه آس دئ يوه مې د پلار توره ده، مور يې ورته ويل چې ښه دئ زويه، پر خدای مې سپارلی يې، هر ځای چې يې خدای دې مل سه، زه به دلې يوه ګذاره ورسره کوم، ځو بيا ستا درک معلومېږي، او د ځای خاوند كېږې.

لنډه دا چې پر خپل آس سپور سو د پلار توره يې راواخيستله، مور يې دعا پسې وكړه چې ځه زويه ! هر ځای چې يې شا دې مځكې ته مه ورځه، پر دښمن دې لاس بر اوسه، خوشكيار را رهي سو پر لارې چرت وهي چې چيرې ولاړ سم، يو داسې يار مې پيدا كړى وای چې په زور او پهلواني كې زما جوړه وای، خو چرت يې وواهه باره يې وويل چې زما ګور(؟) كه و، آدم خان مته خېل دئ، ځم به هغه ته، ځه سر دې مخ د پېښور پر خوا را رهي سو، هله هله هله دا دئ د آدم خان مته خېل وطن ته راورسېده آس يې وړى دئ باره يې د آدم خان شپيشتو ته ايله كی، خبر نه دئ چې دا شپيشتي د آدم خان دې او د آدم خان نو دورې دې چې هر سړى پر ځني وهي، بلو[۳] راغی ويل ځوانه د آدم خان د مرګ دې اورېدلي دي كه ځه؟ چې آس دې پر خپل سر شپيشتو ته ايله كړى دئ؟ خوشكيار ورته وويل ځه وكم؟ آس مې وږى دئ؟

بلوخان يو ځه تر خوله تېرې ورته وكړې، خوشكيار پر مړوند كړه او بلوخان يې پور ته كی د مځكې يې وويشت، دوه ساعته بېسده و، چې راپور ته سو او د ده و زور او پهلواني ته ډوب ولاړ، زياتره يې ځه ونه ويل برابر ولاړ و آدم خان ته يې دا كيفيت ووايه چې داسې ځوان دئ، زه يې غوزار كړم، آس يې پخپل سر و شپيشتو ته ايله كړى دئ، او تا ته يې هم بد ويل.

---

[۳] وايي چې بلو نامی د آدم خان مريی و.

آدم خان ویل آس خو یې لا خیر مسافر دئ پروانه لري، مګر پیشرونه ولي وهي او بد ولي وایي؟ توره یې راواخیسته راغی که ګوري یو زلمی پښتون ناست دئ چې خور پر مینېږي، ښه غښتلی پهلوان معلومېږي.

آدم خان ورته وویل:

ځوانه! آس خو دي پروانه لري، چې ایله کړی دي دئ، مګر ښکنځل دي ولي کړي؟

خوشکیار وویل:

زه پښتون یم، ښکنځل نه کوم او نه مي کړي دي.

آدم خان هم لاس ور وغځاوه ویل آفرین پهلوان یې راځه کلا ته، ته زما ورور یې چې کلا ته یې بوت ډوډی یې ورته راوړه، ډوډی یې وخوړله وروسته آدم خان پوښتنه ځني وکړه چې ښه ځوانه د کم ځای یې؟ نوم دي څه شي دئ؟ په ختټه څوک یې؟

ده ورته ویل چې د کندهار د خویشکو یم، او په ختټه هم خویشکی یم، نوم مي "یار" دئ، آدم خان ورته ویل چې زه څلوېښت ملګري لرم ته هم زما ملګري یې، باره دي تا خوشکیار بولي، آبس دی په خوشکیار مشهوره سو، د پهلوانی نوم یې په ګردو متټه خپلو کي ولاړ.

لنډه دا چي آدم خان او خوشکیار خورا سره ګران دي، څو عمر باد یو شپه خوشکیار شاترینه په خوب ولیدله، چي په تریناوکي د یوه غټ ترین لور وه او خوشکیار یې لا دمخه د ښایست آوازه اورېدلې وه او د شاتریني پلار د خوشکیار پلار ته خط لیکلی و، چي زما لور ستا د زوی ده، ده په خوب ولیدله په دغه خوب کي شاتریني خپل ځای وروښود، چي زه د پلاني لور یم، خوشکیار په دغه خوب کي زړه پر بایلو، پر مین سو، سهار چي د خوبه راکښېنوست ښه یې پر بل ډول اوښتې ده چرت اخیستی دئ.

آدم خان چي ورته وکتل خوابدی په خیال ورغی، باره یې پوښتنه ځني وکړه چي خیر خو دئ؟ ولي خوابدی یې؟ ده برغ نه ورته وکی، آدم خان یوه پیغله خور درلوده، فکر یې وکی چي بې کوره دئ، البته په کور او کډه کي به چرت وهي، باره یې ورته وویل چي خوشکیاره، ما خپله خور نازو و تا ته درکړې ده.

ده ورته ویل چي پر ما دي لکه چي د یوه مازي پښتانه خیال وکی، زه په خور یاري او آشنایي نه کوم، ستا خور زما خور ده، زه یې نه کوم. زما دا د راستئ ملګري ده، سلامت اوسې.

آدم خان ورته ویل چي ولي دي نو طبیعت خراب دئ، رشتیا خو راته وایه؟ ده ورته ویل چي رشتیا دا ده چي برایي مي شاترینه په خوب لیدلې ده.

آدم خان ورته ویل درڅه چي درته رایې ولم! خوشکیار ورته ویل چي یه، زه یوازي پسې ځم، ته که ښه کوې یو مجنون آس دي راکه. آدم خان ویل یوازي به یې نه راولې، هغه د زوره ور سړي لور ده، پلار یې غټ د قوم مشر دئ، ګوره اوس به پښېمانه وي ده ویل ته بېغمه اوسه زه یې تمام یم. آدم خان ورته ویل ښه دئ چي مانه بیایې هغه دئ آس مي بوزه، (د آدم خان آس مجنون نومېدی).

لنډه دا چي آس یې ور کی خوشکیار ښه پر واړوله پر سپور سو مخ د شاترینې پر خوا را رهي سو، هله هله ورور ته دي ووایم د نکل کار دئ، دا دئ راغی د شاترینې کلي ته د یوې بوډۍ کره ورغی بوډۍ ته یې یو مټ طلاوي ورکړې چي ته به د شاترینې درک و خرک په لاس راکوې. بوډۍ ورته وویل چي دا خو آسانه خبره ده، زه پخپله هره ورځ ورځم د ګلانو دستې جوړوم ور وړم یې. مګر دا دئ چي شاترینه خو یې کرم خان ته ورکړې ده، اوس یې نو د واده شپې دي د واده کاروبار یې جوړېږي ودوي یې، خوشکیار هم خوابدی سو او هم یې قهر راغی، چي زما د مرګ یې اورېدلي خو بوډۍ ته یې ویل خیر دئ، زه به یوه دسته د ګلانو در جوړه کم ور یې وړه چي څه وایي؟ بوډۍ ویل ښه دئ، ده دستي یوه د ګلانو ګېډۍ ور جوړه کړه خط یې ولیکی چي زه خوشکیار یم چي ستا پلار ته ما ته راکړې یې، ما زړه درباندي بایللی دئ، پر تا مین یم. سر مي پر تا ایښی دئ څنګه یې کوې؟

دا خط یې د بوډۍ په پټه د ګلانو د ګېډۍ په منځ کي کښېښو، ګېډۍ یې د بوډۍ په لاس ورکړه، بوډۍ یووړه شاترینې ته یې ورکړه، شاترینې چي د ګلانو ګېډۍ دا پلا ولیده خورا یې خوښه سوله، چي پزي ته یې پورته کړه، بویوله یې د ګېډۍ په منځ کي کاغذ و، چي خلاص یې کی وې لوست،

پر وې ژړل اريانه سوله چي دا به څنګه سي؟ باره يې بوډۍ ته وويل چي دا ګيډۍ چا در جوړه کړېده؟ بوډۍ ورته وويل چي دا زما يو زوی دئ ملنګ دئ او ډېر ښه ځوان دئ. شاتريني ويل چي رايې وله، بوډۍ اريانه سوله چي څنګه يې اوس ور ولم که د شاتريني پلار يا کرم خان را خبر سو خو خونجاړي به مي را په هوا کړي، دربدره به مي کي، باره راغله پر خوشکيار يې ناره وکړه :

خوشکياره چي بوډۍ ته وايې موري
که کرم په ما خبر سو خوشکياره زما خونجاړي به څوک ګوري

چي په ما دي پسات وکی ادې ادې دي راته ويل اوس که کرم راخبر سو نو زما خونجاړي به څوک راساتي، خوشکيار ناره پر وکړه :

شابوډۍ تر کلا واوړه راواوړه
شابوډۍ ستا خونجاړي به زه راسره ګورم

چي ته بېغمه اوسه تا ته ضرر نه رسېږي، په تا به هيڅوک نه سي خبر بله ورځ خوشکيار د ملنګ په کالو کي چي کچکول ورڅخه و، د شاتريني دروازې ته د خير غوښتلو له پاره ورغی، شاترينه راغله ده ځان ور وښود باره بير ته شاترينه وګرځېده خوني ته ورغله د سندخه څخه يې طلاوي په پلو کي راواخيستلې راغله د خوشکيار په کچکول کي يې ورواچولې، خو خوشکيار کچکول له ځکي وويشت پر شاتريني يې ناره وکړه :

خوشکيار په کلي ځي کچکول بانه کي – شاتريني که خوله ورکړه
خوشکيار به دا کچکول دانه دانه کي – ارمان دئ ارمان دئ ارمان

لنډه دا چي طلاوي دانه دانه سولې، ده ورته ويل چي زما مقصد ته يې طلاوي مي نه دي په کار اوس يې څنګه کوې؟ دې ورته ويل چي زما مراد هم ته يې، هر رنګه چي يې ته کوې دغه يوه نن شپه سته، سبا شپه مي په زوره ودوي، ده ورته ويل خدای به يې آسانه کي چي داسي لنډ ګنډ دي ودوي نو په ملنګي او په چم سره نه سره ورځي، زه دي په وچ مټه او په سپينه توره ځني بيايم، که راسره ځې؟ شاتريني ورته ويل چي ته سر پر ما ايږدې نو زما سر دي هم تر تا جار سي، زه خو اول هم ستا وم اوس هم ستا يم، ده ويل سبا به چيري راسې؟ دې ويل سبا د کرم خان ورابانې راځي، بل ځای نه

سم در تلای، مگر یوه بانه سته هغه دا ده چي زموږ د کلا تر شا زما د نیکه او انا زیارت دئ، زه به پلار ته ووایم چي ما ستا د مور او پلار زیارت ته یو وار پرېږده، دا زیارت به وکم، نو ته به د کلا شا ته راسې کمربسته او ملا تړلی به ولاړ یې، چي زه درغلم نو سره ځو به، توکل پر خدای دئ، خوشکیار ورته ویل چي بېغمه اوسه نه به مو وژني زه هم نر پښتون یم ښځه نه یم، آول ښه دئ.

خوشکیار بیر ته راغی د بوډۍ کره، ګوډړی یې وغور ځوله خپل کار یې سم کی ماښام یې مجنون ښه موړ کی چي سهار سو د غرمې و خوا ته د کرم خان ورا راغله، شاترینه یې پر تخت کښېنوله سرور او ښادي ده، اوس یې ودوي، خوشکیار هم زیارت لره راغی، یو ګوښه ځای ودرېدی، دلته شاتریني و پلار ته وویل چي باباجانه زه خو ودېږم، او دغه د نیکه او انا زیارت مي ونه کی، بیا خدای خبر کله راسم، که ستا خوښه وي چي یو وار په ولاړو پښو زیارت لره ورسم زیارت یې وکم ډېر به ښه سي، ګونډي حق داره دي راورسېږي، بېګانه کور ته ځم. پلار یې ورته ویل چي شل کرته ورسه. آبس دې هم د واده کالي اغوستي دي زرغون شال یې پر سر دئ، د جواهرو او مرغلرو امېل یې په غاړه دئ، را رهي سوله، هغه نوري همزولي او د کلي ښځي وایي موږ هم درسره ځو، دا ورته وایي چي یه زه یوازي ځم، ښځي او مینځیاني ورته وایي چي ولاکه پاته سو، موږ هم درسره ځو، پلار یې ویل ښه دئ یوازي نه دئ ښه دوی دي هم درسره ولاړي سي.

لنډه دا چي شاترینه سره له نورو همزولو او مینځیانو راغله زیارت لره، د زیارت و سر ته شینغزی ولاړ دئ، په دغه شینغزي یې امېل ورته وځړاوه و دې ښځو ته یې وویل چي تاسي په یوه سلا ور الا کی هري یوې چي واخیست د هغې دئ، ښځو هم پر را الا کړه، لس دوولس ښځي دي خو چي ور حمله یې کړه امېل وشلېدی، دانه دانه سو، ښځي د مرغلرو او بتکیو په ټولولو اخته سولې، شاترینه راغله د خوشکیار تر شا پر مجنون ور سره سپره سوله، خوشکیار هم مجنون پنده کی، لکه بریښنا والووت، ښځي په مرغلرو او امېل اخته دي د شاتریني مینځه ده چي داسي یې وکتل شاترینه په خوشکیار پسې سپره ده دغسي یې را الا کړه، د شاتریني پر پلار او کرم

خان يې ناره وکړه :

کرم خانه ورا دي خوشي مسخره کړه
کرم خانه شاترينه خوشکيار ترشا سپره کړه
ارمان دئ ارمان دئ ارمان !

کرم خان اريان سو، چي دا څنګه پېښه سوه؟ پلار يې ورتـه ويل چي څنګه پېښه سوه، ټال مه په کښېباسه سړي پسې وباسه، کرم خان ويل يه زه يوازي پخپله پسي ځم، خوشکيار دوی لا تـر سترګو نه دي نيهام سوي، خوشکيار آس سوکه سوکه وهي، شاترينې ناره پر وکړه :

خوشکياره ته چي زما په غېږ کي ربړدې
که لښکر د کرم راغی - خوشکياره ته به ترپلې ما به پربړدې
ارمان دئ ارمان دئ ارمان

خوشکيار په جواب کي ناره پر وکړه :

شاترينې زه چي ستا په غېږ کي ربړدم
که لښکر د کرم راغی -شاترينې سپين ګردن به پر تا کښېږدم
ارمان دئ ارمان دئ ارمان

کرم خان ملا وتړله چي اوس پخپله پسې ځم، د کرم خان وراره دئ ده وويل چي ته مه ځه زه ځم که يې زه مړ کړم بيا ته پوهېږې کار دي، باره دا وراره يې پسې راووت چي راغی خوشکيار دوی نه دي سپاره سوي، باره وراره يې پسي بړغ کړه چي نه به ځې. خوشکيار مخ پر راوګرځاوه، ناره يې پر وکړه :

اې ښه ځوانه دا د خول سر خو دي تور دئ
مخ در ګرځوه اې ځوانه - چي کرم ستاسي مېړه دئ لا کمزور دئ
ارمان دئ ارمان

چي يعني ښه ځوان يې ځان مه راوژنه، ځه بير ته مخ وګرځوه ولاړ سه، کرم خان دي پخپله راوباسه، موږ هم دا يو کرار ځو، د تېښتي کار نه دئ. د توري کار دئ. د کرم وراره بير تـه راغی چي نه کېده، کـرم خـان هم لوی پهلوان او توريالی ځوان دئ، باره يې توره راواخيستله پر آس پسي راسپور سو پر متانو يې تو کړه، خو هله هله دا دئ پسي راورسېدی،، چي داسي يې و خوشکيار تـه وکتل دا د ده صورت او پنډۍ او لېنډۍ يې وليدلې، او د ده

ستر ګکي او بر پتونه يې وکتل باره يې پر تم او ستاره پر ولوېده، د آس څخه کښته سو، صورت يې رېږد واخيست، خو ناچاره سو توره يې د تېکي څخه کش کړه، آس يې پر خوشکيار ور وبوسکاره (؟) باندي ورېنده يې کی، شاترينه هلته ګوښه ناسته ده، کرم خان پر خوشکيار توره ور وغورځوله، خوشکيار د ډېري چسپاندی او چالاکی او پهلوانی څخه ځان ځني کوږ کی، د مجنون تر ګېډه يې ځان ويوست، بير ته پر آس سپور سو، د کرم خان توره خطا ولاړه، خوشکيار واری کوي او پر شاترينې ناره کوي :

شاتريني د خاصې تر پلو ګوره

د کرم واری دي تېر سو – شاتريني د خپل يار واري ته ګوره

ارمان دئ ارمان دئ ارمان

لنډه دا چي توره يې ورسره لښته کړه، کرم خان يې پر دغه نيمی پر نری ملا وواهه توره هيسته تر ولوېده، نور بدن يې لاندي ولوېدی، دوښخې يې پر آس پاته سولې، آس تور وخوړ د کرم خان دوښخې پر باندي مخ د کلا پر خوا يې الا کړه، شاتريني ناره پر وکړه :

کرم خانه ته شپانه غيلي دي پووې

دوښخې دي اوس کرنګ پر کوپی يو وړې

ارمان دئ ارمان دئ ارمان

شاترينه په بېغمه زړه خوشکيار تر شا سپره کړه مخ د آدم خان پر کلا، اوس نو د آدم خان کلا نژدې ده، کرار کرار راځي، لنډه دا چي د آدم خان کلا ته رانژدې سو، د آدم خان د کلا دمخه د آدم خان پياز دي کرلي دي، تازه يې اوبه کړي دي، لندې ختې دي شاترينه ورته وايي چي په دغه مامته کي آس در رهي که دغه لار لنډه ده چي ژر کلا ته ورسېږو، خوشکيار يو وار آس پکښې هی کی ختې وې بير ته يې د آس جلو راوګرځاوه، د پيازو څخه يې آس راويوست، شاتريني ويل څه کوې ولي دي د آس جلو بير ته راوګرځاوه، خوشکيار ناره پر وکړه :

که په متې نن زما زړګي په متې

خلک به تهمت راباندي وايي – د آدم پيازي يې منډلي دي په ختې

ارمان دئ ارمان دئ ارمان

چي خلک به تهمت راباندي وايي چي خوشکيار بېرېدی، او د ببري پر دغه لنډه لار دا دئ رهي سوی دئ، ګرده پياز يې په ختو منډلي دي.

لنډه دا چي خوشکيار شاترينه د توري په زور راوستله دا دئ د آدم خان کلا ته ننوتله، آدم خان و بلو و ميرو نورو يارانو سترې مه سې ورته وکړه روغبړ يې سره وکی، و خوشکيار ته يې آفرين ور کی، خوشکيار دا خپل نکل تولو آدم خان ته وکی چي کرم خان مي مړ کی، دوښخې يې آس کور ته ور وړې، دوی نو پرېږده دالته د کرم خان دوښخې څه سوې؟

هلته د کرم خان آس کور ته ورغی دوښخې يې پر باندي دي نور تن يې نسته، باره دا وضعيت چي يې تربرو وليد ډېر وشرمېدله، دستي دغه مشرانو يې بڼغ سره وکی چي خوشکيار داسي ژړه راواړوله، يو خو يې په سپينه ورځ ناوې او ښځه د واده او ورا د منځه څخه راځخه بوتله، دوهم يې کرم خان پر دې پېر کړی دئ، چي دوښخې يې دا دي تن يې نسته، په نو زمونږ ژوند دي هم ورک سي دستي يې لښکر جوړ کی توري يې راواخيستلې، دا دئ را رهي سوله، هله هله دا دئ د آدم خان کلا ته راغله، پر کلا شاوخوا راوګرځېدله خوشکيار سترې دئ، بيده دئ، د آدم خان پلار چي راووت دا کيفيت و لښکر چي يې وليد، بير ته کلا ته ننووت، پر آدم خان يې بڼغ وکی چي خوشکيار سترې دئ بيده دئ د کرم خان لښکر پسې راغلی دئ، دا نو بې تانه کېږي، ور وزه چاره يې کوه چي تر تربرو مو رنګ ژړي نه کي، چي وايي خوشکيار په يوه سر شاترينه د بسته قومه څخه راوړه، او اوس يې د آدم خان د کلا څخه بير ته ځني بوتله.

آدم خان ويل بابا بيغمه اوسه، نه بې راځخه وړي، د روه پر مجلون سپور سو توره يې وکښله بلو و ميرو ورسره دي، په لښکر راګډ سو، داسي د وينو چړ يې په ويوست چي توبه! آخر ته لښکر د خدای پار ورته ونيو، چي توبه مو ده، پر خپله تره څو نور جنګ نه کوو، آدم خان هم بير ته توره په تېکي کړه، هغه پاته لښکر ولاړ قسم يې په وکی چي بيا به نه راځي، خوشکيار و شاترينه دالته د آدم خان په کلا کي سره کور و کهول سوله، و بس!

# قطب خان او نازو

ته وا ښه !

ښه !

چي و يو سوداګر و او خورا غټ او دولتمن سړی و، يو زوی يې درلود، دا زوی يې قطب خان نومېده، پر پلار خورا ګران و، داسي يې نازاوه لکه منګنی ورى. د دنيا هيڅ کار يې نه په کاوه، دا قطب خان لوى سو، ځوان سو دا خاشه پر بلي نه ايږدي، تمامه ورځ خپل شوق او ښکار کوي، قطب خان د کوچنيوالي څخه د رباب شوق درلود، چي پلار يې مړ سو، څو ورځي وروسته يې رباب واخيست رباب وهي، ورځ په ورځ يې د رباب شوق زياتېږي، کرار کرار رباب زده کوي، و دنيا ته يې چرت نسته، دنيا يې ګرده برباد سوله، تر دې چي بېخي مسکين سو، مګر سره له دې باک نه په کوي خپل رباب وهي، څه سر دي ګرځوم (ورور ته دي ووايم)، قطب خان داسي رباب زده کی چي په عالم کي يې نندارې وې، په عالم کي يې نوم ولاړ چي قطب خان په رباب کي جوړه نه لري او قطب خان داسي ښايسته ځوان و، چي خور پر مينېدله داسي و لکه په ګوته کښېده کړی، د قطب خان د رباب صفت تر آدم خانه پوري ورسېد، چي په کندهار کي داسي ځوان دئ او داسي رباب وهي چي توبه !

آدم خان خو هم ربابي و، داسي رباب يې واهه چي په يوه لاره سره يې هغه درخو چي په اوو کوټو کي يې ديدنه کېده سر توره يې ميدان ته راوايستله، نو آدم خان په زړه کي ناديده د قطب خان مينه پيدا سوه، هره ورځ بې ويله چي کله به قطب خان ووينم، مګر پته او ځای يې ښه نه وه ور معلوم چي پسي تللی وای او ليدلی يې وای.

يوه ورځ قطب خان په خپل مجلس کي رباب وواهه، چي رباب

يې ودراوه، په مجلس کې يوه سړي وويل چې ياره قطب خانه داسې رباب بېله آدم خان مته خېله بل څوک نه سي وهلای، قطب خان ويل تر ما لا ښه رباب وهي؟ هغه ويل ګوره هغه داسې رباب وهي چې د هوا مرغۍ يې پر ګوتو کښېني، په تمامو پښتنو کې په رباب مشهور دئ، په رباب کې جوړه نه لري او پر تـه لـه ربابه څخه ډېر توريالی او پهلوان دئ، خورا ډېر ياران او مجلسيان او اشنايان لري.

آ بس و قطب خان ته سودا ور ولوېده چې آدم خان له ولاړ نه سم وې نه وينم نه کېږي، باره را رهي سو پر آس راسپور سو، رباب يې و څنګ تـه واچاوه، مخ د آدم خان د وطن پر خوا، دلته چې قطب خان پـه آدم خـان پسې را رهي سو هلته آدم خان په خوب وليد. سهار چې راويښ سو دا خپل ياران يې راوغوښته ورته وې ويل چې هر چا که پر ما د قطب خان زړی وکی زما خور نازو د هغه ده، نازو خو داسې ښايسته ده لکه د انار ګل چې ستن پوري مښلي او داسې نازکه ده لکه د شيدو پېروی، پر آدم خان خورا ګرانه ده، جلا سرای يې ور جوړ کړی دئ، جلا د ګلانو باغ يې دئ چې چکر پکښې وهي.

قطب خان مزل وکی وکی هله هله پوښتنه پر پوښتنه څو د آدم خان وطن ته راغی، خورا ستړی دئ، دی و آس دواړه د ترېه ولوېده د آدم خان د کلي دباندې و کلي ته نژدې د يوې ولې پر غاړه تر يوې ونې لاندې و سيورې ته پرېوت آس يې په ونه پورې وتاړه، رباب يې د ونې په ښاخ پورې ورته وځړاوه نو بيده سو.

بلو چې د آدم خان مريی و، دباندې راوتلی دئ د آدم خان پر مځکو ګرځي، چکر وهي دا د ولې غاړه يې اخيستې ده، يو وار پر قطب خان پېښ سو، قطب خان يې وليد بيده دئ رباب يې و سر تـه ځړېږي، آس ورتـه تړلی دئ، بلو فکر وکی چې که و دغه قطب خان دئ، باره يې را الا کړه برابر ورغی آدم خان تـه ورتـه وې ويل چې خانه زېری مې درباندې قطب خان راغلی دئ هلته تر يوې ونې لاندې پروت دئ، رباب يې و سر ته ځړېږي، راځه آدم خان اريان سو، چې هلته مې د خور قول کړی دئ، دا څنګه کار وسو، خير خو را رهي سو بلو دمخه دئ، دی په پسې دئ هله هله دا دئ آدم خان يې راووست و قطب خان ته يې ودراوه، چې که و دغه قطب خان دئ، بيده دئ په ځان نه

دئ خبر آدم خان چي وليد لړ څه يې شک پر راغی چي دغه به وي، باره يې و بلو خان ته وويل چي راځه پرې يې بږده مې ويښوه، ګوره کم مسافر به وي ستړی دئ، که قطب خان وای خامخا کور ته راتلی باره بير تـه ځني را رهي سوله، راغله کور ته.

قطب خان يو ګـړی وروسته راويښ سو، بيرتـه يې رباب و اوږې تـه واچاوه پر آس سپور سو را رهي سو پوښتنه کوي د آدم خان په کور پسې ګرځي، باره په کلي کي هلکانو لوبي کولې، دی چي راغی پر دې هلکانو يې ناره وکړه :

ما تر جار کې د هلکو تر تولیه
يو مټ روپۍ به درکم که و ما ته د آدم کور راوښيه

باره دستي يو هلک بوت د آدم خان کور يې ور وښود، قطب خان و هلک تـه يو مټ روپۍ ورکـړې، باره يې آس ور رهي کی د آدم خان د کور دروازې ته، باره دروازه يې ور وټکوله ور ږغ يې کړه چي مېلمه يم که آدم خان يو وار راووزي چي سره ووينو، باره آدم خان د کوره ورتـه راووت چي ورته وې کتل هغه ځلمی دئ چي تر وني لاندي بيده و، باره يې د آسه کښته کی، د غېږي روغبړ يې ورسره وکی، کور تـه يې بوت، ډوډۍ يې ورکړه بيا يې پوښتنه ځني وکړه چي ځوانه د کم ځای يې؟ نوم دي څه شي دئ؟ څنګه راغلی يې؟

ده ورته وويل چي نوم مي قطب خان دئ، د کندهار يم، ستا د نامه مي واروېدلـه، نو را رهي سولم راغلم چي ما ويل دا آدم خـان ربابي او پهلوان ووينم ياري او اشنايي به ورسره واچوم. قطب خان چي ځان ور وښود، نو آدم يو په سله خوشحاله سو، باره ويل خدای دي راوله، ما هم تـه د خدايه څخه پر آسمان غوښتې خدای پر مځکه راکړې، تر هغه وروسته يې سره اشنايي سوله، بلو راغی و آدم خان ته يې وويل چي خانه تا خو قول کړی و، چي هر چا که د قطب خان زېری راباندي وکی، زما نازو خور د هغه ده، اوس خو مي دا دئ زېری درباندي وکی، څنګه پر قول ولاړ يې؟ آدم خان ويل ښېشکه اوس مي هم قول دئ خور درکوم، بلو ويل ښه دئ.

يوه ورځ قطب خان ستړيا واچوله هوسا سو، نو آدم خان دننه کور تـه

بوت ورته وي ویل زه خو نادیده ستا پر رباب مین وم، ډېر مي غوښت چي کله به تا ووینم او ستا رباب به کله واورم، نو اوس که دي خوښه ده یوه ښه لونګینه لاره رباب راته ووهه چي د زړه زنګ مي واخلي.

ده ویل پر دواړو سترګو، باره یې رباب د کڅوړي څخه راوکیښ ښه یې سُر کی رباب یې شروع کی هلته په بله خونه کي نازو د رباب شرنګ واورېدی باره راغله د کوټې پر بام وختله تر کولک یې ورته وکاته، چي پر قطب خان د نازو سترګي وموښتې، دستي پر مینه سوله. "ولي قطب خان خو داسي لونګین ښایسته ځوان و، چي خور پر عاشقېدله، جوړې یې نه درلودې"، باره د نازو تر سترګو د محبت او میني اوښکي تر کولک لاندي پر رباب راتوی سوې، قطب خان چي پر رباب د اوښکو څاڅکي ولیده چي شرنګ یې سو پر رباب دپاسه را شوه سوه، اریان سو چي دا اوبه د کمي خوا راتوی سوې؟

باره یې ژر پورته وکاته، قطب خان چي د نازو ملالي سترګي د اوښکو ډکي ولیدې، دی هم دستي پر مین سو، زړه یې پر بایلو، دواړه د میني او محبت په اور کباب سوله، خیر خو حال یې پلن واچاوه چي آدم خان په شکي نه سي، خو لا یې د میني د زړه له باره آدم خان ته داسي رباب وواهه چي آدم خان داسي منګ ورته ولاړ، چي رباب یې بس کی بیر ته آدم خان او قطب خان د کوره سره راوواته، قطب خان ته یې دباندي په سراچه کي ځای ورکړی دئ، اوس نو نازو کور غم ګالي، قطب خان دباندي د نازو د سترګو د باڼو ګانو په غشي ویشتل سوی دئ، هغه درد ګالي.

لنډه دا چي پر قطب خان دوهمه دریمه ورځ د نازو غم زور وکی، رنګ یې والوت، ښه یې ژړه سوله، ورځ په ورځ نولېدی، نازو په کور کي د قطب خان د غمه نولېدله، ناجوړه سوله، او قطب خان نو بېسده سو پرېوت، د آدم خان خورا طبیعت په خراب دئ، په خور یې دونه طبیعت نه دئ خراب لکه په قطب خان خو آدم خان و قطب خان ته طبیب راووست دا دوا یې ور کوله، هغه دوا یې ور کوله، خو آن یې پر تمام کړ د قطب خان د رنځ دوا او طبیب نه و.

یوه بوډۍ ده چي د آدم خان او نازو په کور کي ایله ده، دوی انا انا ورته

وايي. يوه ورځ نازو پته بوډۍ راوغوښتله باره يې ورته وويل چي انا ! دې ويل ها !

نازو ويل زه يوه خبره درته کوم وايې به نه، روپۍ به هم درکم، تا ته يو کار درپرمايم، دا کار به کوې ثواب به دي هم سي آدم خان به هم درڅخه خوشحاله سي، مګر په دې شرط چي دا خبره او کيفيت پټ وساتې.

بوډۍ ويل ځان دي وخورم ولي به وايم زه خو ستاسي خدمتګاره او نمک خوره يم ولي به داسي جک وهم چي وايم به، ولچي سړی مړ کې که ووايم او بيا چي ته وايې آدم خان خوشحالېږي چي اور وي درسره ګډېږم.

وروسته نازو ورته وويل چي خبره دا ده چي په خوله کي دي ساتلې وي ستا دي د دغه يوه پک زوی په سر قسم وي که به وايې، زه او قطب خان سره مين يو، زه چي ناجوړه يم هم مي دغه سبب دئ او قطب خان چي پروت دئ نه جوړېږي هم يې زړه زما پر اوربل بايللی دئ، قطب خان په هيڅ شي نه جوړېږي مګر ته دغه زما دسمال ور وړه پټ يې پر تېر کړه، او که نه وي دباندي په دغه سراچه کي يې زهره چوي، مري خوار کی، مسافر جلاوطنه دئ، آدم خان يې زړه ته تېر آشنای دئ اوس د شرمه ږغ نه سي کولای که بل څوک وای لا بې زور و زياتي ورسره کړی وای نو يه دغه دسمال واخله پټ يې که وروسته آدم خان ته ووايه چي قطب خان زه جوړوم، مګر په دې شرط چي زه يې يوه مياشت کور ته بيايم، بوډۍ ويل ښه دئ، بس دسمال يې واخيست کور ته يې يووړی، بير ته راغله آدم خان ته، ورته وې ويل چي خانه !

ده ويل ها !

بوډۍ ويل چي قطب خان دي داسي اشنا دئ چي د ده په زړي کي دي نازو خور بلو مريي ته ورکړه او د سر تر ستر ګو درباندي ګران دئ، اوس پر مرګ پروت دئ ته هيڅ چرت نه پکښي وهې، آدم خان ورته ويل چي خو زهره مي په دوا او طبيبانو وچاودله چي نه ښه کېږي، نو زه څه وکم، بوډۍ ويل چي قطب خان زه جوړوم، مګر هو زه يې يوه مياشت کور ته بيايم زما کره دي دا يوه مياشت پروت وي، باره آدم خان ويل ښه دئ بويې زه، که ستا په برکت خدای قطب خان جوړ کی تا به ډېره خوشحاله کم.

لنډه دا چې قطب خان بېسده دئ پروت دئ د بوډۍ کره يې پر چارپايي يووی، خلک ځني را رهي سوله چې ټوله ولاړه کراره کراري سوله بوډۍ دسمال راوړی پر قطب خان يې تېر کی، وروسته يې د قطب خان پر مخ دسمال وغوړاوه، پر قطب خان د دسماله څخه د نازو بوی ومښت سر يې راپورته کی، بوډۍ ورته ناسته ده، بوډۍ ته يې ويل چې دا دسمال د نازو د لاس دئ؟ بوډۍ ويل هو ! دسمال نازو راکی د نازو د لاس دئ. سلام يې وايه چې خدای مهربانه دئ صبر وکه، خدای به مو سره يو ځای کي بېغمه اوسه، څه سر دي گرځوم قطب خان دسمال مچ کی په زړه پوري يې ونيوه، راپورته سو، کښېنوست وچکلک جوړ سو، په دا سبا د قطب خان د توانه ووته و بوډۍ ته يې وويل چې ته خو اوس زموږ په پټ حال خبره او شريکه سولې زما د توانه وتلې ده، دا يو کار خو دي وکی آفرين، مگر څنگه د لاسه به دي وسي چې يو وار زما او د نازو ديد سره وکې؟ ما خو نازو لاسي نه ده ليدلې فقط د دې يوازي ملالي سترگي مي ليدلي دي، نوره مي نه ده ليدلې، اوس څنگه ته هوښياره يې په دې بندوبست ښه پوهېږې.

بوډۍ ويل هو ښه دئ لاسي ديد به يې در وکم، بېغمه اوسه زما زوی د آدم خان باغوان دئ، هره ورځ باغ ته پسونه بيايي ونيسه دغه يو لوی مږ حلال که ښه يې پوست که، سبا په دغه پوست ننوزه زما زوی به دي د پسو په رمه کي باغ ته ننباسي، هلته د ورځي نازو په باغ کي وي، باره به يې ښه ووينې ده ويل ښه دئ.

آبس دستي يې پسه حلال کی پخپله قطب خان لاسي پوست کی سهار په دې پوست ننووت، د بوډۍ زوی د پسو سره باغ ته بوت د نازو د باغ پيره دارو، هر څوک يې بېله آدم خانه او باغوانه باغ ته نه پرېښود، قطب خان د پسه په پوست کي باغ ته ننووت، بلو په ونه پوهېدی په باغ کي قطب خان د پسه د پوسته څخه ووت د گل گلاب په بوټو کي ننوت پټ سو.

نازو په چکر باغ ته راوتلې ده، د يار غم غلطوي په باغ کي لکه ژړه بلبله د دې گل ننداره کوي، بيا د هغه گل ننداره کوي پر هغه د گل گلاب پر بوټي چې راغله چې قطب خان پکښې پټ و، قطب خان د گل گلابو تر پاڼو نازو وليده، تک سپين کالي يې اغوستي دي، د سپيني خاصې نوی نازک

کمیس یې دئ، تک سپین مړوندونه یې دي شانه ورانه ونه، ملالي ستر ګي، نري غاښونه، سرې شونډي راغله سور ګل ګلاب یې د دغه بوټي څخه ور کش کی، بویوي یې، باره د ګل د منځه څخه قطب خان ناره پر وکړه :

که کمین دئ نازو ستا صورت کمین دئ

نازوګلي تر کمیس دي مړوند سپین دئ

نازو چې د خپل بلبل مین ناره د ګل بوټي د منځه څخه واروېدله لکه ګل سره وغوړېدله، زړه یې باغ باغ سو نو دې په جواب کي ناره پر وکړه :

دا بلبل آواز کاندي نه معلومېږي

بلبله راسه ځان څرګند که چي زموږ یاري په غلا نه کېږي

باره قطب خان د ګلانو څخه پر راووت دواړه د محبت او میني په خوږو مرکو بوخت سوله، په ګلانو کي یې یو ځای چکر سره وواهه، د مینو مجلس دئ دا ورځ باندي یو ساعت سوله، مازیګر بیا قطب خان د پسه په پوست ننوت د بوډۍ زوی بیر ته د پسو سره راویوست، د بوډۍ کره یې راووست، ماخستن د پسه د پوسته راووت بوډۍ وای څنګه نازو دي ولیده؟

ده ویل هو ! ومي لیده، مګر د زړه سوی او مینه مي یو په دوه سوه، څه به کوم بوډۍ ورته وایي ته خو د دغه پسه په پوست کي باغ ته څو ورځي ځه و راځه د نازو دید کوه بیا به یوه چاره وسنجوو، ده ویل ښه دئ.

لنډه دا چي څو ورځي د پسه په پوست کي پر دغه ډول باغ ته ولاړ راغی ولاړ راغی، آدم خان به هره ورځ د بوډۍ څخه پوښتنه کوله چي قطب خان څنګه دئ؟

دې به ویل نن تر پرون ښه دئ، بېغمه اوسه ښه کېږي، آدم خان ته یې د زړه ډاډ ورکاوه، آدم خان و بوډۍ ته وویل چي زه یو وار پوښتني ته درسم ښه نه دئ؟

بوډۍ ویل یه که خدای کول یوه میاشت باد به بیر ته رباب سره وهئ، ده ویل ښه دئ، خدای دې جوړ کي، یوه ورځ قطب خان ونازو ته وویل چي تر څو به مو دا حال وي څو تر څو به زه باغ ته د پسه په پوست کي ځم راځم، که رسوا سولم چي قطب خان د پسه په پوست کي باغ ته ورتی نو دا بېخي شرم دئ. نو د دې پای یې څه؟

نازو ور ته وویل چې زه هم داسې اریانه تللې یم، چې څنګه وکم چې زه یې دمخه لا و بلو ته ستا په زړې کې قول کړې یم، نو ته به داسې وکړې یا مړ یا موړ چې ستا یوه توره او نه ګزه د سپین سان کفن ور وړه، و آدم خان ته یې کښېږده آدم خان ته وواېه چې دا توره ده دا مې کفن دئ، یا مې مړ که یا ستا خور نازو راکه، خامخا به یوه خوا کوې هره خوا چې دې خوښه ده.

که دې په دې ډول څه وکړه ښه تر ښه که نه وې هیڅ. نو هر یو به جلا جلا ځان وژنو. ده ویل ښه دئ آبس په دا سبا قطب خان توره او نه ګزه کفن راوړ د آدم خان د مخه یې کښېښووله آدم خان ته یې وویل چې زه یوه خبره در ته کوم، دغه توره ده دا کفن دئ یا مې پر دغه ځای مړ که چې د خوږ د مرګه خلاص سم او په یوه وار مړ سم، یا ستا خور نازو راکه په حلاله نکاح، زه رشتیا در ته وایم چې زه نه ناجوړه وم، نه هیڅ، فقط پر نازو زه مین سوم زړه مې ډوب سو، نو زه خو هغسې د نازو بې دیده مرم او په زحمت مرم، نو یه اوس مې لا علاج وکه مړ مې که یا دې خور راکه.

آدم خان اریان سو، د دوو جهانو تر منځ سو، وایي که پور ته ګورم پاڼ دي، که کښته ګورم پړانګ دئ. قطب خان هم د سر تر ستر ګو پر ګران دئ، مرګ یې لا څه جواب نه سي ورکولای، او بلو مریي یې هم ډېر خدمتونه کړي دي او بیا یې په غونډه بړېره قول ورسره کړی دئ، چې خور درکوم، خو ډېر یې فکر خراب سو، باره یې فکر او چرت وواهه اوستری یې و قطب خان ته وویل چې ښه دئ درکوم یې ناعلاجه یم نو څه وکم.

آبس په دا بله ورځ یې بلو په یوه کار پسې ولېږی، و قطب خان ته نازو ورکوي نکاح یې ور تړي، وایي چې بلو خوشي یو اور ګډی سړی دئ مخامخ قطب خان راځخه مړ نه کي، ښه دئ دا اوله د نکاح ورځ ده چې په خبر نه سي نور نو بیا وروسته چې هر رنګه پېښه سوه.

لنډه دا چې بلو په کار پسې ولاړ، نازو یې و قطب خان ته په نکاح ورکړه په دغه ورځ خورا هشت و مشت جوړ سو، میرو د بلو ورور ډېر پسونه حلال کړه، ساز و سوبت یې جوړ کی، خیر خو نکاح یې د نازو د قطب خان سره وتړله، دغه ورځ تېره سوه ماښام ته بلو راغی، بلو به تل د نازو د سرای پیره کوله، نو راغی هغه د پخوا پر عادت باندي د سرای د دروازې په خوله

کي پر خپله پيره ودرېد، آدم خان اريان دئ چي اوس څنګه قطب خان کور ته بوزي، باره يې قطب خان را رهي کی اوس يې تر دروازه پخپل پوستين کي پټ تېروي، بلو چي د آدم خان و پښو ته وکاته څلور وې، باره يې پر آدم خان ناره وکړه :

که په تول دي د بلو سترګي په تول دي
آدم خانه سر دي يو پښې دي څلور دي

آدم ورته ويل چي ياره بلو ياره بېښکه او رشتيا چي ډېر هوښيار سړی يې، خو دوې پښې زما دي دوه مي د پوستينه لستوني ځړېږي، نو خود څلور معلومېږي، نو زما څلور پښې د څه وې. بلو هم زيات رېغ ونه کی په دې بانه يې قطب خان و سرای ته تېر کی، يو ګړی باد بلو ولاړ کور ته باره يې واروېدله چي نازو يې نن و قطب خان ته ورکړه، او ميرو دونه پسونه حلال کړي وه، داسي ساز و سوبت او هشت و مشت يې جوړ کړی و، باره د بلو سترګي لکه د خوني زمري تکي سرې راوختلې، باره يې دغسي توره راواخيستله چي خپل ورور ميرو اول مړ کي، ولي وايي تا خو به زه خبرولم، سربېره پر دې چي خبر دي نه کړم، پسونه دي لا هم حلال کړي وه، هشت و مشت دي جوړ کړی و، خوشحالي دي کوله، چي را رهي سو راغی د ميرو کور ته ميرو د خپل کور شاوخوا او لار تپه په ځوزانو او ژړګو تړلې وه چي بلو نه سو تر تېرېدای، او نه تر اوښتای سو، باره وروسته نو د نازو د کور پر خوا را رهي سو نازو دمخه لا د کلا او خوني دروازه ټينګه تړلې وه، ولي دا خو پوهېده چي بلو خبرېږي، راځي يو لړه جوړوي، بلو راغی د کلا تر دېوال ور واووښت ورغی د خوني دروازه يې ور پوري وهله، نه خلاصېده، نو د خوني په دروازه کي دبلندي ورته ودرېدی ناره يې پر وکړه :

که ساندو دئ ستا په غېږ کي پروت مي دی ساندو دئ
تې راوباسه ميدان ته نازو ګلي ايمان نه لري هندو دئ

قطب خان يو څه سره وښورېدی، چي ميدان ته ور ووزي ورسره معلومه يې کړي، باره نازو ټينګ کی چي مه ور وزه، (ځکه دا خو پوهېدله چي بلو بې يوه چپلاخه ووهي مخ بې ور څټ کي، بلو خو توريالی پهلوان دئ او قطب خان خو نازولی ګلالی ځوان دئ)، باره يې قطب خان ته ويل مه ور

وزه، زه بې جواب وکم، باره يې په جواب کي پر بلو ناره وکړه :

که ساندو دئ دا بلو مريی ساندو دئ

زما په غېږ کي زمری پروت دئ دا بلو مي ايمان نه لري هندو دئ

دا ناره چي نازو پر وکړه، يو وار بلو ته لا درد ورغی، ترلـه ووت، و دروازې ته وجوړېدی چي پاشنه يې کي ورننوزي قطب خان مړ کي، نازو فکر وکړ چي ولچي بلو کور ډاکي دروازه ماتوي راځي، باره يې پر مور ناره وکړه :

ادې موري پر ما څه د غم اوربل دئ

دا نور خلک بيده دي پر ما د بلوګي مريي غوبل دئ

مور چي يې ناره واروېدله دغسي راوغورځېدله پر آدم خان يې ناره وکړه:

په شيدو مي لويولې په مسرو مي اوبولې

ته راووزه بلو مړ که پر نيمو شپو د نجونو څه غواړي دروهلی

آدم خان چي د بلو يار په طيعت خبر و او تل بې باټ ورکاوه، نو به يې کار په کاوه، راغی د بلو په مخ کي يې د نازو پر مور ناره وکړه :

ښه کالي د ښو ځوانانو اغوستن دئ

زه به ولي بلو وژنم بلو مي د دې ګرد کاله څښتن دئ

د آدم خان په دې ناره سره بير ته بلو باټ واخيست فخر يې په وکی، آدم خان بلو ته نصيحت وکی چي ته زما بې صلاح کار مه کوه، تا ته به بله کوزده در وکم، نو څه وکم زما تر وس خبرۀ تېره وه، قطب خان هم لکه ته داسي راباندي ګران و، جواب مي نه سوای ورکولای، زه خو پښتون وم، پښتون چي يو وار چا ته د اشنايی لاس ورکي بايد تر پايه يې ورسره وپالي، پر مازې شي يې خوابدی نه کي، نو يه ته به زما د لحاظه و قطب خان ته زيات بڼغ نه کوې، څه کور ته ولاړ سه، نو بلو د آدم خان خبري په غوږ کي ونيولې د ده څخه يې خار وخوړ بير ته کور ته ولاړ، که څه هم و قطب خان ته يې زړه ډک و، زړه يې نه غوښت چي بير ته توره په تېکي کي واچوي، مګر دم در حاله يې و قطب خان ته بڼغ ونه کی په زړه کي يې ويل چي بيا به ګورم چي په پټه به يې علاج کوم.

لنډه دا چي څو ورځي تېري سوې قطب خان کور ته تلی، بلو یار خو د نازو د سرای او د دې د باغ پیره دار و، په قطب خان پسې څارو و، چي په داسي ډول یې مړ کي چي تر یوې اندازې دی متهم نه سي، څو یوه ورځ قطب خان په یوه خونه کي بیده دئ، بلو راغی و سر ته یې د اوسپني تېرې تېرې مختبیلې او تېره مېخونه ټکوهل، یو وار یې نابېره ږغ پر وکی چي قطب خانه پور ته سه نازو مړه سوله، قطب خان چي صادق مین و، اه یې کړه په تلوار راوغورځېدی، په سر یې هغه مېخونه جګ سوه، پوري وري تر وو تل، قطب خان پر هغه ځای مړ سو[1]. نازو خبره سوه دغسي یې را الا کړه چي راغله مین یې لکه سور ګل ګلاب په وینو کي لژند پروت دئ، نازو بغاري کړې راغله پر آدم خان یې ناره وکړه :

آدم خان لالا په ولي کي مي ول دئ

پر نور عالم کراره کراري ده پر ما د بلوګي مرېي غوبل دئ

آدم خان چي دا ناره د خپلي خور واورېدله را الا یې کړه چي راغی قطب خان په وینو کي مړ پروت دئ، خو ډېر خوابدی سو، پر قطب خان یې اوښکي توی سوې، د نازو خیال دئ چي قطب خان خو پر آدم خان د زړه تر سر پر ګران و، اوس به نو بلو پر مړ کي، مګر څرنګه چي بلو د آدم خان خورا ډېر خدمتونه کړي وه، لکه ورور داسي پر ګران و، او بل هوښیار سړی و، چي ياندي يو يار خو مي مړ سو نو بلو چي زما توريالی مېړه دئ او زما ښی بازو دئ، نو دا ولي زه مړ کم، باره یې بلو ته هیڅ ونه ویل، د نازو چي د خپل ورور آدم خان څخه د خپل خواږه مین د غچ کښو امید وخوت، او وې ویل چي د دې پسه بو نو زه دې مرېي ته ناسته یم، باره راغله د قطب خان ویني یې په خپل تندي پوري ومښلې چي زه هم ستا د سر خیرات یم، پر قطب خان

---

[1] څوک وايي چي قطب خان او نازو چي باغ ته سره تللي وه، نو بلو خو د باغ د دروازې پیره دار و، د باغ په دروازه کي یې ځاه پرې کی لاندي یې چړې او توري اوسپني پکښې سیخي کړې، ماز دیګر چي قطب خان دمخه نازو په پسې ده چي تر باغ راووت قطب خان په ځاه کي ولوېده، ټکر ټکر سو، نازو هم قصداً ځان ځاه ته پسې وغورځاوه د مین سره یو ځای مړه سوه.

وغوړېدله، خدای ته يې خواست وکی چي زه نور ژوند نه غواړم څو آدم خان راپور تـه کوله ساه يې والوتله او مړه سوله. لنډه دا چي دواړه مينان يې يو ځای يووړه ښخ يې کړه، ټوله مته خېل په ژړا او د قطب خان او د نازو پـه ويـر زنګېدله، بلو خالي لاس پاته سو، پر دې ځای تکل تمام سو.

# دلی او شهو

چي و يو باچا و[1]، د دې باچا اوه زامن وه او لور يې نه درلوده، نو ده وويل چي که هر وخت ما ته خدای لور راکړه نو په دنيا کي به يې هيڅ نر ګاړی راڅخه ونه ويني او نه بې چا ته ور کم، که هر وخت چا وليدله او دې هم هغه سړی خوښ کی نو زما لور د هغه سړي ده، په حلاله نکاح يې ور کوم.
کارونه د خدای دي په دغه کال يې ماندينه اميدواره سوله، نه مياشتي نه ساعته نه ګړيه تېر سوه، خدای ﷻ لور ور کړه، نوم يې "شهو" پر کښېښود، د باچا دوې ماينې وې شپږ زامن يې د يوې ماينې وه، چي شهو هم د دوی خور وه، او يو زوی چي امير نومېدی د بلي ماينې څخه يې و، چي شهو لور يې پيدا سوله دستي يې د هغې پر مور او دايي ګانو حکم وکړ چي که شهو چا د رڅخه ليدلې وه ستر ګي به مو در وکاږم. يو دم يې حکم وکی چي داسي کلا جوړه کئ، چي هيڅوک نه سي ور اوښتلای، هغه و چي په څو ورځو کي يې داسي لو کلا ور جوړه کړه چي خورا لوړ دېوالونه يې وه او خورا پراخه وه، ښه ګلان او ونې يې پکښې شنې کړې، په دغه کلا کي يې څلوېښت دايي ګاني او نجوني ورسره واچولې، په دغه باغ کي يوه پخوانی زړه پڼه ولاړه وه، د دې پڼې منځ يې وکيښ شهو ته يې د دغي پڼې په منځ کي تخت او ځای ور جوړ کی، هورې يې خرڅ و خراجات ور واچاوه، هلته يې دايي ګاني تربيه کوي، د کلا دروازه يې پسي قلف کړه، کيلي يې پخپله باچا په جېب کي واچوله.
څه سر دي ګرځوم په نکل کي عمر او معطلي نسته، هله هله شهو

---

[1] دا د نقلچيانو قاعده ده، چي هر نکل کوي وايي چي يو باچا و، او په دمخه زمانو کي هم د هري قبيلې خان د هغې قبيلې باچا بلل کېدی.

لو پیغله سوله، هیچانه ده لیدلې او نه یې لیدلای سي، د ورځي په ګلانو کي د خپلو همزولو سره[۲] ګرځي، ماښام پدې ته راوځېږي پر خپل تخت بیدېږي، په دغه زمانه کي په دغه وخت کي[۳] یو خورابنامتو زوره ور غل دئ.

چي "دلی" نومېږي. دغه دلي فکر وکی چي دا دونه عمر دي غلا وکړه، ته نه خدای د کور کړې او نه د ځای، په راسه د باچا د لور و کلا ته به په یوه چم ور ولوېږم یا مړ یا موړ او باچا ویلي دي چي که هر چا زما لور ولیدله د هغه ده، ګوندي دا دو می وچلېږي، "او د شهو د ښایست آوازه هم په وطن کي خپره ده"، آبس دلي توکل وکی ماښام یې و کلا ته دام ور وغورځاوه، لنډه دا چي په ډېر زحمت و کلا ته ور وخوت، ور واوښتی دغسي یې پټ معلومات وکړ، آخر ته یې هغه د دې تخت او ځای معلوم کی، پس له هغه ورغی و دغې وني ته پټ وختی په یوه ښاخ کي غلی پټ کښېنوست. یو ګړی چي وسو، شهو سره له نورو همزولو راغله تخت ته راوختله، یو ګړی وروسته ډوډۍ راغله ډوډۍ چي وخوړله سوه ټولي پیغلاني سره ناستي دي، مجلس کوي، سره خاندي خپلي ټوکي ټاکي کوي، د خوب وخت راغی. همزولي خپلو ځایو ته ولاړلې، "وایي دلي خط هم لیکلای سو"، باره دلي یو خط په دې مضمون ولیکئ چي:

زه پر تا مین یم او ستا فدایي یم. ستا په غم کي ډوب د صحرا لېونی د ژونده بېزاره ستا عاشق "دلی" یم. دا دئ ما خوارۍ وکښلې ځان مي مرګ ته ورکی لومړی ستا دیدن ما وکی ستا زړه څنګه دئ څنګه یې کوې په ما خوښه یې که یه؟

دا کاغذ یې د پاسه د دې و مخ ته پر راشوه کی. شهو چي کاغذ واخیست خلاص یې کی وې لوست د روه یې رنګ والوت اریانه سوله چي دا

---

(۲) پخوا دا دود و، چي د کوم خان یا باچا لور یا زوی به وزېږېدی نو په هغه ورځ چي به د کمو نورو غټانو لور یا زوی زوکړی و، نو هغه به دغه باچا ټوله یو ځای و دایي ګانو ته وسپارله، نو دا به همزولي سره بلل کېده.

(۳) وایي شهو او دلی د کندهار وه.

کاغذ د کمي خوا راولوېدی، چي داسي يې لوړ وکتله، دلی يې وليدی، ځکه چي تر اوسه يې بې خپل پلاره نارينه نه وليدلی او دلی ښه زلمی هم و، دا هم پر مينه سوله، زړه يې پر بايلو، اوه يې کړه چي د دې پای يې څه؟ که مي پلار خبر سو، خو دستي يې وژني نه يې پرېږدي، "دلی هم خورا ښه مېړه ځوان و، خورا ښايسته و"، د شهو ښه والوته مخ يې تک ژړ سو، د شهو د واکه ووتله پر همزولو يې ناره وکړه، "څه چي يې ويلي دي، هر څه چي يې ويلي وه وايې روئ" :

شهو ناسته وه د خپل بابا پر غولي
دپاسه کاغذ راغی و شهو ته وا راځه دلی دي بولي

همزولې بير ته په ځغاسته راغلې، همزولې اريانی واخيستلې، دلي فکر وکی چي ولچي دا هم درباندي مينه سوله، نو ده هم ناره پر وکړه :

شهو ګلي پر سپين مخ دي دلی مين سو
دلي ځان پر خدای سپارلی - شهو ستا په زلفو خوار دلی لا بند سو

لنډه دا چي دلي فکر وکی، چي اوس دا دئ ښځي ورسره ناستي دي، زيات څه نه سم کولای او نه دستي دا بيولای سم، اوس بې پلار خبر سي دالته به مي ګری مُری ونيسي، خو د ښځو چي دلي ته فکر سو، په يُو يُو ګډي سولې، په دغه حال کي دلی راکښته سو، بير ته يې کلا ته سمساره وغور ځوله وخوت، شهو فکر وکی چي ولچي ولاړ او د دې خبري پای يې نه کی درمعلوم، چي پای بې څه وي، نو يې پر دلي ناره وکړه، چي زه هم پر تا مينه سولم :

شهو ناسته وه د ګل سره خوشحاله
دا د ګل مجلس دي اور سو د دلي په غم به ناسته وي ملاله

چي يعني زما زړه دي يووی، اوس به نو پاته عمر ستا په غم کي تېروم، څنګه به سي؟

دلي د کلا څخه ناره پر وکړه :

که ژوندی وم شهو ګلي پر دنيا باندي
زه به لاس له تا وانه خلم - که مي سر له تنه څوک راڅخه پرې کاندي

آبس د کلا څخه راشوه سو، پر لار ځي چرت وهي چي اوس به نو شهو

څنګه لاس ته راولم؟ که اوس باچا ته ورځي چي ما ستالور ولیدله، هم دي وژني، ولي چي ته د عمرو غل یې کله یې درکوي. په راسه یو ځای یوه لویه غلا وکه، چي ډېره دنیا په لاس درسي، بیا به‌نو مرکه ورته وکې، په حلاله نکاح به یې وغواړې، شهو خو بل مېړه نه کوي.

دلی را رهي سو مخ د هندوستان پر خوا، هله هله هله برابر راغی د اکبر باچا دورې دي، دستي د اکبر باچا خزانې ته مابنام ور ولوېدی، ډېر جواهرات او دنیا و سرې و سپیني یې غلا کړې، مګر بخت یې چپه و، چي راووت پیره دارانو ونیو، سهار یې اکبر باچا ته ور ووست، اکبر باچا حکم پر وکی، چي په سخته بندي خانه کي یې درې کاله بندي کئ. پس له هغه یې په سخت مرګ مړ کئ. دلی یې سخت بندي کی، دی نو پر ېړ.ده چي په بندیخانه کي د غم عمر تېروي، شهو پسي راواخله، شهو څو عمر په غم و د دلي په بېلتون کي تېر کړ، وروسته یې فکر وکی چي څو تر څو به په دې غم او بندیخانه کي ناسته یم یه راسه پلار ته ووایه چي اوس نو بس ده ما د دې زندانه وباسه، زه په دې باغ کي دغ سو̇لمه، اوس مي نو در وباسه، پلار یې پر دې خبره غوږ ونه نیو، نوري سهیلانې او مجلسیاني یې ور زیاتي کړلې، ویل یه تا په هیڅ ډول زه د دغه باغ څخه نه باسم. شهو بیر ته صبر وکی، کښېنستله په دې مابین کي دوه کاله تېر سوله، یوه ورځ شهو فکر وکی چي ته راسه دې وني ته (چي د دې تخت پکښې و) وخېژه شاوخوا به وګورې، ګوندي څوک یا څه ووینې، چي وختله د کلا دباندي یوه قافله تېرېږي، ورته کتل یې قافله تېره سوله، دلی نه و، نو یې د زړه د درد څخه ناره وکړه:

په همزولو کي وم ناسته مات مي پېزوان سو
د نورو یاران راغله–د شهو یار مي پر کم لوري روان سو

بیر ته راکښته سوله، په دغه همزولو کي یې یوه هوښیاره پېغله وه، دې پېغلي فکر وکی چي شهو ورځ په ورځ نولېږي، یه راسه یو څه د زړه داد ورکه نو یې ناره پر وکړه:

که غوړېږي د سهار ګلان غوړېږي
که اوس یار درسره نسته–هغه‌هم پر تا مین تا ته رسېږي

شهو یې په جواب کې په ژړا ډکو سترګو، داسې ناره کوي :

که غوړېږي د سهار ګلان غوړېږي

د خزان باد په پسې دئ - ګل مې کله پخپل عمر هوسېږي

دې پېغلې فکر وکی چې پر شهو غم زور وکی، وايي مړه به سم يار به ونه وينم، چې د غمه یې زهره ونه چوي نو یې بله د زړه د ډاډ ناره پر وکړه :

چې مين په زړه صادق وي يار له به ورسي

که دې نن لاس ته نه رسي - خدای مهربان دئ بيا سبا لاس به دې بر سي

خو بير ته د شهو د زړه تسلی د دې سهيلي په نارو څه قدر وسوله، بير ته يې صبر وکی، دا نو پر پړده دلی پسې راواخله، د دلي نو اوس درې کاله پوره دي څو مياشتي يې لا پاته دي، د دلي سره په بنديخانه کې يو کندهاری ملنګ دئ قيد يې پوره سوی دئ سبا ته ايله کېږي، ځي کندهار ته.

دلي ورته ويل چې ملنګه ته خو ځې کندهار ته، زما يو خدمت به نه وکې؟

ملنګ ويل پر دواړو سترګو به يې وکم. دلي ويل زه به يو کاغذ درکم په پلاني ځای کې يوه لو کلا ده په هغه کلا کي د باچالور ده، په هر چم چي وي دا کاغذ به و هغې ته رسوې، ملنګ ويل ښه دئ که خدای کول. دلي په کاغذه کي وليکل چي:

"زه په هندوستان کي د اکبر باچا په سخته بنديخانه کي بندي يم، اوس مي درې کاله پوره دي يوه نيمه مياشت لا پاته ده، چي دا يوه نيمه مياشت پوره سي نو مي په سخت مرګ سره وژني، ما خو خواری کښلې چي تا په حلاله نکاح لاس ته راولم، مګر ونه سو، اوس نو حق پل لره ...".

دا کاغذ ملنګ راواخيست سهار يې ملنګ د بنديخانې څخه ويوست، ايله يې کی، ملنګ مخ د کندهار پر خوا ر ونيو، هله هله مزل پر مزل څو دا دئ کندهار ته راورسېد، باره يې وويل اول به د دلي خدمت پر ځای کوم، څه سر دې ګرځوم راغی هغه کلا يې پيدا کړه پر کلا شاوخوا وګرځېدی ورته لار نسته، راغی د کلا په وره کي يې "هل" کړه او فقر يې وغوښت، يوه مينځه راووتله فقير خط ورکړ چي دا به شهو ګلي ته ورکوې، شهو چي خبره سوه نو ملنګ ته يې ډېري روپۍ راولېږلې، ملنګ يې رخصت کی ملنګ پر

خپله تړه ولاړ.

(په دې درې کاله کې د شهو شپې، ورونه او پلار مړه سوي دي، يو مېرې زی امير ورور يې ژوندی دئ)، دې چې کاغذ خلاص کی، وې لوست پر سر يې اور د خوابدی بل سو، دستي يې ورور ته حال وکی چې بس دئ ما نو اوس د دې زندانه درو باسه، امير ويل چې زه د پلار وصيت پر ځای کوم، ناسته به يې، دې ورته وويل چې نه مې درباسې نو زه دلته ځان وژنم.

امير ناچاره سو، شهو يې د کلا څخه راوايستله، ورور ته يې وويله چې زما سره د خدای وجه وکه، ما پرېږده زه ځم هندوستان ته، دا کيسه يې ورته وکړه.

ورور نه پرېښووله، ويل يه خلک پېغور راکوي، وايي خور يې ولاړه شهو ناره پر وکړه:

که وروره اې زما مينه وروره

که چا داسي پېغور درکی ورته وايه شهو نه وه زما د موره

ورور يې هم فکر وکی چې ځي خو ځي نه راکرځي، سبا چې په غلا تښتي لا نام بدي ده، يه رخصت يې که چې ځي د ښځي سره هيڅ نه کېږي، باره يې رخصت کړه څه روپۍ يې هم ورکړې شهو مخ د هندوستان پر خوا را رهي سوله، دوې پښې يې داغه دوې نوري هله هله شو دا دئ مخ ته يې يو رود پيدا سو، "د شهو خورا ښه رنګ و" لکه د اومو شيدو پېروی داسي رنګ يې و، پر مخ يې نقاب غوړولی و، چې بې دلي څخه به زما مخ څوک ونه ويني، شهو د دې رود کښتۍ وان ته د کښتۍ کرايه ورکړه چې په کښتۍ کي سپرېدله، کښتۍ وان يې مخ وليد، پلو يې باد د مخه څخه ايسته کی، کښتۍ وان زړه پر بايلو، دوباره يې کښتۍ بې لاري رهي کړه، چې پر بله يې بوزم، شهو فکر وکی چې کښتۍ وان په چپ نظر درته وکتل او کښتۍ يې هم د لاري څخه چپه کړه نو يې ناره پر وکړه:

کښتۍ وانه کښتۍ سمه پر ګودر باسه

دا د لاس باهو مې ستا دئ- کښتۍ وانه چپ نظر د منځه باسه

کښتۍ وان فکر وکی چې د سرو زرو باهوګان درکوي، او دا پردی ښځه ده خدای خبر روزي دي سي، که يه، سبا به رسوا سوی يې، عمري به

بندي يې، په دغه باهوګان مي ګټه ده. باره يې بير ته کښتې د ګودر پر خوا سمه کړه، باهوګان يې څني واخيستله، دا يې راپوري ايستله د رود پر هغه غاړه يې ايله کړه، شهو را رهي سوه، سور سالو يې پر سر دئ نقاب يې پر مخ دئ د اکبر باچا دربار ته را رهي سوه، چې دربار ته نژدې راغله د اکبر باچا سپاهيانو نه پرېښووله، شهو د دربار خوا ته زور واهه هغو منع کوله، خو په پای کې يې سور سالو لـه سره ولوېدی، او د دربار په دروازه کې يې ناره وکړه:

که زوره د اکبر باچا د زوره

سالو مي ستا سپاهيانو يووی - و تمي ته دي ولاړه يم سرتوره

اکبر باچا د شهو ناره واورېدله، حکم يې وکی چې دا ښځه راولئ، شهو چې راغله باچا حکم وکی چې دغه ښځي ته يو پوړنی ورکی، خيال يې سو چې نور عرض نه لري پوړنی غواړي. پوړنی يې ورکی دالته يو ګوښه ځای کښېنستله، څه سر دي ګرځوم داهغه ورځ ده چې بنديان اکبر باچا ته پېشېږي، پر چا د مرګ حکم کوي څوک ايله کوي، آخر ته يې دلی ور ته راپېش کی، چې د دلي صورت حال و کيفيت ووايه سو، باره يې حکم وکی چې سزا يې سخته ده وايې خلئ په سېلی يې مړ کئ، باره شهو د ځانه سره وويل چې زه خو مينه يم او لوی خدای د مينانو د صدق او بې ريا دعا قبلوي، بله چاره نسته د خپل خدای څخه کومک وغواړه، نو يې ناره وکړه :

که زوره د اکبر باچا د زوره

دلی وژني په سېلی لويه خدايه - دا سېلی مي د باران خړې او به کې

دلی چې يې سېلی ته بوت، د خدای په حکم سېلی نرمي او پستې سوې، دلی په مړ نه سو، بير ته يې اکبر باچا ته راووست ور ته وې ويل چې په سېليو نه مري، اکبر باچا حکم پر وکی چې بو يې زئ په مستو پيلانو يې مړ کئ، شهو بيا ناره پر وکړه :

که زوره د اکبر باچا د زوره

دلی وژني په پيلانو لويه خدايه

دا پيلان دي د مولا په تبه مړه سي

دلی چې يې پيلخانې ته بوت که ګوري پيلان ګرد ه ځای پر ځای مړه

دي، دلی یې بیر ته راووست ویل ستا قربان سم باچا صاحب چي دلی مو وروست پیلان گرده مړه وه.

لنډه دا چي باچا وویل چي دا ولي نه مري؟ خلکو ورته وویل چي دلته یوه ښځه ده چي ته حکم پر وکې هغه ناره وکي، دعا وکي که ښرا وکي، که و دغه یې سبب دئ، اکبر باچا ویل چي دواړه راحاضر کئ، دلی یې ور حاضر کی باچا ورته ویل چي رشتیا ووایاست تاسي سره څه یاست، شهو او دلي ټول خپل حال سر تر پایه ورته ووایه. اکبر باچا و شهو ته وویل چي شاباس ستا پر وفا، څه دلی مي ستا په پوړني کي دربخښلی دئ. باره یې ډېري روپۍ هم ورو بخښلې او ورته وې ویل چي باره غلا مه کوه، دلي هم ورته وویل چي ما د ناچارۍ څخه غلا کوله، چي روپۍ ولرم نو ولي غلا کوم، د هندوستان څخه را رهي سوه بیر ته خپل وطن ته راغله کور و کهول سوه.

# آدم خان او درخانۍ

ته وا ښه !

ښه !

وايي چې د اکبر باچا په وختو کې په يوسفزو کې دوه لوی خانان وه، يو حسن خان نومېده متېه خېل او بل تاوز خان نومېدی، يو په يوه علاقه کې خان و بل په بله علاقه کې خان و. د دواړو نوم پروت و، تاوز خان په دولت او مړو کې پر حسن خان زيات و، کارونه د خدای دي، نه حسن خان اولاد درلود او نه تاوز خان.

يوه ورځ حسن خان کوڅې ته راوتلی دئ د کلي د خلکو سره مجلس کوي، يو فقير راغی ورته ودرېدړ برغ يې وکړ ويل خانه ! خير غواړم، خان ورته وويل چې يو سر يم، زوی نه لرم چې کور ته يې واستوم خير درته راوړي، او بل څوک کور ته نه پرېږدم چې زما حرم سرای ته ورسي.

فقير ورته وويل پر فقيرانو عقيده لرې چې دعا درته وکې او خدای تعالی زوی درکې، که يې نه لرې؟ حسن خان وويل چې ولې يې نه لرم. ډېر خيراتونه مې کړي دي، ډېر فقيران مې خوشحاله کړي دي دعاوې يې راته کړې مګر خدای زوی نه راکوي. فقير ورته وويل چې زه به دغه درې دانې خرماوې در دم کم، دغه يوه دانه پخه ده دا وخوره او دغه دوې دانې اومې دي ويې غورځوه خدای تعالی به زوی درکې. خان ويل ښه دئ.

باره فقير خرما ور دم کړه خان ته يې ورکړه، خان فقير ونازاوه پخه دانه خرما يې دستې وخوړله هغه دوې دانې اومې يې وغورځولې، دالته يو دوو کسو مزدورانو پر حمله کړه يوه يوه خوړله او بله بل وخوړله، فقير ورته وويل چې زه نو رخصت يم، کال په کال به د خدای په رضا غويي خيراتوې زه نو ولاړم د خدای په امان.

آبس فقير ولاړ برابر راغی د تاوز خان په دروازه کي يې هل کړه، چي خير راوړئ. د هې خوا تاوز خان د مينځي په لاس څه خير ورکی چي دا ور وړه دي پخپله هم راووت، فقير يې وليد، مينځي فقير ته خير ورکی ور ته وې ويل فقيره خان ته دعا وکه چي خدای و خان ته اولاد ورکي، فقير نيمه دانه خرما خان ته ورکړه، خان يو وار غورځوله بيا يې په زړه کي ور ورګرځېده چي راسه ويې خوره، ګوندي خدای څه راکي، خرما يې وخوړله. څه سر دي ګرځوم چي نه مياشتي نه ساعته نه ګړيه تېر سوه، خدای تعالی و حسن خان ته زوی ورکی نوم يې آدم خان کښېښود، او د تاوز خان لور پيدا سوه نوم يې درخانۍ پر کښېښود. آدم خان لږ څه تور و مګر په کړه وړه ډېر ښايسته، خورا هډه ور و، لنډه دا چي درې څلور کاله وروسته چي غټ سو پر سبق يې کښېناوه په لس دوولس کاله کي يې خورا ډېر علم حاصل کی، خورا پرهېزګار و په ځان ډېر قوي و د ښکار شوق يې درلود، پلار هم د خانۍ او د دنيا او کور اختيار ټوله ده ته ورکی.

وروسته آدم خان له تتر خان څخه چي تربور يې و دوه مريان رانيوله چي يو ميرو نومېدی په يوه سترګه ړوند و، خورا ډېر هوښيار و، په هر څه پوهېدی او بل مريي بلو نومېدی چي ډېر زوره ور توريالی پهلوان و، مګر لږ څه بېعقل و، مدام به يې د اوبو دمخه ګاولي کښلې، په هيڅ کي يې ری نه واهه، ږيره و برېتونه به يې خريله، آدم خان نصيحت ور ته کاوه، چي بد مه کوه بد نه دي ښه، بلو به ور ته ويل چي زه ښه پوهېږم چي بد نه دي ښه، د خدای په لار ښه پوهېږم مګر ته د پلار يو زوی يې تربرونه دي ډېر دي په قصد دغه کارونه کوم چي د دښمن سترګه درڅخه وسوځي، نو آدم خان هم لکه ورور داسي ساتل خورا پر ګران وه[1].

آدم خان سل کسه ياران او مجلسيان ځوانان درلوده په دغو يارانو کي يې مشهوره خوشکيار او قطب خان وه، چي بېل بېل نکلونه لري او دمخه ذکر سوه، آدم خان ځو ښه عراقي آسان درلوده، د آدم خان آس "مجلون"

---

[1] وايي چي بلو او ميرو هم د هغه فقير د دوو او مو خرماوو د برکته څخه پيدا سوي وه، چي حسن خان و غورځولې.

نوموېده چي خالصي شيدې يې خوړک وې، خورا چابک او په رمازه پوه و، د بلو آس "آذر" نوموېده او د ميرو خان آس "پرده" نوموېدی، آدم خان خورا شوقي سړی و، ښه رباب يې واهه، د رباب په وهلو کي يې جوړه نه درلوده، تل مدام به د شاله مار په باغ کي چي د آدم خان مخصوص باغ و، دغه ټوله ياران وه خپل مجلس او ساتېری به يې کاوه، او هره جمعه به په ښکار وتل.

آدم خان نو دلې پرېږده درخانۍ پسي راواخله، (غوږ دي دئ، کور دي په الله سره ودان چي دئ دا دئ دا)، څه سر دي ګرځوم درخانۍ چي پيدا سوه د روه يې دايي ورته ونيوله چي "نرمۍ" نوموېدله، نرمۍ خورا ښه ساتله په دغه کوچنيوالي داسي ښايسته وه چي توبه ! بې رنجو يې سترګي توري وې، مور و پلار يې پخپله و رنګ او سکې ته اريان تللي وه، د خلکو څخه يې پټه لوېوله، چي څوک يې ونه ويني نظر نه سي، يوه شپه يې مور و پلار سره ناست وه سره ويل يې چي دا به چا ته ورکوو، چي لو سي، مور يې وويل چي په مټه خېلو کي حسن خان نومېږي، خلک وايي چي ډېر مېړه سړی دئ، هغه ته هم په ډېرو دعاوو او تعويذو خدای زوی ورکړی دئ راسه چي اوس يې لا هغه ته ورکو، چي بيا به سبا که لو سوله جنګونه او دعوې به باندي وي، تاوز خان هم ويل ښه خبره دي وکړه باره يو خط يې پټ حسن خان ته وليکی چي ما ته هم يوه لور خدای په ډېرو دعاوو راکړې ده، تا ته هم خدای يو زوی په دعاوو درکړی دئ که دي خوښه وي زما لور چي "درخانۍ" نومېږي ستا زوی ته به يې درکم. خط چي حسن خان ته راغی حسن خان هم قبوله کړه، ورته ويې ليکل اوس ږغ مه کوه چي لو سوله نو به يې درڅخه واده کم.

څه سر دي ګرځوم، درخانۍ چي غټه بوټکه نجلۍ سوله، داسي هوښياره ده چي توبه ! باره يې پلار ته وويل چي بابا ! هغه ويل ها ! دې ورته ويل چي زما رنګه نجوني ټوله په مسجد کي سبق وايي، زه دلې کور ناسته يم، زه هم سبق وايم، ما پر سبق کښېنوه، سبا به نجوني پېغور راکوي چي د درخانۍ هيڅ نه دي زده، تاوز خان فکر يووی چي درخانۍ ډېره ښايسته ده که يې پر سبق کښېنوم، يو فساد باندي جوړ نه سي، دا نو دالته پرېږده چي سبق وايي آدم خان پسي راواخله.

یوه ورځ آدم خان په یوه کتاب کې بند پاته سو، هر څه پر ملایانو وګرځېدی چا دغه مسئله نه سوای ور ښوولای، وروسته چا ورته وویل چې د تاوز خان ملا خورا لوی عالم دئ، په علم کې ساری نه لري، تا ته دغه مسئله بېله هغه ملا څخه بل یو نه سي درښوولای، آدم خان هم دستي یوازي پر مجلون سپور سو کتاب یې راواخیست، هله هله برابر راغئ د تاوز خان په مسجد کې کښېته سو، مجلون یې د توت په تنه پوري وتاړه. یو ګړی وروسته ملا راغی، آدم خان یې ولید، آدم خان یې نه پېژندی او نه ده ځان ور ښو، د ملا دا خیال سو چې کم یو شازاده دئ، آدم خان هم ور ولاړ سو د ملا یې ښه تعظیم وکی روغبړ او ستړې مسې یې سره وکړه، ملا پوښتنه ځني وکړه چې ځوانه څنګه راغلی یې؟ آدم خان ورته وویل چې د کتاب په یوه مسئله کي بند یم، که دې دغه راوښووله، ملا ویل ښه دئ چې لمونځ وکم نو به کتاب سره وګورو، یو ګړی وروسته درخانۍ چې اوس ښخي پېغلتوب ته رسېدلې ده کتاب یې په څنګ کې دئ راغله، کتابونه یې ټوله اوس نو تمام کړي دي، په ټولو کتابو او علمو پوه سوې ده کښېنستله، چې داسي یې وکتله ځوان یې ولید چې په فکر کي ډوب ولاړ دئ، ملا اوداسه ته ولاړ، د آدم خان چې پر درخانۍ سترګي ولګېدلې، دی هم د دې په مینه کي ډوب ولاړ، دواړو یو د بله زړونه سره بایلول، سره مین سول، وروسته درخو ورته وویل چې ته څوک یې، څنګه راغلی یې؟ ده ورته وویل چې زه آدم خان یم، د حسن خان مټه خېل زوی یم، سبق ته راغلی یم، په یوه مسئله کي د کتاب بند یم، ته څوک یې ځان راوښیه؟ دې ورته وویل چې زما نوم درخو دئ، د تاوز خان لور یم سبق وایم، درخانۍ خو داسي پر مینه سوله، چې د توانه یې ووتله فکر یې وکی چې راسه آدم خان په خپل مینتوب پوه که، چې وپوهېږي چې درخانۍ پر ما مینه ده، نو یې د کتابي په توګه پر آدم خان ناره وکړه:

یو زرغون لښتی بهېږي – دغه سر یې د آدم پر باغ لګېږي
په کرلي یې لونګ دي – لو یه خدایه لا چې هم په زرغونېږي

چې یعني زه پر تا مینه یم زه لکه زرغونې او به داسي یم، ستا د مینې باغ در اوبوم او تازه کوم دي، وروسته آدم خان ښکاره ناره پر وکړه :

خان یم آدم خان یم - زه پخپله مینه کړم غره په ځان یم
که مي مرګ نه سو له میانه - درخانیه زه به زوم د تاوز خان یم

دواړه پرېشانه په زړه زهیر، بنې یې الوتي دي، چي ملا راغی درخانۍ ورغله په سبق بوخته سوله، پټ پټ ژاړي آدم خان راغی ملا ته یې کتاب کښېښود، ملا هغه ځای ورته ووایه، وروسته د ملا څخه رخصت سو، هیڅ سوال و جواب یې سره ونه کی، پر مجلون سپور سو کور ته راغی، درخانۍ هلته کور د بېلتون غم ګالي تکه ژړه تار و نار سوله، اوس یې علم تمام کړی دئ د آدم خان د میني غشي یې وخوړ، زیات یې نور سبق پرېښود کور ستر منه سوله، مور و پلار ته یې وویل چي زما څخه د دنیا عیش پاته دئ، زه نو اوس و خپل خدای ته عبادت کوم، پس له هغه درخانۍ په ستر سوله د هیچا سره ناسته ولاړه نه کوي، لنډه دا چي د درخانۍ د علم او پرهېزګارۍ او ښایست آوازه په ټولو یوسفزو کي ولاړه چي درخانۍ داسي ښایسته ده چي ساری نه لري، او وایي چي څورلس علمه یې تمام کړي دي او ویل یې د اوو پیرانو مرتبه لري، بې رنجو یې سترګي توري دي د عقل او هوښیارۍ مخۍ یې نسته، بیله خپلو خدمتګارانو څخه د هیچا سره خبري اتري نه کوي او هیڅوک یې مخ نه سي لیدلای، اوس نو هر یو د درخانۍ د دیدن شوقي دئ هڅه پسې کوي، درخانۍ نو پرېږده چي پخپل ستر او د آدم خان په غم کي شپې تېروي آدم خان پسي راواخله.

آدم خان چي کور ته راغی پر مخ یې لکه د لحد خاوري چي پر تي رنګ یې تک ژړ، شونډان یې وچکلک دي چي د آسه کښېته سو، بلو خان یې آس ونیو چي داسي یې و آدم خان ته وکتل آه یې کړه ویل خیر دئ څه در سوي دي؟ آدم خان ورته وویل چي یاره چپ له میرو څخه به هیچا ته نه وایې، درخانۍ د تاوز خان لور مي زړه وړی دئ پر مین یم، هیڅ توان مي نه کېږي، بلوخان ورته ویل چي هیڅ چرت مه خرابوه په وچه توره به یې درته راولم، میرو خان ورته وویل چي خدای د کراري مل دئ مرکه به ورته وکو په ډېر درب و دروب به یې راواده کو، خیر خو حسن خان یې خبر نه کی شرمېږي خبره یې پټه کړه حال یې پلن واچاوه.

یوه ورځ په یوسفزو کي یو واده و، آدم خان یې سره د پلاره او سره له

یارانو ور وغوښتل چي واده لره ورغله، نر جلا اتڼونه کوي، ښځي جلا اتڼونه کوي او کله ښځي او نر یو ځای اتڼ کوي د ښځو په اتڼ کي یوه چټه مسته پیغله ده داسي پرله اوږي لکه کوتره، او داسي ښایسته ده چي ستر ګي نه پر رونېږي، دا پیغله (توتیا) نومېږي، د بازید خان خور ده، د ښې لویي کورنۍ څخه ده، حسن خان آدم خان ته وویل :

زویه دا عجبه مسته پیغله ده دا به در وغواړو ده ورته ویل پلاره زه ښځه نه کوم. پلار ورته وویل ته نه پوهېږې زه دا پیغله در غواړم، آدم خان د پلار له څنګه ولاړ سو او هیڅ یې ورته ونه ویل. څه سر دي ګرځوم حسن خان مرکه ور ولېږله توتیا یې و آدم خان ته وغوښتله، قول یې سره وکی چي یوه میاشت باد به یې واده کي، دوی هم ویل ښه دئ. آبس یوه میاشت چي تېره سوله د توتیا پلر ګنی خبره سوله چي آدم خان پر درخانۍ پټ مین دئ او درخانۍ پلار په اوني کي ورکړې ده، درخانۍ د لوی خان لور ده سبا به توتیا ورسره په عذاب وي، نه موږ توتیانه درکوو، نه مو درکړې ده، د آدم خان پلار په چرت کي ولاړ، آدم خان که څه هم دمخه په دې کار راضي نه و، مګر په غاړه کي یې لوېدلی او توتیا د ده په نامه سوې وه نو دا یوه بدنامي وه چي اوس یې پرېښولای، پر بلو خان او میرو خان یې ږغ وکی چي آسان ځین کئ، آسان تیار سول.

د ماخستن لمونځونه یې وکړه درې په درې را رهي سوه، هله هله دا دي راغله کلي ته، یوه زړه بوډۍ ده دا یې پیدا کړه یو مټ روپۍ یې ورکړې ویل د توتیا کور او ځای راوښیه، بوډۍ د توتیا کور و لار ولیکه ور وښووله، بلو و میرو کور ته ور ولوېده توتیا یې بیده د تلتکه سره پټه راواخیسته، د آدم خان تر شا یې سپره کړه (یا شایی ولات)، برابر یې کور ته راوستله، هیڅوک نه سوه خبر، چي سهار سو ځای سته جولا نسته، توتیا ورکه سوه هیڅ پته یې نه معلومېږي، څو ورځي باد بوډۍ د توتیا ورور بازید خان او پلر ګنی ته وویل چي توتیا خو آدم خان بېولې ده، د توتیا پلر ګنی په خپل کور کي لس تنه وه څه یې نور تربرونه ورسره ودرېدل څو سوه لښکر یې تیار کی بازید خان یې دمخه سو، د آدم خان پر کلا یې مخ وکی، آدم خان ته حال راغی چي د بازید خان لښکر درغی، خبر دار ! آدم خان دستي پر

میرو او بلو بڼغ وکی، ناره یې پر وکړه[۲] :

بلو پاڅه سر او چت کړه – چې تنګسه وي زموږ مل او سه مدت کړه

د توتیا پو ځونه راغله – پر یارانو باندي بڼغ کوه همت کړه

بلوخان راوغورځېدی پر یارانو یې بڼغ وکی چې ملاوي تړئ تربور راغی، ټولو یارانو دستي ملاوي وتړلې آسونه یې ځین کړه پر سپاره سوه، دا دي راغله په لښکر ور ګډ سوله جنګ شروع سو، ها ها وې وهله وې وهله بلو په وار ځو ځو تنه په توره وهي، بازید خان ته ور ورسېدی، چې اوس به یې بازید خان واهه بازید خان ناره وکړه :

ځوانان دي مړني دي – درته وایم یو تر بله ګړندي دي

دغه خپل بلو در نیسه – دغه ستا د بلو سترګي د خوني دي

آدم خان پر بلو بڼغ وکئ چې بس ! بلو هم مخ ځني راوګرځاوه پر آذر سپور دئ سترګي یې لکه زمری داسي اړوي، لښکر یې مات کړ، د بازید خان د خوا ځو سوه کسه مړه سوله، او د آدم خان هم ځو تنه ژوبل او مړه سوله، باره یې جنګ بس کی آدم خان دوی کور ته راغله.

یو ځو ورځي چې تېري سولې آدم خان و بلو خان او نورو یارانو ته وویل چې راسئ بازید خان دوی پخلا کو، ښځه مو هم په زوره راوستله او مړي مو هم ډېر ځني وکړه، د پلار سره یې سلا وکړه، پلار یې ویل تر دې ښه خبره نسته، باره د جمعې په شپه یې یو آس یو مریی او څه روپۍ راواخیستلې د بازید خان کره راغله دا شیان یې بازید خان ته ورکړه، د بازید خان ځخه یې بخښه وغوښته پخلا یې کی، وروسته سره خپلوان سوه کراره کراري سوه، آدم خان هغسي د خپلي پښتنګلوۍ په سبب د درخانۍ مینتوب پټ ساتی، د یارانو سره په ښکار او په یوه او په بله ځان بوختوي، ځکه د درخانۍ پلار خورا زوره ور دئ، په مړو هم پر ډېر دئ په دولت هم پر ډېر دئ، آدم خان ورځ په ورځ تک ژړ کېږي، زړه یې نولېږي، لکه د پخوا په ډول نه یې په رباب سات تېرېږي، نه یې کور فکر ښه کېږي، یوه ورځ یې

(۲) ځوک وایي چې بریم خان دا ناره هلته پر کړېده، چې پیر صالح مرکه و آدم خان ته را استولې وه، درخانۍ ښکاره کړئ راسئ.

پلار پټ د بلو څخه پوښتنه وکړه چې آدم خان ولې داسې څوکلېږي؟ ده ورته وویل چې آدم خان پر درخانۍ مین دئ، شرمېږي نه سي درته ویلای نو ته به په پټه پرده کې و تاوز خان ته مرکه ور ولېږې په هر ډول چې وي درخانۍ به ورغواړې.

حسن خان ویل دا خو اسانه خبره ده، تاوز خان خو پخوا لا په اوښي کې درخو راکړې ده، دستي یې څو کسه مرکه ور ولېږله، چې درخانۍ و آدم خان ته ور واده کې، مرکه چې راغله تاوز خان فکر وکی چې آدم خان خو بله ماینه کړې ده، که درخانۍ ورکم سبا به زمالور د توتیا مینځه کې، په عذاب به وي، باره یو وار تاوز خان پر نه داد ورته کښېنوست چې زه کورټ نه درخانۍ درکوم او نه مې درکړې ده او نه زه حسن خان پېژنم نه آدم خان، مرکه یې بیر ته رخصت کړه جواب یې ورکی، مرکه راغله و آدم خان او حسن خان ته یې حال راووړ، چې نې درکوي حسن خان خوابدی سو، آدم خان ویل بابا ته خوا مه بدوه، مگر دا زما د مینتوب خبر په کور و کلي کې مه خپروئ، خدای بې آسانه کې هیڅ پروانه لري.

هلته تاوز خان فکر وکی چې نبایده چې آدم خان لکه د توتیا یو فساد جوړ نه کې، د درخو د مور سره یې سلا وکړه چې درخو مو یو ځای ورکړې وای، ښه به و، مور یې هم ویل ښه دئ، تر دغه گړیه د درخانۍ او د آدم خان په مینتوب ناخبره دي، په دې ترخ کې پایو خان چې یو قومي سړی و دنیا یې هم ډېره درلوده، و تاوز خان ته یې مرکه راواستوله چې درخانۍ راکه، باره تاوز خان په دوو زړو کې سو، چې و پایو خان ته یې ورکم که و آدم خان ته، باره د درخانۍ و مور تې وویل چې ته ورسه و درخانۍ ته ووایه چې آدم خان کوې که پایو خان؟ و کم یوه ته دي ورکو؟ مور یې راغله و درخانۍ ته یې وویل چې مرکه راغلې ده، درخانۍ ورته وویل چې د چا مرکه ده؟ مور یې ورته ویل چې د پایو خان مرکه ده. دې ورته ویل چې رنگ دې ورک سي، پایوخان نه کوم، مور یې ورته ویل چې پلار دې نه پرېږدي مېړه ته دي ورکوي ووایه څوک کوې و چا ته دي ورکو؟ درخانۍ ورته ویل چې زما په خوښي پسي ځئ نو زه آدم خان کوم، بل مېړه پر ما حرام دئ که یې وکم، وروسته مور ناره پر وکړه :

لوري درخانیه – درته وایم لور مي مه سې سکنیه
آدم پرپرده پایو وکه – درخو لوري پایو پټ په پلرګنیه

چي یعني آدم خان د پلار یو زوی دئ، په تربرو کي لږ دئ پایو ډېر تربرونه لري، درخو په جواب کي ناره کوي :

ادې موري مورکیه – درته وایم مور مي مه سې سکنیه
آدم زوی د زمري دئ – ادې موري کوتري ډېر زېږي د سپیه

چي یعني آدم خان زمری او توریالی دئ، او پایو یو سپی دئ نې کوم، بیا مور ناره پر وکړه :

لوري درخانیه – درته وایم لور مي ته یې سکنیه
له آدم څخه لاس واخله – درخو لوري نوم دي ځي په یوسف زیه

چي یعني کراره کښېنه د آدم خان څخه لاس واخله په یوسف زو کي به دي نوم بد سي، درخانۍ په جواب کي ناره پر کوي :

ادې موري مورکیه – درته وایم مور مي ته یې سکنیه
له آدم به لاس وانه خلم – ادې موري که پر سر راکې شړیه

بیا یې مور ورته وویل چي مه کوه، لوري پلار به دي ووهي مرور به سي، دې ناره پر وکړه :

زه درخو ویېږم – درته وایم چي او به وینم بېرېږم
د آدم له مستي میني – ادې موري په ناپای دریاب ګډېږم

وروسته یې مور و تاوز خان ته وویل چي پایو نه قبلوي د پایو مرکه رخصت که و آدم ته یې ورکه، تاوز خان دستي راولاړ سو د درخانۍ او د مور بې رضا یې درخانۍ و پایو ته ورکړه چي نبایده آدم خان یې په زور بونه زي، او یا دا پسي ونه تښتي، درخانۍ چي خبره سوله ستر یې ښه محکم کی، د مور دمخه یې قسم واخیست، که د پایو لاس پر ما کښېښو سي، یا زما مخ چې له آدم خانه څخه څوک ووینی، وروسته یې اووه پوړني پر سر کړه په اوومه کوټه کي کښېناسته، و مور ته یې وویل چي پر ته له تا څخه که زما خوني ته څوک راغله، نو زه په هغه ګړي ځان وژنم، په ما غرض مه کوئ، زه د خدای عبادت کوم، لنډه دا چي درخو په کوټه ننوتله رنګ یې تللی د آدم د غشي دوک ګالي، نه څه خوري او نه څه چښي هسي ځان توانوي.

مور چي يې هر سهار ورسي چي ورته وګوري دا پر بل حال پرته وي يا په نفلو اخته وي، ژوندون يې اور وي. خبري نه کوي مور يې خورا په اوګاره ده، د مور زړه دئ خورا په خوابدې ده، چي په درخو څه وسوله، يوه ورځ يې پوښتنه ځني وکړه چي بي بي درخو څه در وسوله زويه ! جوړه يې که ناجوړه، که لېونۍ سولې چي ورځ په ورځ دي ځان نولېږي، او عمر دي په دار دئ، ما ته د زړه حال ووايه، درخو ناره پر وکړه :

نه لېونۍ يم نه ناجوړه – و پايو ته مو زه ورکړلم په زوره
په آدم پسې به ومرم – زما په زړه کي د آدم د ميني اوره

مور په جواب کي د تسلي ناره پر کوي :

پايو ګی دي په زيي دئ – درخانۍ خوړ دي ټوله د زړ ګي دئ
د پايو لايقه نه وې – درخانيه قلمونه ازلي دي

چي يعني که څه هم د پايو لايقه نه وې چي پلار پړه درسره وکړه ور يې کړې، مګر بيا هم په زيي راشريک دئ، صبر وکه، درخانۍ په جواب کي ناره پر کوي :

چي په لاس کي مي قرآن دئ – بې آدم پر ما بل مېړه حرام دئ
له بد حاله يم دننه – ادې موري پاته سيل د بېبان دئ

چي يعني زما په دغه قرآن قسم دئ که زه بيا د دباندي سيل وکم، پر ما بې آدم خانه بل مېړه حرام دئ، په همدغه سبب دننه ناسته يم چي زما مخ بې آدم خانه هيڅوک ونه ويني.

لنډه دا چي د درخانۍ په زړه بې له آدم له ياده بل څه نه و، اوس يې قسم وخوړ چي زه دباندي نه وزم، پر خپل قسم ټينګه ده دباندي نه وزي، نه د چا سره خبري کوي چي آدم خان به ور په ياد سو، بېهوښه به سوله، چي بيا به پر هوښ راغله، توبه به يې وکښله خو دغه د آدم خان د ميني غم ګالي د غم په توره خونه کي ناسته ده، دا آوازه چي درخانۍ قسم اخيستی دئ، چي د دې مخ به څوک ونه ويني او نه به دا دباندي راووزي په ټوله يوسفزو کي ولاړه، د دې ښايست د دې عقل، د دې دينداري، د دې د علم خو هر څوک خبر وه، د درخانۍ ټوله تربرونه د درخانۍ د ديد محتاج وه، مګر ديد يې نه سواى کولاى، ځکه چي يو خو د دې ستر ټينګ و، بل د تاوز له بېري چانې نه

سوای ورته وهلای (دانو دالته پرېږده چي غم ګالي، او آدم خان هلته پرېږده چي د درخانۍ مینه په زړه کي پټه ساتي، په رباب او په ښکار غم غلطوي، پایوګی پرېږده چي پر ګوښو ګرځي).
د درخانۍ د ترور لور بسکۍ نومېده، په کوچنیوالي یې د درخانۍ سره وعده کړې وه چي هر یوه چي دمخه ودېږي، هغه بله به یې واده لره ورځي، دریمه ورځ د بسکۍ واده دئ کار مار یې جوړ دئ، بسکۍ و مور ته ویل چي ته ورسه درخانۍ راته راوله، چي زما واده تېر کي، مور یې ورته وویل چي هغه په ستر په خلوت کي ناسته ده قسم یې اخیستی دئ، دباندي نه راوزي، بسکۍ ورته وویل ورسه زما سره یې قول کړی دئ درسره راځي، ورته ووایه که دانښاني رشتیا وي چي په پلانکي ځای کي مو د خاورو کوټنۍ جوړولې او قول مو سره وکی چي که ته ودېدلې، زه به واده ته درځم که زه ودېدلم، ته به راځې، که په دې نه سوه راضي و پلار ته یې ووایه، او که پلار هم نه درسره کوله، یا یې د پلار په خوله نه کوله نو ورته ووایه چي بسکۍ ځان وژني که رانه سې خون به یې ستا په غاړه وي، باره مور یې را رهي سوله راغله د خپل ورور تاوز خان کره تاوز خان ښه راغلې ورته وکړه، وروسته یې پوښتنه ځني وکړه چي خیر و څنګه رنګ الوتې راغلې؟ د بسکۍ مور ورته ویل چي بسکۍ ودېږي درخانۍ راسره که. تاوز خان ورته وویل چي ته هم خبره یې چي هغې قسم اخیستی دئ، چي دباندي نه وزي او نه څوک ځان ته پرېږدي، داسي یې ستر ټینګ کړی دئ چي زه یې پلار یم دا ډېر عمر مي نه ده لیدلې، او زور زه نه پر کوم، نو نه سي درتلای، نو د بسکۍ مور خوابدې سوله ولاړه سوله، پر خپل ورور یې دانازه وکړه:

که به خواست زما قبلېږي – له اسمانه څه دي کاڼي پر تا لوېږي
په ناحقه دي آزار کړم – تاوز خانه هم دي عمر ستا کمېږي

تاوز خان هم خوابدی سو، او نورو هم ملامتي پر وویل چي ناحقه دي آزار کړه، ته خو اجازه ورکه که ورسره ولاړه ښه که نه وي ستا څخه به ګیله نه کوي، تاوز خان هم دستي یوه ښځه ورسره کړه عمه یې ورغله د درخانۍ و خلوت ته ورننوتله، درخانۍ چي ولیدله مخې ته یې راغله، روغبړ یې ورسره وکی، وروسته د بسکۍ مور حال ورته ووایه، د بسکۍ نښاني یې ورته

وويل چي د بسکی واده دئ، پلار دي هم اجازه راکړه ته به راځې، که نه راځې نو بسکی ځان وژني، زياته اختيار لرې. درخانی ورته وويل چي ما دا دونه عمر خلوت ګاله، اوس چي د يوه کلي ښځه بل کلي ته ځم څنګه به وي؟ که مي پرېږدي ډېر به ښه سي. ترور يې ورته وويل چي بسکی ځان وژني زندی يې و غاړي ته اچولې ده، وايي که درخانی نه راغله زما خون د دې په غاړه دئ، او تا به په داسي ستر بوزم چي د خدای بنفس دي ونه ويني، اووه پوړني دي خپل دي اووه به نور درباندي واچوو، په پټه پرده کي به دي بوزو، درخانی اريانه سوله که نه ورسره ځي خون يې په غاړه کېږي که ورسره ځي ملک ورته اور دئ، فکر يې وکی چي د مسلمان خون نه دئ ښه، ويل ښه دئ ناچاره يم درسره ولاړه به سم، څه سر دي ګرځوم (چي دئ) درخانی بخچه راوغوښتله، اووه پوړني يې پر سر کړه امېل يې په غاړه کی، ځان يې جوړ کړ، خپل کتاب يې ورسره واخيست د خپلو خدمتګارانو او دايي سره ورسره رهي سوله، هله هله دا دئ د بسکی کره راغله، د بسکی سره کښېنستله، مجلس يې سره وکی وروسته درخانی خپله مخصوصه خېمه، چي څو لايه وه د ورېښمو ښځه يې جوړه کړې وه د کوره راوغوښتله، په هغه کي په ستر کښېنستله، وبسکی ته يې ويل چي ما عمر په ستر تېر کړی دئ چانه يم ليدلې بايد دلته هم په ستر اوسم. لنډه دا چي د درخانی په تلو کور او کلی او ترېرونه يې ټوله خبر سوله. د درخانی ترېرونه او د دې د ديد شوکيان سره راټول سوله سلا يې وکړه چي درخانی به څه ډول وويني. وروسته يې سلا پر دې سوله چي د مرکې او ننواتي پر ډول به ورسو، څيري ګرځوانونه به ورته ودرېږو ګونډي وي چي وې وينو، باره ټوله را رهي سوله د بسکی کره راغله څيري ګرځوانونه، د درخانی مجلسيانو او دايي ته يې وويل چي درخانی زموږ ترله ده، دا ډېر عمر کېږي چي موږ نه ده ليدلې، تاسي او دې لره نن ننواتي راغلي يو که يو وار درخانی ووينو، بير ته ځو. د درخانی خوا کسانو ورته وويل چي پښتانه ياست ننواتي راغلي ياست ننواتي مو قبلوو، مګر درخانی به مخ در ښکاره نه کي، تاسي داسي وکئ چي ښه ساز او ډمان راولئ چي ښې ښې غزلي د تاثير ډکي ورته ووايي، ګونډي په زړه کي يې اغېزه وسي او مخ درښکاره کي، مرکې دستي سازوالا راوستل ډول ډول

غزلي يې ورته وويلې، درخانۍ هيڅ باک په ونه کی، وروسته يوه شاعر آخره ناره پر وکړه :

درخانۍ ده په زړه پوره – چي د مشکو له کافورو ده مشهوره

زوره ور دي ورله راسي – چي راوې باسي مجلس وته حضوره

چي يعني موږ عاجزه يو، زموږ په بدلو نه راوزي، زوره ور ورله په کار دي، مرکې فکر وکی چي زوره ور خو اوليا او پيران دي، نو بايد پير صالح بابوزی چي د ټولو يوسفزو پير دئ او ټول عمر يې درخانۍ ته هم سبق ويلی دئ هغه بايد ورته راولو، دستي يې په پير صالح پسي سړی ولېږی چي ورسه دا ناره په ژړا په زوره پر پير صالح وکه :

شيخ پير صالح شيخه ! – درته وايم د تمام يوسفزو مېخه

که صحي په باطن پوريې[۳] – د چنډنو نه به وکاږې له بېخه

قاصد چي احوال پير صالح ته راوړی، پير صالح فکر جن سو، فکر يې وکی چي وربه سم يوه ښځه ده زه يې د پلار پر ځای يم تر لاس به يې ونيسم په زوره به يې راوباسم، بيا يې وويل چي د پلار او د دې به خوا بده سي، او که توجه ورته کوم د پيرۍ او کرامت په زور يې راباسم، نو درخانۍ هم زاهده ده زما دم به پر ونه چلېږي، په مريدانو کي به شرمنده سم، وروسته يې خپل وراره پير اکو راوباله ورته وې ويل چي نکل داسي دئ، څنګه يې وکم؟ پير اکو ورته وويل مشر ته يې زما فکر په دې نه رسېږي، زه کشر سړی يم. پير صالح ورته ويل چي ته هم د کور سړی يې سلا درسره کوم چي خپله پرده وساتو، خامخا به يوه سلا راکوې، پير اکو ورته وويل چي آدم خان متـه خېل ستا سر پرې کړی مريد دئ، ډېر توريالی او زړه ور سړی دئ، شاعر هم دئ ښه رباب هم وهي، او ښه سړی هم دئ وايي د اوو پيرانو مرتبه لري که هغه راوبولې دواړه سره ورسئ څه به ستا برکت وي څه به د آدم خان همت وي، ښايي چي درخانۍ راوباسئ، پير صالح ويل آفرين ډېره ښه سلا دي راکړه، دستي يې دوولس کسه يوسفزي خانان راوغوښتل ويل تاسي او پير اکو ورسئ آدم خان لره دا احوال به ورته ووايـاست، تـر هغو بـه د اسانو څخـه نه

---

[۳] درخو درخته د چنډنو.

کښته کېږئ څو آدم خان رانه ولئ.
څه سر دي ګرځوم پیر اکو او خانان را رهي سوله دا دي راغله د آدم خان کره، آدم خان سره له یارانو ښکار ته تللی دئ، کور نسته. میرباش د آدم خان زوی ورته راووت و مېلمنو ته یې وویل هر کله راسئ، کښته سئ راځئ په مهمانخانه کي کښېنئ، دوی ورته وویل چي آدم خان رانه سي موږ نه کښته کېږو، هر څه زاری چي میرباش ورته وکړې نه کښته کېدله، وروسته میرباش ورغی و مور ته یې وویل چي داسي نکل دئ، مور یې ویل خیر دئ ته د مېلمانه حق ادا که زیاته یې پرېږده، میرباش خان هم بیر ته راووت، دیارلس موږي یې ټکوهل، د سرې پر سر یې یو پسه حلال کړ، یو ګړی باد آدم خان راغی، کلي ته چي نژدې سو سپاره یې ولیده، بلو ته یې وویل چي دا سپاره یا مېلمانه دي یا تاړاک دئ، چي ښه رانژدې سوله پیر اکو یې وپېژند آدم خان ویل چي مېلمانه دي پیر اکو ورسره دئ. آدم خان قسم واخیست که میرباش بې مرګه پرېږدم، د مېلمنو عزت یې نه دئ کړی، پر آسو سپاره ولاړ دي، چي راورسېدی، توره یې پر میرباش راوکښله ناره یې پر وکړه:

اې میرباش زویه مغروره – نن به پرې کم دا ستا سر پخپله توره
مېلمانه حیران ولاړ دي – تر ابد دا د یوسف مندړ پېغوره

میرباش په جواب کي ناره کوي:

د میرباش زړه په هوا دئ – درته وایم دی بې بدو بې ګناه دئ
ګناه پور که بابا پلاره – بېګناه مرګی په شرع ناروا دئ

د دې خوا پیر اکو بړغ پر وکی چي ها لاس نیسه، په هلک کي ګناه نسته، آدم خان وکتل د مېلمنو حق یې پر ځای کړي دئ، بلو ته یو وار درد ورغی ناره یې پر مېلمنو وکړه:

د بلو زړګوټی ملي – درته وایم مېلمانه څنګه راغلي
پر هلکو دي وام تېر کی – اوس به جوړ کم د راغلو د سر څلي

دلته بریم خان پر آدم خان ناره کړې ده، چي بلو در نیسه چي مړه مو نه کي، بریم خان د پیر صالح مرید و، چي په دغه خانانو کي راغلی و نو آدم خان پر بلو بړغ وکی چي چپ ! آدم خان راکښته سو د پیر د زوی عزت او ښه

راغلی یې ورته وکړه ویل کښته سئ ولي سپاره یاست؟ دوی ویل چي پیر صالح رالیږلي یو سلام وایي چي داسي دئ داسي دئ دا نکل یې ورته وکی، چي پیر صالح ځي د بسکی کره، درخانی هلته ده غواړي چي مخ په ښکاره کي، ویل چي دا کار بې آدم خانه نه کیږي، تر دې مابین حسن خان راغی، ویل دا څه نکل دئ؟ حیران سو. آدم ورته ویل چي پیر صالح پیر اکو او دا نور خانان رالیږلي دي چي آدم خان راولي. حسن خان گماني سو چي آدم خان څه کوي چي ور غواړي یې او دا دونه مرکه یې رالیږلې ده، پیر اکو ناره پر وکړه:

د خان پلاره حسن خانه – درته وایم گمان وباسه له میانه
په مهم د درخانی ځو – رنگینه رباب را واخله بلو خانه

و حسن خان ته یې ټوله بیان د سره تر پایه پوري وکی، حسن خان هم ویل چي شل کرته دي ولاړ سي، لنډه دا چي شپه یې تېره کړه سهار آدم خان پر خپلو یارانو حکم وکئ چي ټوله ځانونه تیار کئ.

وایي چي د آدم خان دا عادت و، چي هره جمعه به یې نوي زرغونه کالي اغوستله، چي کالي به یې الیش کړه هغه د بلي جمعې دا به یې و یوه یار ته ورکړه، هغه کالي به د آدم خان په غلا بیر ته توتیا ځني رانیول، وبه یې ساتل، نو چي آدم خان تلی و هغه ټولو یارانو ته توتیا هغه د آدم خان زرغونې جامې ورکړې، وایي غوستلې، ویل نبایده آدم خان دښمن دار دئ چي څه ضرر ورپېښ نه سي، اوس به نو که څه لړه پېښه سوله څوک بې نه پېژني چي کم یو آدم خان دئ، لنډه دا چي ټوله لکه د زرغونو توتیانو سیل تیار سوه، توتیا فکر وکی چي آدم خان ولاړ سي، نوري ښځي به یې خپل کي، ما به هېره کي پر میرباش یې ناره وکړه:

نن زما زرگوتی گل کي – اې میرباشه زړه مي کله تحمل کي
زویه زما رضا خو نه ده – آدم خان به دغه نوري نجوني خپل کي

میرباش په جواب کي ناره پر کوي:

موري ستا مانی په څو سي – چي ته ستړگي رپوې فکر دي یو سي
آدم خو څه باز نه دئ – چي همیش به دغه ستا پر مړوند او سي

چي آدم خان او یاران یې لکه د بڼ توتیان تله نو میرباش ناره پر

وکړه:

درخانۍ سره به پام کړې –آدم خانه بابا ځان به په بدنام کړې
دا د شنو توتیانو سیل دئ –دغه سیل به پر پردي وطن تمام کړې

آدم خان په جواب کي ناره پر کوي :

که د باز وای څوکه تېره ده –درته وایم د ښمن پر لور کړه ده
زما به دا سو به روزي سي –نن زما پر زړګي ټینګه اند ښښنه ده

لنډه دا چي د آدم خان نکل دئ غوږ پر نیسئ ! آدم خان دوی ټوله پر آسانو سپاره سوه دعا یې وکړه را رهي سوله، چي د کلي څخه راتېر سوله، آدم ویل چي راسئ یوه نخښه وولو د پال پر ډول چي په مراد به ورسېږو که یه؟ نخښه یې کښېښووله، اوس یې هر یو په تاخت کي په نېزه وهي خو ټولو خپل وار تېر کی، یوه ونه وهله ډېر خوابدي سوله، آدم خان په آخر کي مجلون پر ورهي کړ نخښه یې په دغه منځ کي ووهله، په نېزه یې وپېیله، بلوخان ناره وکړه :

پر میدان پرته وه دړه –د آدم یارانو وویشته په کوړه
د آدم په نېزه سوری سوه –آدم خان سو پر بي بي درخانۍ بړه

څه سر دي ګرځوم د دغه ځایه را رهي سوله، هله هله شاه درې له راغله، په شاه دره کي د درخانۍ ترله اوسي مستوره نومېده خبره سوله چيٌ آدم خان دئ ځي درخانۍ لره، نو دې پخوا لا د آدم خان صفت اورېدلی و، پر مینه وه (په یوسف زو کي دا دود و چي څوک به و جنګ یا په بل مهم کار پسي تله او چا به یې دمخه تش لوښی تېر کی نو به دستي پر هغه ځای پاته سوه، نه به تله څو شپه نه وای تېره سوې)، دستي مستوري مینځي ته یو تش منګی پر اوږه ورکی چي دا واخله کله چي آدم خان د هغه ونې پر برابرې راورسېږي، نو دغه منګی د دهٔ دمخه تېر که، آدم خان چي راغی مینځي یې تش منګی تر مخه تېر کی، د آدم خان کر که سوله، دستي کښته سو د هغې ونې لاندې کښېنوست، مستوري مور ته وویل، ناره یې وکړه :

نن زما زړګوټی ښه کړه –درته وایم د مېلمه ښه عزت وکړه
آدم خان زما مېلمه دئ –ادې موري مهماني ورلره وکړه

مور یې په کټغ متغ اخته سوله، مستوره سره له مینځي را رهي سوله

مینځه یې دمخه و آدم خان ته واستوله چې ورته ووایه چې مستوره راځي دغه خلک دي ګوښه سي، مینځه راغله ورته وې ویل خلک ګوښه سول، مستوره په خندا راغله، آدم خان دا دې خواناره پر وکړه :

د لونګي ونې زانګي – شاه دره ده چې توتیان ناست دي تر لاندي
مستوره دغه ده راغله – دواړه لاسه ټکوي په کټکي خاندي

مستوري په جواب کې ناره پر وکړه :

د لونګو ونې زانګي – بېله شکه چې توتیان ناست دي تر لاندي
آدم هم تر لاندي ناست دئ – لویه ربه چندنې رباب د وړاندي

چې یعني تا وپېژندلم ما هم وپېژندلې، وروسته د مستوري یو ګل په لاس کي و، هغه یې په مټه کي پټ ونیو، و آدم خان ته یې وویل چې زما په مټه کي څه شي دي؟ مستوري اورېدلي وه چې آدم خان د ښو خلکو مرتبه لري، نو دې ازمېښت په کاوه، چې ښه دئ که بد، رشتیا ده که درواغ، آدم خان نادیده ناره پر وکړه :

دا زما زړګی ویېږي – پر خراب زړګي مې څه بلا تېرېږي
که خدای درواغجن نه کړم – باز درې د ګلو بوی بوی راولاړېږي

نو دا پوه سوله چې آدم خان ښه سړی دئ، مګر دا مینه وه توان یې نه کېدی، باره یې ناره پر وکړه :

یو که پرېږده پرېږده – درته وایم د دنیا کارونه پرېږده
که به زما و زړه ته ګورې – یو وار سر د مستورې په غېږ کي کښېږده

آدم خان فکر وکی چې نه مې ایله کوي، دالکه چې هم رابانديي مینه ده، یه راسه په خوله یې خوشحاله که، نو ځني ولاړ سه، چې ښرا در ته ونه کي، په جواب کې ناره پر وکړه :

مستورې د مور ملوکي – پر تمام جهان دي تللي د نوم کوکي
زه پخوا پر تا مین وم – چې لا ته وې سرکنډو د مور ملوکي

مستوره خوشحاله سوله، آدم خان ویل مور ځو، دې ویل راځئ ډوډۍ وخورئ بیا به ولاړ سئ، ده ورته وویل چې بیا به د هغې خوا دربانديي راسم، ډېري شپې به درسره تېري کم، ها ول ښه دئ، ناره د رخصتی پر کوي :

ښه سوه واى تماشه سوه – د شاهي آدم و ما ته اند ېښنه سوه
د درخو پر لوري درومي وا – ول شاهي آدمه ځه په مخ دي ښه سه

آدم خان پر يارانو ږغ وکي چي سپر پړئ ! څو دوى سره سپر پدله يو چورندک راغی پر يوه ښاخ کښېنوست، نو آدم خان و بلو ته وويل چي زما د مخه يې تش منګی تېر کی، زما کر که ده، چي کاميابه به سو يا ناکامه، نو زه پر دغه چورندک يو واری کوم د فال پر ډول، بلو ويل ښه دئ، ده چي وار پر وکی چورندک يې وويشت، بلو ناره پر وکړه :

پر ښاخ ناسته چورندکه – درته وايم چورندکه وچه کلکه
د آدم غشی دي وخوړ – د قضا وينه دي ولاړه تر مشوکه

لنډه دا چي د نکل کار دئ، د دغه ځاى څخه را رهي سوله هله هله دا دي راغله پير صالح ته، پير صالح او نور ډېر خوشحاله سوله، پير صالح ورته ويل چي دا تو پيرانو مرتبه دي په نصيب سه، آدم خان چي رنګا رنګ عالم وليد اريان ولاړ (وايي چي داسي واده تر اوسه په پښتنو کي نه دئ سوى)، آدم خان ويل چي ګمان نه کوم چي دا سوبه به مو روزي سي، پير صالح ويل چي بيغمه اوسه کار کوه اوس لا تاوز خان نسته، وخت داغه دئ، نو آدم خان راغلی بلو او ميرو پر يوه څنګ او پر بل څنګ د درخانۍ د خېمې د دروازې و مخ ته کښېنستله، ويل نور عالم دي لږ څه پر شا کښېني نه دي راځي، آدم رباب شروع کی، واده دئ، لومړی بلو خان ناره وکړه :

درخو ګوره زموږ ډله – پر صحي نخښه موږ آس و ځغلوله
هر چي ستا نظر پر وسو – هغه نخښه آدم خان ونړوله

بيا آدم خان ناره پر وکړه :

درخو تا لره راغلی – مته خېل آدم خان دئ مزله وهلی
ته خو يو وار نظر وکه – پير صالح و تا ته هم دئ درېدلی

بيا ميرو ناره پر وکړه :

بي بي خپل ديد دي تنور کړ – آدم خان دي په زړګي باندي چور چور کړ
ته زړه ورکه زړه به درکي – شاه درخانۍ که پوړنی له مخ دور کړ

دلته تتر خان هم ولاړ و د آدم خان تربور و، په سيالي سره يې پر درخانۍ ناره وکړه :

بي بي دا ټوله پيران دي - درته وايم دوی له ښلمي غادران دي
نظر کړه وای پر تترخانه - تترخان غونډي زلمي دي ستا د وړاندي

آدم خان په دې خبره ډېر خپه سو، چي ناحقه يې غادران وبللو، نو ده په جواب کي ناره پر وکړه :

مټه خېل مي توريالیان دي - درته وايم دوی له ښلمي شاعران دي
درخو يو وار نظر وکه - چي دا ناست ولاړ مي وارړه نوکران دي

بلو خان پسې ناري کړه :

بي بي بد وايي بدان دي - درته وايم چي ويل که شيطانان دي
خپل نظر پر آدم خان کړه - آدم خان سره ولاړ د بڼ توتيان دي

پر تتر خان د بلو ناره بده ولګېده، چي اول زما مريي وې، اوس څه وايې، نو يې په جواب کي ناره پر وکړه :

خامه بلو خامه - ته تر خوله خبره مه باسه بې پامه
ته اول مريي زما وې - د کابل پر نخاس ودرې غلامه

ميرو پر ناري کړه :

خانه تتر خانه - درته وايم ته غلط ولاړې نادانه
نن سودا د آدم خان ده - ته په دواړو ستر ګو ړوند سې تترخانه

تترخان په جواب کي په درد ناره پر وکړه :

ته غوږ باسه ميروګيه - زه تتر خو لا مړ نه يم، يم ژوندیه
د زړه مراد به مي حاصل سي - چي يو ځل خو مي ته مړ کړای ړندکيه

بيا آدم خان يې په جواب کي وويل :

ته چي وار پر ميرو خان کړې - درته وايم دغه وار دي پر خپل ځان کړې
چي ميرو راڅخه وژنې - مګر شاهي آدم خان ورک پر دې جهان کړې

دا ناره چي يې وکړه آدم خان فکر وکی، چي اوس به يوه لړه جوړه سي اصل مراد مو پاته سو، نو سړی يې پير صالح ته ولېږه چي که دا کار تترخان کوي خو دی دې وکي زه مو څله راغوښتم او که يې نه سي کولای نو دی ولي په ښادي کي غم اچوي تربور ګلوي راسره کوي. څه سر دي ګرځوم تترخان و پير صالح ته وويل چي که د آدم خان هم دا کار د لاسه ونه سي نو به څه کوي؟ آدم خان وويل که مي دا کار د لاسه ونه سي د وطنه به ورک سم،

پیر صالح پر تتر خان امر وکی چې چپ سه غرض مه په لره، دی هم چپ سو، درخانۍ خو هم غوږ نیولی دئ، دا خبرې ټوله اروي، نو د دې خوا بلو بیا پر درخانۍ ناره وکړه:

آدم سر درباندې ایښی - بې بې نه یې له شاهي آدم ګوښی
تتر کښېنوست څوړې سترګې - شاه بې بې یې و آدم و ته پرې ایښی

دا ناره چې درخانۍ واورېدله، چې آدم خان کلک ولاړ دئ که مخ ورښکاره نه کم آدم خان د ټوله وطنه ورکېږي، او زما ژوند د آدم خان په دید دئ، نو لږ څه یې زړه وکی په دروازه کې یې په داسې ډول ځان ښکاره کی چې نورو ونه لیدله بلو لږ څه ولیده، نو بلو پر آدم خان ناره کوي:

نن زړګی زما ویېږي - درته وایم چې په وره کې لمر ځلېږي
اوس ویل که زما صاحبه - دا درخو به اوس سرتوره ودرېږي

آدم خان ډېر خوشحاله سو نو ناره پر کوي:

له دې هسې غمه مرونه - درته وایم بې بې ورک دې سې کبرونه
ستا نظر ګوره پر چا دئ - بې بې ولې په دعوه تړې تربرونه

دې خبرې پر درخو لږ څه اثر وکی، نرمۍ ته یې وویل چې دا ناره د چا وه، دې ویل د شاهي آدم خان ده، درخانۍ ویل چې آدم خان څرنګه دئ څنګه کالي یې دي؟ دې ورته ویل چې آدم خان زرغون توتي دئ، رباب یې په غېږ کې دئ د توتي په شان ویېږي، زرغونه کالي یې دي، درخانۍ په داسې ډول و آدم خان ته وکتل چې دا ګمان یې و، چې ما ولید او دوی نه یم لیدلې، په دې مابین کې آدم خان مخ، او نته و پېزوان ولیدل، بلو یې د سرو زرو لاسوندي ولیدل، میرو یې د غاړې امېل ولید، نو اول میرو خان ناره پر کوي:

یو د بله زموږ بول دئ - درته وایم د آدم سره زموږ ټول دئ
بې بې لو نخښه دې دا ده - چې په غاړه دې د سرو زرو تانبول دئ

بلو خان پسې ناره کړه:

د آدم خان یاران زمري دي - درته وایم یو تر بله ګړندي دي
د بې بې نخښه داغه ده - چې په لاس یې د سرو زرو لاسوندي دي

غوږ دې دئ، ښه! آښه! د آدم خان وار دئ ناره پر کوي:

خان دئ آدم خان دئ – درته وایم عالم ټول ورته اریان دئ
د سرو تته دي په پزه – چي د زړونو سره جنګ کا ستا پېزوان دئ

داناري چي درخو واورېدلې ونرمۍ ته یې وویل چي دا زما پسول چا ورښوولی دئ، دې ورته وویل چي هیچانه دئ ورښوولی آدم خان پخپله بزرګ دئ ورمعلومه ده، درخانۍ فکر وکی چي شل پوړني هم پر سر واچوم، نه پټېږم نو څله مي ځان په عذاب کړی دئ، په آخر کي یې فکر وکی چي د آدم خان د دید له پاره مي ځان په ستر کړی و، ما ویل بې آدم خانه به مي بل څوک ونه ویني، اوس چي دی راغلی دئ زما د دیدن له پاره زه لا ځان ځني پټوم؟ نو میني زور پر وکی د خېمې څخه راولاړه سوله دروازې ته چي راغله نرمۍ ونیوله چي مه وزه خلک دي، په دې ترځ کي آدم خان بیا د خېمې تر تنبو ولیده ناره کوي او رباب ته زور ورکوي:

د درخو د سترګو کسي – د تنبو تروت مي ولیده په کسي
د آدم زړګی یې کش کی – دایي ګاني پوري مبتلي نجلۍ نیسي

دلته پر درخو خورا میني زور وکی، د واکه یې ووتله، د دې او د نرمۍ په دغه کشمکش کي د درخو د سر څخه ټوله پوړني ولوېدله، نژدې وچي درخانۍ د میني په حال کي سر توره راووزي، پر آدم خان هم د درخو میني غلبه وکړه، شاباز یې په داسي شرپ و رباب ته ور واچاوه، چي درخانۍ څه چي نور یې لا د حاله وایستله، د خېمې څخه نرمۍ ناره وکړه:

توره آدمه توره – چندنۍ رباب دي مه وهه په زوره
چي دا ستا د رباب بړغ سي – په درخو مي اور لګېږي لور د لوره

څه سر دي ګرځوم تا ته مي دي وویل سي، نو شاوخوا خلکو وویل چي اوس لکه چي درخانۍ راوزي، نبایده چي یوه بده و بېرانه پېښه نه سي، دستي یې پیر صالح ته وویل چي ته راسه دا حال یې ورته ووایه، پیر صالح راغلی ناره یې وکړه:

د چندنو ونه ګوره – درخانۍ ده په آدم پسي ترهوره
دواړه لاس پر تندي کښېږده – و میدان و ته راووزه ته سرتوره

درخانۍ ته درد ورغی ورناري یې کړه:

پیر صالح حیلې باړې که – پر بې بې درخو د بدو اندېښنې که

درخو به مخ درښکاره نه کي – پیر صالح که ږیره غوټه پر منځ پرې که

پیر صالح چپ سو، ویل څه بابا دا یې تاسي دا یې درخانۍ، زه بېزاره یم، نو بلو خان ناره پسې وکړه :

آدم خان غواړي شکري – لویه خدایه سودا ګر نه دي راغلي

د آدم د زړه دپاره – درخانیه یو وار ګښت وخوره په کلي

په دې ناره سره پر درخانۍ مینې زور وکی، بې واکه راوتله، ویل چې د ښتنو نجونې ټولي دباندي ګرځي، ګودرو ته وزي نو ځو تر ځو به پټه ګرځم، آدم خان چې ورتـه کتل، د دیدن توان یې نه درلود سترګې یې کښته واچولې، نو بلو ناره پر وکړه :

آ درخو ملوکي – پر تمام جهان دي ولاړې د نام کوکي

آدم ستا کتو رنځور کی – ورته کوز کړه دا د دواړو زلفو ځوکي

درخانۍ ور تېره سوله د آدم خان پر خوا، پر آدم خان حیا غالبه سوله خپل رباب یې و مخ تـه نیمره ونیو، درخانۍ فکر وکی چې پر مخ لکه چې عیب لري، نو ناره یې پر وکړه :

که سخ وا آدمه سخه – پر دا ښې باړخو دي خال دئ که دي زخه

که به زما و زړه ته ګورې – چندنۍ رباب دي لیرې که له مخه

آدم خان د مخه څخه رباب ایسته کی، درخو ته یې وکتل، درخو هم د حیا څخه و مخ ته لستوڼی نیولی و، آدم خان په شکې سو، چې لکه چې پر مخ عیب لري، نو ده ناره پر وکړه :

د درخو زړګیه سخه – دښمنان به زمو ړلري په زړه کي رُخه

که به زما و زړه ته ګورې – اې بې بې لستوڼی لیرې که له مخه

دې چې لستوڼی د مخه ایسته کی، آدم خان چې ورتـه وکتل بې سده سو، ټوله یاران یې لاس و پښه سوله، چې خیر په خان څه وسوله، پیر صالح دم و چو پر کوله، درخو خو یې په مرض پوهېدله، نو را تېره سوله خپلې ناړې یې په خوله کي ورکړې، ناره یې پر وکړه :

په دا پوري غره اور پو کړې – درته وایم پیر صالح مي دم و چو کړې

آدم زما کتو رنځور کی – لویه ربه زما ناړې یې دارو کړې

لنډه دا چي آدم خان ته يې ناړي په خوله کي ور کړې، آدم خان پر هوښ راغی، فکر يې وکی چي دا دونه سيالان او تربرونه ولاړ دي، د رسوايۍ ځای دئ، څه نه کېږي، نو يې و پير صالح ته وويل چي درخانۍ مو هغه ده وليدله، اوس نوزه ځم د خدای په امان. پير صالح رخصت ورکی، آدم خان رهی سو، دی چي د بسکۍ د کوره ووت درخانۍ د بېلتون توان نه درلود، پر هغه ځای بېهوښه سوله، دستي نرمۍ راغله و ترور ته يې وويل چي درخانۍ دي په زوره راوستله هغه ده بېهوښه پرېوتله، د پلار جواب به يې څه کوې؟ ترور يې سره وارخطا سوله، سپلني يې راواخيستله دود يې کړه، چي اثر يا پېری به وي، درخانۍ ناره پر وکړه :

ولي مي سېزيېيه – درته وايم ولي اور رالګويه

آدم روح و له ما ولاړی – په دا تش کالبوت په څه ګر ځم ژونديه

نو ترور يې پوه سوله چي پېری نه دئ، لېونۍ سوې به وي نو يې پوښتنه ځني وکړه، چي درخو څه در وسوله، لېونۍ سولې، که ناجوړه؟ درخو ناره پر وکړه :

روغه يم نه لېونيه – په آدم پسې به مرم دغه ګرېه

دلته روغ رمټه راغلم – د آدم مينه اوس اور رالګويه

نرمۍ پر ژړله، په سوګليو کي يې ناره پر وکړه :

ونيولم دومي – غاړه ټوله کا کوي زما تر کومي

آدم کوچ وکړ روان سو – درخانۍ دي پسي ولوړي چي درومي

درخانۍ هم راولاړه سوله، چي دوه ګامه يې واخيستل، زړه يې ډوب ډوب کېدی، ناره يې وکړه :

څه د غم واده و وای – درته وايم د دې واري بسکيه

روغه وم رنځوره ولاړم – د آدم غشي مي وخوړ پر پوښتيه

ترور يې ورته وويل چي اوس مه ځه ناجوړه يې، چي لږ څه ښه سې ولاړه به سې، درخانۍ په جواب کي ناره پر وکړه :

څه سوه د شاهي آدم ټوليه – چي په دوک باندې اخته کړه درخانيه

چي يې کوچ وکړ روان سو – اوس به زه ورپسې ځم تر پلرګنيه

ترور يې فکر وکی، چي د آدم خان د کور پر خوا لکه چي ځي، باره يې

ورته وويل چي ته وګوره هغه ځاى وګوره دى په هغه وطن كي دئ، ته دلته يې، چيري مو ياري سره كېږي، نو درخانۍ ناره پر كوي :

ربه ټوله ستا رضا ده – چي د بل ولات ياري د سر سودا ده
آدم مه را ياد ويه – په آدم پسې مي ماته نرۍ ملا ده

باره ترور هم ورسره را رهي سوله، چي تر كوره يې ورسوم، دوى نو دالته پرېږده چي مزل كوي، آدم خان پسي راواخله، آدم خان چي را رهي سو، په لار كي يوه چينه وه، پر دغه چينه يو ګړى كښېنوست، تر دې مابين يو سړى ورغى د آدم خان و پلار ته يې وويل چي پايو خان د بسو واده له ولاړ، آدم خان دوى پر پلانكۍ چينه په لار كي ناست دي، نبايده جنګ سره ونه كي، شمشالخان او حسن خان دستي را رهي سوله راغلل و آدم ته يې ويل چي راځه كور ته، آدم خان بانه ورته وكړه چي تاسي درځئ، زما لښنده د كمانګر كره ده، ور كړې مي ده كږه وه چي سمه يې كي، چي زه يې وګورم چي سمه كړې يې ده كه يه؟ حسن خان ناره پر وكړه :

څوك مي ستا له غمه خلاص دئ – درته وايم چي ستا غم نه كه خناس دئ
دښمنان دي زښته ډېر دي – سپى غليم درته ولاړ غشى په لاس دئ

آدم خان په جواب كي ناره پر كوي :

كه سخه نن زما زړګيه سخه – څوك دي نه كه پر يوه آدم خان رخه
پر دې لاري كه زه مړ سم – وا به نه وړم د درخو له سپينه مخه

حسن خان فكر وكى چي راسه توتيا ور په ياد كه، ګوندي درخانۍ يې هېره سي، نو ناره پر كوي :

خانه آدم خانه – درته وايم د دې وراري توتيا ځانه
پر توتيا باندي مين وې – آدم خانه څه بلا مو سوه تر ميانه

نو آدم خان په جواب كي ناره پر وكړه :

بابا مه كړه دا خبره – د هر چا خپله خبره په زړه غوره
دا توتيا كه زر دانه ده – بابا پلاره درخو سپينه مرغلره

پلار يې فكر وكى چي نه راسره ځي وروسته ټوله ځني رخصت سوله، يو بلو خان او ميرو او شمشال خان ورسره پاته سوله باره را رهي سوله د كمانګر كلي ته آدم خان كه ګوري چي دمخه يې يوه ډله ښځي دي ځي، آدم

خان وپېژندله چې د درخانۍ ټولۍ ده، و بلو خان ته يې وويل چې دغه که خدای درواغجن نه کړم د درخانۍ ټولۍ ده، بلو ويل نه به وي؟ آدم خان ويل اوس به يې معلوم کړم، نو يې ناره پسې وکړه:

بي بي درخو دي نوم دئ - درته وايم دا ستا نيت راته معلوم دئ
څه خو مخ راپټنه که - نه پوهېږم د بي بي پوړنی کوم دئ

درخانۍ چې دا ناره واروېدله د خوشحالۍ لمر پر راوخوت، په جواب کې يې ناره وکړه مخ يې ورته راواړاوه:

آدم خان د رېدي ګل دئ - قلندرو نجونو اېښې پر اوربل دئ
برابر راځه آدمه - د دې ټول سردار زه يم ټول مي خپل دئ

آدم خان د شمشال خان څخه شرمېدی د درخانۍ سره يې ښه سوال و جواب نه سوای کولای، درخو نرمۍ ورته راولېږله چې ورسه و بلو ته وا تاسي چيري ځئ؟ نرمۍ د بلو څخه پوښتنه وکړه، بلو ورته وويل چې د کمانګر کره ځو، درخانۍ ولاړه آدم خان ميرو ته وويل چې ما خو بانه کړېده، ته ورسه پټ و کمانګر ته وو ايه چې آدم خان راځي، ستا څخه به د لېندۍ طلب وکي ته به ښه سوال و جواب ورسره وکې چې درواغجن نه سي ما يوه بانه کړې ده، ميرو راغی مياخان کمانګر يې وپوهاوه، هغه ويل پر غبر ګو لېمو، آدم خان دوی چې راغله، د مياخان څخه يې پوښتنه وکړه چې زما لېنده دي سمه کړې ده که يه؟ مياخان ويل لا مي نه ده جوړه کړې. د کمانګر لور وه زربخته نومېدله، دا سوال و جواب چې يې واورېدی ناره يې وکړه:

خانه آدم خانه - نه پوهېږم دغه زما بابا نادانه
ستا د زړه لېنده درخو ده - درته وايم چې يې نوم پر درست جهانه

شمشال خان پوه سو چې آدم خان بانه کړې ده يو چم کوي، هلته درخانۍ يو دسمال د ډول ډول ګلانو ډک کړی و، و نرمۍ ته يې وويل چې دا يوسه د کمانګر کره و آدم خان ته يې ورکه، نرمۍ چې دسمال راوړی آدم خان دوی دباندي راوتلي دي دسمال يې و شمشال خان ته ورکی دې چې ويل دا آدم خان دئ، ولي چې د آدم خان او شمشال خان سکې سره ورته وې، دستي شمشال خان و آدم خان ته دسمال ورکی ناره يې وکړه:

آدم خان په ګلو پوه دئ -زما نه زده چي کم ګل د ننداړو دئ
یو بېلک درپسي راغی -درته وایم دا بېلک مي د درخو دئ

**د آدم خان په زړه دي وه، آدم خان ناره کوي :**

د درخو په دسماله کي -چي ګلان پکښې پراته دي توکي توکي
له اختیاره به وانه وړم -که سبا پر بېلک پروت یم پړوکي پړوکي

په دې ناره سره یې نرمۍ وپوهوله چي ستا بېلک راوړسېدی او زه هغسي پر تا شیدا یم، تر مرګه پورې، نرمۍ یې رخصته کړه، بلو راغی آدم خان پټ ورته وویل چي هغه نرمۍ دایي راغلې وه، بېلک یې هم راوړی و، ما د شمشال خان څخه خار خوړ، ښه سوال و جواب مي نه ورسره وکی، ته دستي پسي ور الا که په لار کي بې لاندي کې، ورته وبه وایې چي پر درخو مي سلام وایه ورته وا موږ درځو، بلو دستي را الا کړه نرمۍ یې په وچه کنده کي لاندي کړه دا بیان یې ونرمۍ ته وکی، نو بیر ته راغی، نرمۍ راغله ټوله بیان یې سر تر پایه و درخو ته وکی، ورته وې ویل چي آدم خان که نن وي که سبا رابه سي.

څه سر دي ګرځوم آدم خان و شمشال خان ته وویل چي ته رخصت یې ولاړ سه کور ته، زه ستړی هم یم نه سم تلای، او بل به کمانه جوړه سي بیا به موږ پسي درسو، شمشال خان ویل ښه دئ، شمشال خان پټ و میرو ته وویل چي آدم خان خو په درخانۍ پسي نه ځي، که ځي زه به هم ورسره یم، دښمن دار دئ نباید چي څه ورپېښه نه سي، میرو ورته وویل چي یه نه ځي که تلای تا غوندي توریالی تربور یې چیري د ځانه جلا کاوه، آبس شمشال خان ولاړ، آدم خان و میرو ته وویل چي خبر خو دي نه کی، هغه ویل چیري مي خبر اوه، زه خو ستا د پټ راز یار یم، ده ویل آفرین ! وروسته آدم خان بلو ته وویل چي زه او میرو ځو درخانۍ لره، ته به مجلون آس تر جلو ونیسې په وچه کنده کي به زموږ تر راتلو ګورې، ده ویل پر دواړو ستر ګو.

آبس ماښام میرو او آدم خان سره رهي سوله د درخو کلي ته راغله، د درخو کلا خورا لوړه وه د کلا دروازه یې تړلې وه. شاوخوا پر کلا وګرځېده، هیڅ لار یې پیدانه کړه، چوکیداران بیده دي چپه چپایي ده، آدم خان خپله د کمند رسۍ چي د میرو څخه وه کلا ته وغورځوله، ور وخوت شاوخوا یې

وکتل هیڅوک نه وه، نو میرو هم ور وخوت دواړو په رسۍ ځانونه ور وځړول. د درخو د خوني هیڅ درک نه دئ ور معلوم. آدم خان و میرو ته وویل چي اوس یې پای څه؟ میرو ویل بېغمه اوسه میرو وګرځېدی، یو سړی بیده دئ، کرار یې وښوراوه، مریی و راویښ سو، چي ناره به یې کوله، میرو ویل چپ چي مړ مي کړې، موږ غله نه یو نه غلا کوو، بیر ته ځو، یوه پوښتنه درڅخه کوو آدم خان جېب ته لاس کی لس اشرفی یې و مریي ته چي بوجه نومېدی ور کړې، مریی خوشحاله سو ویل راسئ چي په خونه کي مراد وواېو، بوجه دوی خپلي خوني ته ننه ایستل، مینځه راویښه سوله ویل څه نکل دئ، بوجه ویل بږغ مه کوه، مینځي ته یې څه پیسې ور کړې، بوجه ویل ښه اوس نو مطلب وایاست، آدم خان ویل چي فقط د درخانۍ دیدن ته راغلي یو بیر ته ځو، درخانۍ چیري ده؟ خونه یې کمه ده؟ څوک ورسره سته که نسته، دروازه یې څنګه خلاصه کو، بوجه ور ته ویل چي دا کلا یوازي د درخانۍ ده یوازي پکښې اوسېږي. دلې دننه یو زه یوه دغه مینځه ده، مګر دباندې پلار پیره پر درولې ده، خونه یې دغه ده وربه سې تر هغه سوري به لاس ور ننباسې تمبه به لیري کې زیاته هر څه چي کوې. موږ مه یادوه، بیا مو تاوز خان وژني، موږ ځان ناخبره اچوو بیر ته بیدېږو.

آ بس آدم خان ورغی دروازه یې ور خلاصه کړه ورننووت، میرو پیره کوله، درخو پر پلنګ پر ته ده څراغ مړ دئ تاریکه ده، آدم خان ور تېر سو د درخو پر سینه یې لاس کښېښود درخو په راویښه سوله ګمان یې د پایو پر وکی، باره یې په دغه ځګر کي په سوک وواهه، آدم خان ځني پر شا سو، هیڅ بږغ یې ونه کی، د خوني و تمبې ته ودرېدی چرت واخیست، درخانۍ فکر وکی، چي که دا سړی پایو وای، نو بازۍ به یې راسره شروع کړي وای، په زوره به یې لاس را اچولی وای، یه نو که و آدم خان دئ، بل څوک د بیري چیري راتلای سوای او نه دونه زړه کولای سوای، وروسته یې ناره پر وکړه (غوږ دي دئ ته به وایې چي آدم خان په پټه ورغلی نو دوی نارې څنګه سره کولې، زه وایم چي د نکل کار دئ نه سره لګېږي، البته د مین پر ډول کرار کرار د ناز او د ګیلو پر ډول وې، ښه)، څه بې ویلي وي وابې روې :

آدم خان مي نه ګټلې - درته وايم پايوګی مي و شمېرلې
په منګل مي ووهلې - دواړه لاس مي خدايه وچ کې تر څنګلې

**آدم خان په جواب کي وايي :**

مه دي ماتي سه خپړي - درته وايم مه دي وچي سه څنګلي
په څه درب دي ووهلم - تر پېله ورېښم پستې وې ستا منګلي

**د درخو وار دئ :**

چي واده و دا د وراري بسکی - هلته ورغله آدم و درخانۍ
زحمت ډېر رابانده تېر سو - راسه پاس پر پلنګ کښېنه پر نالۍ

**د دوو مينو مجلس دئ، درخانۍ ورته ويل چي زه دوه سوالونه درڅخه کوم جواب بې راکوې، ده ويل وکه ! درخانۍ ورته ويل چي په دې نيمه شپه مالره راتلې نو څه شي دي سوغات راوړی دئ؟ آدم ويل زړه ! بيا درخانۍ ويل چي د ټولي دنيا تلتک څه شي دئ؟ آدم خان ويل شپه ده :**

دا خدمت زما پر ځان دئ - نن شاهي آدم زما کره مهمان دئ
اوس به زه ورلره ځمه - سپينه خوله يې مېلمستيا ځای يې دالان دئ

**نو درخانۍ آدم خان تر لاس ونيو راولاړ يې کی، اول دا پر پلنګ وختله، آدم خان يې وروسته کی، آدم خان د ګيلې پر ډول بيا ناره پر وکړه :**

بي بي ستا د بې رحميه - کبر جنه يې هيڅ نه لرې زړه سويه
آدم دي کوز پر ځمکه پرېښو - او درخو پر پلنګ وخته لومړيه

**بيا درخو په جواب کي ناره پر کوي :**

ديدن نه سي په ولاړي - په خولګۍ کي مي اوس وچي سولې ناړي
خانه ته که نه راخېژې - ګوښي ګوښي د اوربل وېښته مي ژاړي

**په دغه ګيلو و په نارو کي شپه پر تېره سوله، د ساده مينو کار دئ په زړو کي صادق دي، بې ديدنه نور څه يې په زړو کي نسته په دغه کشمکش کي يو وار نابېره د درخو يو چرک اذان وکی، دواړو آه کړه درخو ناري کړه :**

اې زمونږ چرګه کولنګه - ستا په ستوني کي دي خونږ سي اې بدرنګه
سبا نه و تا سبا کی - دا شاهي آدم دي کوز کی له پلنګه

**درخانۍ د درده ور ولاړه سوله د ښو سره يې پر اور کباب کی، نو آدم خان د چرګ پر حال ناره وکړه :**

په چرګ هسي پسات وسو – درته وايم خلکو ګورئ حال يې څه سو؟
ده بې وخته آذان وکی – ژوندی چرګ مي له وزرو سره وسو

درخانۍ ناره کوي:

د چرګ عقل د تاوان و – درته وايم چي لا اوس سري ما بنام و
له جنته آدم بيايي – بل ګمان وربانديمه کوه شيطان و

وروسته آدم خان ورته ويل چي چرګ بې وخته آذان وکی، سهار لا ليري دئ، ګرده شپه دي په ګيلو تېره کړه، درخانۍ ويل خود به يې کوم زه درخويم او ته... نو يې د ناز له رويه ناره پر وکړه:

آدم نه وې ما آدم کړې – درته وايم د سرو سره مي سم کړې
د کنجکو سوداګر وې – آدم خانه ما پر تور پېکي مين کړې

آدم خان بيرته ناره پر وکړه:

زه لا هلته خدای رسوا کړم – درخانيه چي پر تا باندې شيدا کړم
ته به خود په برېر وايې – درخانيه زې احتياج ستا د خندا کړم

دا هم پر خپله تانه پښېمانه سوله په جواب کي ناره پر کوي، بيرته يې زړه ښه کوي:

مه خپله آدم خانه – درته وايم د يوسف د مندڼ خانه
چي ته نه يې تش کالبوت يم – آدم خانه ته يې روح زما د ځانه

درخو چي وکتل خوني ته د سهار رڼا رالوېدلې وه، و آدم خان ته يې ويل چي رڼا ده سهار سو، نو يې په ژړا کي ناره پر وکړه:

خانه زړه زما خوږېږي – درته وايم چي مين له ما بېلېږي
ولي به نه ژاړم صاحبه – چي رڼا د سبايي ده سبا کېږي

آدم خان څه ناره پر کوي، آه:

چي وهلی دي د ميني په نېزه دئ – بندي سوی ستا د سترګو په کاته دئ
دغه ستا د مخ رڼا ده – سبا نه دئ عالم تول په تاريکه دئ

څه درته ووايم د دوو مينو د بېلتون وخت دئ، وار په وار رانژدې کېږي، نورو چرګانو آذانونه وکړه، په درخو اور لګېږي ناره کوي:

ما له تا سره کيسې کړې – درته وايم په ژړا مي سترګي سرې کړې
ولي به نه ژاړم صاحبه – د سهار چرګانو ځای پر ځای نارې کړې

آدم خان په جواب کي ناره پر کوي :

دا چي زما په زړه کي اوري - شيخ يې نهويني په خاب ملا په توري
هغه ستا د چرګ حال څه سو - نور چرګان دي هم د ده و حال ته ګوري

دوی په دغه خبرو او نارو کي وه چي يوه ويل سهار دئ، بل ويل شپه ده د بېلتون په وير اخته وه، چي د تاوز خان د مېرو د رمېدو وخت سو، مېږي امبا کړه درخانۍ د مېږي ناره واروېده ناره يې پر وکړه :

په ستوني کي دي خوږ سه - درته وايم د بابا موندیه مېږي
سبا نه و تا سبا کړ - دا شاهي آدم دي ويوست زما له غېږي

څه سر دي ګرځوم ميرو خان فکر وکړ، چي بېخي رڼا سوله سهار سو، دوی خو سره ميړان دي يو د بله په ديدن نه سره مړېږي، باره يې آدم خان ته وويل چي راځه چي د درخو څخه رخصت سو، درخو چي د ميرو ږغ واورېدی، وارخطا سوه، ويل دا څوک دي؟ آدم خان ويل بېغمه اوسه دا مي توريالی يار دئ چي پر ما و پر تا تر ټولو دمخه سر ايږدي، پس له هغه درخو و ميرو ته وويل چي آدم خان خو په سد کي نه دئ، زه تا ته څلور خبري کوم په غوږ کي يې ټينګي ونيسه. لومړی دا چي آدم خان بېسده سي او څوک يې پوښتنه کوي نو حال مه ورته واياست، دوهم دا چي آدم خان کور ته ورسي نو په يوه لوړ دالان کي دي اوسي، چي زما د خواباد پر لګېږي، دريم دا چي څوک دي روغېږ نه ورسره کوي چي دغه زما د کالو بوی څني ولاړ نه سي، څلرم دا چي زه و آدم خان مړه سو ته به په دې ملک کي نه اوسې، ځې به هندوستان لره چي پته دي ورکه سي. دا وصيت يې و ميرو ته وکی، نو يې نرمۍ راوبولله چي ورسه چوکيداران به په يوه بانه بير ته کړې نرمۍ راغله چوکيداران يې ايسته کړله، آدم خان دوی يې پټ را وايستله تر کلي يې تېر کړه نو درخو ناره پر وکړه :

آدم خانه څله مېر کړې - درته وايم دغه زما ښه به ته هېر کړې
چي سهار سو لمر راوخوت - آدم خانه تر پلو لاندي مې تېر کړې

درخانۍ ولاړه کور ته، دا چي ورتله مور يې راغلې وه، مور چي يې ورته وکتل ښه يې پر بل پهېر وه پوښتنه يې څني وکړه چي لوري آدم خان خو نه دئ درلره راغلی، دې ناره پر وکړه :

حلق زما ټوله ګند هېر سو - چي مي نوم د آدم خان تر غوږو تېر سو
نه ليدلی نه کتلی - ادې موري د دنيا روزګار مي هېر سو

بله ورځ درخانۍ د ګلباټ تکيې لره ورغله، په تکيه کې تور توت وه، څو دانې يې وخوړلې نورو خولې پاکي کړې د درخانۍ خوله توره پاته وه، څه سر دي ګرځوم آدم خان هم هلته راغی، آدم خان د ليري درخانۍ وليده ناره پر کوي:

که زوره د خدای زوره - د درخو ټولۍ راغلې لور د لوره
ما چي ښه فهم پر وکړ - سپينه خوله يې د ګلباټ په توتو توره

درخانۍ په دې ناره ډېره شهيده سوله، ونرمۍ ته يې درد وکی چي خواره سې تا خو به راته ويل چي خوله دي پاکه که، دلته يو لوی کاڼی و، درخانۍ ځان تر دغه کاڼي نيهام کی خوله پاکوي.

آدم خان ناره پر وکړه:

دوه مين دي يو ځای کېږي - درته وايم نن يې ناز پر خدای قبلېږي
کاڼی زموږ تر منځ رقيب سو - دغه کاڼی دي اوس دوه ټوکره کېږي

وايي چي کاڼی دوه ټوکره سو د درخو سيل يې ښه وکی، آدم خان لمر وهلی تږی سوی و، پر درخانۍ يې ناره وکړه:

درخو نن دي مېلمانه يو - درته وايم مغل نه يو پښتانه يو
ستا په جام کي اوبه راوړه - درخانيه برني د تندي مړه يو

پس له هغه د درخانۍ څخه د مرمرو جام و، شربت يې پکښې جوړ کړه و آدم خان ته يې ورکړه، ميرو فکر وکی چي آدم خان د درخانۍ څخه نه ځي او نه بايد دی دښمن داره دئ، سپينه ورځ ده يو پسات پېښ نه سي. نو يې ورو آدم خان ته وويل چي مراد دي د درخو ديدن و، ودي کی، اوس نو ښه دا ده چي د دې ځايه ولاړ سو، آدم خان ناعلاجه سو ويل ښه دئ. باره يې د خدای په اماني سره واخيستله، درخانۍ د کور پر خوا رهي سوله آدم خان د کمانګر د کلي پر خوا رهي سو، د کمانګر کلي ته راغله هلته چي شمشال خان کور ته ورغی حسن خان ورته ويل چي آدم خان دوی څه سوله؟ ده ويل چي هغه د کمانګر کره پاته سوله، حسن خان ويل چي چټک به په نيمه شپه پسي غورځې راولې به يې، هغه دښمن داره سړی و تا څنګه پرېښو، څه

سر دي ګرځوم شمشال خان توپ ټک د میان خان کره راغی، ویل آدم خان دوی څه سوله؟ هغه ویل چي پرون تللي دي بیا مي نه دي لیدلي، شمشال خان بیر ته د کلي راووت راتلی آدم خان دوی په مخه ورغله، شمشال خان چي و آدم خان ته وکتل ویل فضل وکړ څه سوي دي، میرو خان ویل چي د خدای کارونه دي خیر دئ. شمشال خان ته یې هغه د درخانۍ څلور وصیتونه وویل چي ته به دمخه چټک ځې د آدم خان پلار ته به دا وصیتونه کوې، د آدم خان ځای په لوړ دالان کی جوړ کړ، او ده له به څوک روغبړ ته نه راځي، د ده حال به نور چا ته نه وایاست، شمشال خان د روه را رهي سو راغی، حسن خان ویل چي آدم خان دوی څه سول؟ ده ورته وویل چي هغه کرار کرار راپسې وه لږ څه ناجوړه و، ټوله بیان یې ورته وکی، آبس پلار او نور خپلوان یې مخې ته راووتل، د آدم خان دوې خوندي وې یوه نیازمنه او بله نازو نومېده، چي نازو یې و قطب خان ته ورکړې وه، لومړی نیازمني ولید چي آدم خان پر آس سپور و کرار کرار راتېکېدی، پښې یې له رکابه ختلي وې نو یې ناره پر وکړه:

په ژړا مو ټول خپلوان دي – د لالا پښې په رکیب کي اوېزان دي
چي لالا دي ژوندی مړ که – درخانیه ته هم ومرې زما د وړاندي

بیا توتیا ناره پر وکړه:

خانه څه کانه دي وکړه – پلار و مور او نور پر تا ما بېګانه کړه
پر درخو باندي مین سوې – د توتیا مینه دي څه لره ایله کړه

حسن خان ږغ پر وکی چي آدم خانه! هیڅ ږغ یې ورته ونه کی، ټوله په دغه ویر کي وه چي آدم خان یې کور د آسه څخه کښته کی، په لوړ دالان کي یې ځای ور واچاوه ډوب پرېووت، میرو ویل چي هیڅوک به روغبړ نه ورسره کوي، او نه دي د حال پوښتنه څني کوي، خدای تعالی به یې جوړ کي، که یو هوښیار طبیب مبیب پیدا سو خو ښه که نه وي څوک دي غرض نه په کوي، آول ښه دئ.

درخانۍ هلته د بیلتانه د میني ډوبه پر ته ده، باره یې هغه د دې اوستاز ورلره راووست، دم و چو یې پر وکی، درخانۍ پټ و ملا ته وویل چي هم ثواب او هم دنیا ګټې نو زه به د زړه خبر درته وکم، ده ورته ویل چي زه دي

راز پټ ساتم بېغمه اوسه او ستا خدمت پر سر او پر سترګو کوم، درخانۍ ورته ویل چي زه و آدم خان په کوچنیوالي لا چي پر تا مي سبق وایه مین سوي یو، اوس بېل یو، دی هلته د بېلتون د درده رغړي زه دلته، نو که ته ښه کوې دغه ګوتمۍ به یوسې د حسن خان کره به د طبیب پر ډول ورسې، دا ګوتمۍ به و آدم خان ته ورکې زما سلام به پر ووایې حال بې راوړې، هغه به هم خوشحاله سي هم به ډېري روپۍ درکي، ده ویل پر دواړو سترګو.

آبس ملا ګوتمۍ راوخیستله په یوه تراټ راغی د حسن خان د کلا دمخه یې وویل چي زه طبیب یم، د بېهوښۍ د مرض علاج کوم، بلو راغی و حسن خان ته یې وویل چي یو طبیب دئ، حسن خان ویل ورسه رایې وله، طبیب یې راووست نوري ښځي ایسته سولې.

پس له هغه ملا کرم علي پټه ګوتمۍ د جېبه راوکښله د آدم خان په ګوته یې کړه، آدم خان جګ راکښېنوست، ګوتمۍ یې یو ګړی په زړه پوري ونیوله، د زړه سوده یې په وسوله نو یې پر ملا کرم علي ناره وکړه:

ملا راغی وا، له جنته – درته وایم زه یې جار سم تر همته
زه تر هر قدم بې جار سم – چي راوړې د بي بي درخانۍ ګوته

ملا ناست و چي حسن خان راغی که یې کتل چي آدم خان هم ناست دئ، خبري کوي. نو حسن خان ویل څنګه یې زویه؟ د طبیب دم څه ګټه در ورسوله، آدم خان ناره پر وکړه:

چي زه ښه سوم تر دې منځه – درته وایم سره زر ورکه ته له ګنجه
بابا زړه د طبیب ښه که – ځکه ستا زوی یې نن روغ کی له دې رنځه

پلار یې وویل چي هر څه به ورکړم چي ته خدای جوړ کړې، په دې مابین کي د آدم خان دوی زوړ مریی پیرو نومېدی پر آدم خان یې ناره وکړه:

د خوارانو په زاریه – چي راجوړ سوې له رنځو د ناجوړیه
عنایت پر پیرو وکړه – اوس آزاد که دا پیرو له غلامیه

آدم خان ویل څه پیرو اکا ته مي د خدای پر نام آزاد کړی یې، پس له هغه حسن خان او آدم خان طبیب ته ډېري روپۍ ورکړې آدم خان هم پټه ګوتمۍ ورکړه چي دا به زما د لاس نخښه و درخانۍ ته ورکې، طبیب یې،

رخصت کی برابر راغی و درخانۍ ته د آدم خان ګوتمۍ یې ور کړه. درخو په ګوته کړه په زړه پوري یې ونیوله لږ څه یې دمه په وسوله، ملا ته یې ډېري روپۍ ور کړې ملا کرم علي ډېر خوشحاله سو.

یوه ورځ تاوز خان هم نه و، پایو هم ښکار ته ولاړ درخانۍ ګلنۍ مینځه و آدم خان ته ور واستوله چي ورسه و آدم خان ته ووایه چي راسه. نو آدم خان یوازې دستي د ګلنۍ سره را رهي سو، هلته چي پایو ښکار ته تللی دئ په لاره کي یې د یوه خپل تربره سره دعوه وکړه او هغه تربور یې ډېر پېغورونه ور کړي وه چي درخانۍ دي غوښتې ده نه یې راودوې، هر وخت آدم خان ورته راځي، پایو بیر ته د ښکار څخه راوګرځېدی راغی ورته پټ سو، آدم خان چي د درخو په کلا ورننووت پایو خان ولید د غشي وار یې پر وکی ویې ویشت پایو فکر وکی چي ومي ویشت غوځار سو، اوس لا پروت دئ تښتېدلی، که راولاړ سو مړ به مي کي، نو پایو ولاړ، آدم خان پر پړ کي برسېرن ویشت سوی و، راولاړ سو پر درخو یې ناره وکړه:

درخانیه پوه هوښیاري – چو کیدار دي راته کښېنول پر لاري
چي په غشې و ویشتلم – تر پړ کي مي ویني ولاړې لاري لاري

بیا درخو وار خطا ورته راغله، ناره یې پر وکړه:

د درخو د غمګي عمري – درته وایم چو کیدار ظالم دي و مري
که مو پیر په کمه نه وي – آدم خان به د پایو د غشي نه مري

آدم خان په جواب کي ناره پر وکړه:

د آدم صورت مي هېښ دئ – درته وایم دي پر هره بلا پېښ دئ
دی مین د سپیني خولې دئ – درخانۍ نه د چا دوست نه د چا خېښ دئ

درخانۍ ناره پر کوي:

ته په څو راتلې بیماره – بر بر راسه تر سر تېره خریداره
په دیدن که دي څه کېږي – نور به زه تر تا قربان سم په سل واره

لنډه دا چي آدم خان بیر ته کور ته ولاړ هغه نیمګړی دیدن یې وکی، پایو خان چي دا حال ولید دستي د واده په بنا کي سو، د واده سامان یې و تاوز خان ته راولېږی، درخانۍ دستي ګلنۍ مینځه و آدم خان ته راولېږله،

**ګلنۍ پر آدم خان د درخانۍ د خوانارہ وکړہ :**

ستا دیدن مي ژړوینه – آدم خانه ! اندېښنې مي ذرته وړینه
خبر یې که خبر نه یې – د پایو وراګۍ راځي ما ودوینه

**آدم خان ویل دا جواب ور وړہ :**

درخو زما که څه صحت وي – د بلو او د میرو که لږ همت وي
موده ټینګه راته کښېږده – ستا واده به په کم وخت په کم مودت وي

**درخانۍ جواب ور ولېږی :**

نن زړګی زما غمجن دئ – چي شاهي آدم ویشتلی سربېرن دئ
واده نن یا به سبا وي – د درخو فکر خراب او ډېر کړمن دئ

**آدم خان جواب ور ولېږی :**

د غم پېټي پر ما اوري – درخانیه صورت مي نه دئ پر له پوري
مه دي وینم درخانیه – چي د بل د ګوتو چاپ سي په تا پوري

**دا احوال ګلنۍ ورته راوړی، د واده کار جوړ سو، درخانۍ یې واده کړه چي شپه سوله، درخو پایو خان ته وویل چي لاس مه راوړه که دي لاس راوړی دستي ځان وژنم، ما خوب لیدلی دئ لس ورځي راته وګوره پایو هم ورسره ومنله د درخانۍ یو پخوانی استاز و په دغه کلي کي، احوال یې ور ولېږی، چي یو وار راسه پس له هغه ملا راغی د پایو په غلا درخانۍ ډېري روپۍ ور کړې ورته وې ویل چي دغه زما خط او زما احوال آدم خان له یوسه، ملا ویل پر ستر ګو، باره درخانۍ ورته ولیکل :**

خانه ځان مي دئ ساتلی – درته وایم پایو لاس نه دئ راوړی
و پایو ته واده سوم – امانت پالېز مي تا لره ساتلی

**نور یې ټوله بیان ورته ولیکی، چي د پایو سره مي لس شپې وعده کړې ده زیاته اختیار لرې. ملا خط او د درخانۍ احوال په یوه تراټ و آدم خان ته راوړ، آدم خان خط ولوست، یو واري ډېر نا امیدي ورته ودرېدله، چي دا څنګه د نامردۍ کار وسو، بیا یې بیر ته خپل زړه ته تسلی ور کړه، و ملا ته یې په جواب کي ولیکل چي زه ښکار ته ځم، چي د ښکار څخه راغلم در به سم. ملا خط راواخیست درخانۍ ته یې راوړی، درخانۍ بیر ته په جواب کي ورته ولیکل :**

آدم خانه دلې اوسه – ښکار له مه ځه دغه زما په خبر پوه سه
هر چې ته راوړې له ښکاره – آدم خانه هغه زما له تنه يو سه

ملا بيا خط راوړی، آدم خان په جواب کې ورته وليکل :

بې بې ستا پر لور درځمه – د قدم پر ځای به سترګې لګومه
که مې مرګ نه سي له ميانه – درته وايم بې بې سر به پر تا ږدمه

ملا خط راواخيست درخولره يې راوړی، درخو ولوست، لږ څه يې زړه ډاډه سو، اوس د آدم خان و راتلو ته ګوري، چې کله به راسي؟

څه سر دې ګرځوم آدم خان پلار ته دا بيان وکی، چې زموږ سره پړه وسوله ښځه يې په سپينو سترګو راځخه واده کړه اوس يې څنګه کوې، پلار يې ويل ټوله دنيا مې ستا ده، زه هم درسره ولاړ يم، آدم خان فکر وکی چې پايوخېل ډېر دې موږ لږ يو، ميرمامې حاجې خېل د آدم خان ماما و، ويل که ماما لره ورسو او هغه څه کومک راسره وکې ښه به سي، نو يې پلار ته وويل چې زما سلا دا ده چې ماما هم راسره ملګری کو ښه به وي، آول ښه دئ.

آبس تا ته مې دې وويل سي آدم خان پر خپلو يارانو او نورو متو خپلو ږغ وکی چې ځان تيار کئ، ټوله يو دم تيار سوله راغله د مير مامې کره، ميرمامې ډېر بخيل سړی و، تل به يې په زړه يوه بخوله بله وه، خو مخامخ يې هر کلی وکی، په زړه کې يې ورځي وځړېدلې، وروسته حسن خان و آدم خان بيان ورته وکی چې موږ تالره راغلي يو ته به په دې مرېله کې څه کومک راسره کوې، موږ ځو درخانۍ راولو، ميرمامې جنه جنه کړله چې د يوسفزو ډېري ښځي به کونډي او ډېري مندي به بوري سي، زما خو نه ده خوښه.
کوجرخان د ميرمامې زوی و او د آدم خان زړه ته ډېر يار و، و پلار ته يې خشکه وکړه چې دا خو يو پيغور دئ چې مخامخ يې ښځه راځخه بوتله موږ ورته ګورو، يه نو موږ بايد په کلکه ورسره ودرېږو، ميرمامې هم ناچاره سو ويل ښه دئ. آدم خان ورته ويل چې ته به درې سوه سپاره ځوانان راکې، چې هسې زموږ شاګې وي، نور جنګ موږ کوو، ده ورته ويل زه سل تنه نه لرم ته درې سوه تنه غواړې، ميرو خان و آدم خان ته وويل چې دوی د نس تابع دي، يو غويي ور حلال که، چې په نس ماړه سي ټوله درسره ځي آدم خان هم د يوه پر ځای درې غوايي حلال کړه پاخه يې کړه د ميرمامې ټوله ټبر يې

باندي مېلمانه کړه، چې ډوډۍ يې وخوړله، نو آدم خان دوی سپاره سوله، کرم علي يې دمخه ور واستاوه چې ورسه درخانۍ خبره کړه ورته وا آدم خان د چشمې پر چينه ناست دئ راووزه راځه، کرم علي د روه راغی پر درخانۍ يې ناره وکړه :

بي بي زېړی مي درباندي - درته وايم ژر سه سم که خپل سامان دي
آدم خان پر چينه ناست و - درته وايم شين مجلون نيلی تړلاندي

څه سر دي ګرځوم درخو دلته په کار و بار اخته سوله، آدم خان او نور ياران او تربرونه يې چې را رهي کېدله حاجي خپلو فکر وکی چې دا وړ نه ده چې موږ ورسره ولاړ نه سو، نمک موهم وخوړ، باره ګوجرخان بږغ وکی چې څه کوئ؟ دوی ويل موږ هم تيار يو، آبس حاجي خپل يعني د ميرمامي عزيزان هم پر آسو سپاره سوله د آدم خان سره را رهي سوله. چې وچې کندي ته راغله آدم خان دوی ته وويل چې تاسي په دغه وچه کنده کې ودرېږئ موږ به ور دمخه سو، دوی دلته ودرېدله آدم خان او بلو او نور ياران يې راغله چينې لره، پر چينه معطل سوه، درخو ژر خپل سامان او ګېڼه په بخچه کې وپېچله نرمۍ ته يې ورکړه، دواړي د کوره راووتلې برابر مخ د چينې پر خوا را رهي سولې، آدم خان چې د ليري درخو وليدله ناره پر کوي :

راغله راغله را روانه - خدايه مې کړې پر دا کړي داد پښېمانه
په ميدان کي به لاس راکي - درخانۍ د تاوس لور ده پهلوانه

آدم خان خپل ياران پرېښوه، ور دمخه سو، ورغی درخانۍ لره، و يوه دېوال ته يې مجلون ودراوه، چې سپره سه، دا چې سپرېدله مجلون پر شا سو ولاړ درخانۍ ناره پر وکړه :

تا مجلون نه دئ ساتلی - درته وايم ښه دي نه دئ پوهولی
که و ما و ته تن راکي - آدم خانه پر دلدل دئ ما شمېرلی

آدم خان پر مجلون ناره کوي :

ما دي ټينګ کړله تانګونه - ستا خورک وې شيدو پې په لذتونه
د درخو څه دي تن وکيښ - د دې دواړو پښو دي ولوېږه نالونه

باره درخانۍ په آدم خان پسي سپره سوله، درخانۍ ويل چې نرمۍ راپسې ده يو اعتباري سړی ور واستوه بخچه هم ورڅخه ده، آدم خان ميرو

وروليږي، نرمۍ چي ميرو وليد ويې پېژانده، ويل درخانۍ څه سوه ميرو ويل هغه آدم خان بوتله، سپرېږه وخت د خبرونه دئ، دا يې سپره کړه آدم خان او بلو او ميرو درو سرو اسان را پونده کړه برابر يې درخانۍ راوستله د ميرمامي کره يې کښته کړله، چي نن او سبا هوسا سونو به کور ته ځو، پر لاري د ميرو او نرمۍ مينه سره پيدا سوې وه چي کور ته راغی پر آدم خان يې ناره وکړه :

ثنا ډېره د مولا ده – درته وايم نرمۍ سترګه د سبا ده

بي بي ستا ده آدم خانه – درته وايم دا نرمۍ دايي زما ده

نرمۍ بد يوورړه په جواب کي يې ناره وکړه :

ګل ويل دي پر بل پېر دي – ميروګيه ستا ويل زهرګنډ هېر دي

ته تېر مه وايه چوريه – ميرو تا غوندي مريي په بيع ډېر دي

آدم خان پر ميرو درد وکی، چي ته خو وده چي موږ پر کراره سو، خدای خبر لا څه پېښ سي، بيا به يې ګورو، پايو چي کور ته ورغی خبر سو چي آدم خان لښکر راکړی و درخانۍ يې بوتله، دستي يې څلور زره لښکر تيار کی، فکر يې وکی چي ميرمامي هم ورسره ولاړ دئ زوره ور سړی دئ په قوم کي پر ما ډېر دئ، نو څو زره روپۍ يو آس يو مريی يې پټ د مرکې په لاس ورکړه چي دا يوسئ ميرمامي ته يې په رشوت کي ورکئ، مرکه راغله پټ يې و ميرمامي ته رشوت ورکی، ميرمامي ويل چي جنګ ته حاجت پېښ نه سي زه به يې لاس تړلې په لاس درکم، آدم خان ښکار لره تللی و، په دغه مرکه او رشوت نرمۍ دايي خبره سوله و درخانۍ ته يې حال ووايه، درخانۍ ډېره خوابدې سوله، آدم خان په غره کي پر يوه کبلي وار وکی، غشی يې ختا ولاړ ناره يې وکړه :

ورځ مي بله کېږي – لويه خدايه که درخو له ما بېلېږي

زما غشی باوري و – باوري غشی مي ولي ختا کېږي

يو کوچنی ګوروان و، په دغه معامله خبر و د آدم خان ناره چي يې واورېدله، ده ناره پر وکړه :

آدم خان په ښکار روان دئ – درته وايم دا کبلی درته ګويان دئ

ته به زما له غوښو څه خورې – د درخو محل خالي بتې بېبان دئ

دستي لالهانده له ښکاره راوګرځېدی چي راغی د درخانۍ د بېلتون هيبت پر تېر سو، د درخانۍ په غېږ کي ور ولوېدی، بېهوښه پرېووت، درخانۍ ناره پر وکړه :

خوب دي زنګوينه - آدم خانه که دي پرېشانۍ وهينه
سر راپورته که له خوبه - ميرمامي اسي پر ما کور بدې شمېرينه

درخانۍ حال و آدم خان ته ووايه، په لښکر لا نه دئ خبر، نو د آدم خان زړه ته نه لوېده، په جواب کي يې ناره پر وکړه :

خوب مي زنګوينه - درخانيه پرېشاني مي درته وړينه
ميرمامي زما ماما دئ - دا ماما به خوريي څنګه خواروينه

يو ګړی باد حال ورته راغی چي پايو خان څو زره لښکر راوستلی دئ، دا دئ نژدې کلي ته راغله، آدم خان ويل وينې که يې درخو په رشوت په لاس ورکولای، نو لښکر ته څه حاجت و، دستي راولاړ سو مجلون يې ځيناوه، ناره يې پر وکړه :

اې زما آسه مجلونه - درته وايم زه دي تېنګ ترم تانګونه
ما اغوستې زنګي زغره - د غليم پر تندي پاس ږده قدمونه

زغره يې واغوستله پر آس سپور سو، درخانۍ ته يې ويل د خدای په امان، پر درخانۍ يې ناره وکړه :

په ديدن به دي زه ويارم - اوس سپاهي سوم تېرو تورو له زه ولاړم
د دنيا ديدن دي څه کړم - ستا ديدن به په قيامت له خدايه غوارم

درخانۍ ناره پسي وکړه :

که د خوارو په دعا سي - آدم خان دي سلامت تر کوره راسي
د صاحب دي ورته مخ وي - درته وايم د غليم دي ورته شا سي

آدم خان چي ووت دستي ميرمامي ورغی، درخانۍ لره، درخانۍ ناره پر وکړه:

ما خبري اروېدلي - د درخو پر زړګي بدي لګېدلي
خلک هسي راته وايي - چي دي ميرمامي بدې خوړلي

ميرمامي ناره پر وکړه :

د وينو که باران سي - مځکه ټوله تکه شنه لکه آسمان سي
ور به دي نه کړم درخانيه - که د ننګ زلمي مي ټوله پکښي زيان سي

د دې لړ څه زړه آرام سو، میرمامي ویل که دې زړه دربېږي درځه د ګوجر خان د مور سره کښېنه، درخانۍ چې ولاړه سوله تـر خوني ووتلـه، دوولس تنه سپاره ولاړ وه، میرمامي ویل دغه درخانۍ ده سپروئ یاستې، څوک نسته، هغو هم دستي پر آس په زوره سپره کړه، درخانۍ دا آخره ناره پر میرمامي وکړه، نو یې بوتله :

یوسف زي دي لوی مړونه -لاس ترلې په لاس ورکړم میرمامي په رشوتونه

لوی رنځ دې په کوړمه سي -د اکبر په بند دې کښېوزي تول تربرونه

وایي چې د درخانۍ ښرا قبوله سوله، په هغو شپو کي محسن خان د اکبر باچا صوبه دار و، میرمامي او نور یې مړه کړه، او تر اوسه یې په کورنۍ کي نری رنځ سته.

ګوجر خان چې کور ته راغی و پلار ته یې ویل چې دا خلک څوک وه، چې ښځه یې سپره کړې وه ولاړه؟ ده ورتـه ویل چې پایوګي نـر او ښځي مرکه رالېږلې وه قبوله مي نه کړه بیر تـه ولاړه. د ګوجر خان مریی و، ګوجر خان تـه یې نکل وکی چې درخانۍ یـې پـه لاس ورکـړه، ګـوجر خـان پـه میرمامي پسي توره لښته کړه، څو واره یې پر وکړه ځني ختا سوله، نه پر ومښتله، میرمامي په وچ تاخت ځني ولاړ پټ سو. پر لاري آدم خان لا د پایو لښکر تـه نه و رسېدلی، چې خبر سو چې درخانۍ یې لاس ترلې په لاس ورکړه پایو بوتله، بیر ته راوګرځېدی چې اول خو میرمامي مړ کم، نور یاران به هم سره راوړغوم، نو به جنګ تـه راووزو، چې راغی هیڅوک نسته یوازي ګوجر خان په سرای کي ولاړ دئ توره یې کښلې ده. آدم خان ویل څه نکل دئ؟ ګوجر خان نکل ورته وکی، چې درخانۍ یې بوتله، میرمامي بې ننګه راځخه وتښتېدی، که نه وي سر به یې اوس ستا د مخه پروت وای، ده ویل آفرین دي وي خیر دئ.

څه سر دي ګرځوم آدم خان او ګوجر خان د حسن خان دوی کره راغله، بلو او میرو او شمشال خان او اخلاص خان و خوشحال خان و تتر خان او نور مته خپل خبر سوله، ځانونه یې تیار کړه، آدم خان پر مجلون سپور سو، بلو پر خپل آس آذر سپور سو، میرو پر خپل آس پرده سپور سو، دوی درې دمخه سوله د آدم خان زوی میرباش او ګل جان چې د شمشال خان

زوی و، د دوی پر یوه اړخ او پر بل اړخ پر اسانو سپاره وه، د وروسته دانور مشران او یاران پسې تله، د کور ښځو ټولو د نارینه و کالي واغوستله، توتیا د آدم خان ماینه او مینا د میرباش ماینه د آدم خان پر اړخ تلې، د بلو خان ماینه چې لیلو نومېده هم ورسره وه، هله هله دا دي د پایو لښکر ته راورسېدله، بلو خان ناره وکړه :

اې زما آسه آذره – داسې ګرځه لکه تند باد د زلزله

دوه په ښپو یو په خوله نسه – د دانورو پر سرو باندې ورځغله

باره توره یې وکښله د پایو پر لښکرو ور ګډ سو، آذر یې پر ور رهي کی وې وهله وې وهل، آدم خان بلو یار ولید چې په وینو سور و، آدم خان ناره پر وکړه :

آذر لښته لښته کېږي – د ګولیو او د تورو نه بېرېږي

ته راووزه بلو یاره – یو ګړی دمه کړه میرو ګډېږي

بلو یار د جنګ د مینځه راووت یوویشت ټپه نېږي وهل سوی و، په وینو کې لژند و، بیا میرو په خوله برېتونه چخ کړه، یا علي مدت یې کړه، په لښکر ور ګډ سو، آدم خان ناره پر وکړه :

میرو یاره چابک دسته – درته وایم تر چتې وتلې مسته

بلو یار مې ځان ټپي کی – دښمن وله ځان ساته د دوی له دسته

د میرو د توري خرپ وچې میرباش او ګلجان په ور ګډ سوله، آدم خان پر میرباش ناره وکړه :

میرباشه زویه ګله – په دا جنګ ځنګه ګرځې بې تحمله

د ځوانانو پر ځنګ ګرځه – که نه ستا و د جنګ څه وله ما دله

وروسته یې شمشال خان ولید چې داسي په خرپ توره وهي، چې توبه ! آدم خان چې داسي وکتل پر ګلجان باندي څو کسه راګرځېدلي وه ایسار کړی یې و، آدم خان پر شمشال خان ناره وکړه :

شمشال خان کوي جنګونه – چې له مخه یې نرېږي ډېر پوځونه

دا د مخ ټولی له ورسه – دا ښکارېږي د ګلجان سپین مړوندونه

شمشال خان د جنګ په خولو کي ډوب و، نه یې وارو ېدله، بلو خان په دغه زخمي صورت ور وغورځېدی د پوځ په منځ کي ور ولوېدی غرغړه یې

پر وکړه ټوله یې وارخطا کړه، ګلجان یې د سپرو له منځه راویوست، آدم خان ډېر آفرین ورکی، وروسته آدم خان وویل چې بلو یاره پر ځوانانو بړغ کوه وخت کوتا دئ، زما وار دئ، بلو خان ویل ته مه په ګډېږه، موږ که مړه سو باک مو نسته، او ته خو مو سر یې سر چې پرې سي تن هیڅ نه سي کولای، آدم خان ونه منله پر مجلون سپور سو ناره یې وکړه :

اې زما آسه مجلونه – چې خورک دي شیدې وې بل شربتونه

د درخو پر اوربل جنګ دئ – د غلیم پر تندې پاس ږده قدمونه

آدم خان په ورګډ سو، غلیم یې داسي ورژول لکه ترخې مندکې، مجلون لغتې هم غورځولې خولې یې هم لګولې د پایو لښکر د مجلون آس څخه په عذاب سوله، ټولو مخ پر آدم خان او آس ور ورګرځاوه، د آدم خان آس په نېزو ووهل سو، لږ څه سست سو، آدم خان فکر وکی چې مازدیګر او تاریکه سوله، بلو هم ټپي سو، آس مې هم د کاره ووت، دوی ډېر دي موږ لږ یو د جنګه راووت. د پایو د لښکر څخه په سوو مړه سوه، د آدم خان د خوا هم څلوېښت پنځوس کسه مټه خېل مړه سوله، جنګ یې بس کی چې سبا به ځان ورته هوسا کو بیا به یې ګورو، باره د پایو لښکر پر هغه خوا ولاړه، آدم خان دوی د کور پر خوا را رهي سوله کور ته راغله، د بلو پر ټپو یې دوا ور کښېښووله، ور وې ګنډله، ویل چې هر وخت ته جوړ سې نو به بیا د پایو پر کلا ورځو.

څه سر دي ګرځوم وروره ! ځو ورځې باد بلوخان و آدم خان ته وویل چې خانه جوړ یم، درځه چې پر ورسو، آدم خان ویل چې ته پر دغه آس سپور سه ویې ګرځوه، چې څنګه یې؟ بلوخان چې پر آس سپور سو چې دوه ګښته یې ورکړه پر دریم یې آه کړه ویل در ګښته مې که آدم خان چې راکښته کی ټپونه یې تازه ګنډلي وه، ښه نه وه جوړ سوي، سره وشلېدله، یو ګړی پروت و باره یې نفس وخوت مړ سو.

بلو خان چې مړ سو آدم خان ته لا قهر ورغی، بله ورځ له خپلو زلمیانو سره جنګ ته رهي سو، تر ماپښینه وجنګېدی، په پای کي یې ډېر زلمیان مړه سوه، آدم خان هم ډېر ټپونه واخیستل، د کاره ولوېدی، او په خورا تکلیف یې ځان تر خپل ځایه راورساوه، او مازدیګر مړ سو.

میرو بغاري کړې ناره یې وکړه :

د زړه ویني مي بهېږي – د بهو سر له چي راسي اوبه کېږي

نندارو لره یې راسئ – آدم خان د لحد خاوري سو رژېږي

لنډه دا چي یارانو او خپلوانو یې چي هر څونه پر ژړلي وي پر ژړلي به یې وي، آدم خان ته یې غسل و کفن ورکی پر دښت یې د سیند پر غاړه ښخ کی، دا خبر پایو لره ورغی ډېر خوشحاله سو، اوس یې نو زړه بېغمه سو.

څه سر دي ګرځوم په دې مابین کي یوه مینځه وه ولاړه د درخانۍ کره، درخانۍ او نرمۍ په باغ کي ګرځېدې ډول ډول ګلان یې پرېکوله، ګېډۍ یې د آدم خان له پاره جوړوله، مینځه باغ له ورغله نابېره یې د غم ناره پر درخو وکړه :

نن توتیان ټول په ماڼه دي – درته وایم له یوه سرایه و بل ته په واته دي

و قیامت لره یې بولي – آدم خان غوندي زلمي رواڼ په تله دي

درخانۍ آه کړه ! نرمۍ ته یې وویل چي دا څه ناره مي تر غوږ سوله؟

نرمۍ ویل هغې مینځې وکړه، درخانۍ پر مینځې ناره وکړه :

زه نه اروم کنه سوم – درته وایم په تور لېمه ړنده سوم

نژدې راسه راته وایه – په کوګل کي دي زه وویشتم زده سوم

مینځه نژدې راغله ناره یې پر وکړه :

درخانۍ خواره به څه کي – چي ګلونه پرې کوي تو کي په تو کي

آدم خان تر دنیا تېر سو – درخانۍ ګوره ګلونه د خیال څه کي

دا ناره چي درخانۍ واروېدله بغاري یې کړې، په لاس کي یې ګلان مړاوي سوله، په ژړا کي یې ناره وکړه :

زما د صبر برخه لویه – جدا کېږم د پردي موري له زویه

که مو مینه په رشتیا وه – یاره زه درپسي درغلم په پویه

پس له هغه دستي دا او نرمۍ د باغه څخه راووتلې راغلې کور ته، درخانۍ پر پایو خان ناره وکړه :

که پاکه پایو پاکه – ما نن ور وله د ښېر آدم تر خاکه

له دې پاله دي خوریم – د هغې پاله دي نجل یم په زړه پاکه

پایو فکر وکی چي آدم خان خو مړ سو، که یې ور نه ولم عمري به مي

اوقات ورسره تريخ وي او که يې ور ولم څه د زړه تسلي به يې وسي، صبر به يې سي، باره دستي يې اوښ را تېر کی، درخانۍ او نرمۍ يې دواړي پر سپرې کړې، برابر يې د آدم خان قبر لره راوستلې چي کښته يې کړلې، درخو ورغله د آدم خان قبر يې په غېږ کي ونيو، دعا يې و خدای ته وکړه چي زه نور ژوند نه غواړم، دعا يې خدای قبول کړه پر هغه قبر يې نفس وخوت، مړه سوله، نرمۍ چي درخانۍ وليده چي مړه سوله دا ناره يې وکړه :

زه و بي بي له يوه اصله –لويه ربه دا اصيله زه کم اصله

که مو مينه په رشتيا وه –ربه ما هم په دغه دم کړې ور وصله

د نرمۍ خواست هم خدای قبول کړی، پايو چي راغی که يې کتل چي درخانۍ د قبر يوه څنګ ته او نرمۍ يې بل څنګ ته مړې پر تې دي، نو دا اخيره ناره پايو وکړه:

د درخو مي هسي غاړه –لويه خدايه لکه بله نجل ولاړه

د دوی مينه په رشتيا وه –د آدم پر قبر وغځېده ولاړه

درخانۍ يې د آدم خان سره په يوه قبر کي ښخه کړه، يو ميرو پاته سو، هغه خو هم د درخانۍ وصيت نه کی پر ځای چي ورته ويلي يې وه چي زه و آدم خان چي مړه سو ته هندوستان ته ولاړ سه، که نه وي ړوند به سې، نو په دغه سبب يې هاغه بله ستر ګه هم ړنده سوله، يو لنګري نومېده مزدور يې و، هغه به تر لکړه نيولی و ګرځاوه به يې، نو ده او لنګري به و هر چا ته د آدم خان او درخانۍ نکل کاوه، څو په آخر دوی هم خدای وژلي وه مړه سوه.

# قلندر جان او میرا جان

ته وا ښه !

چي و، یو غټ خان او یا سوداګر و، څوک وایي باچا و، څلور یې زامن وه، درې زامن یې د یوې مایني څخه وه، یو زوی یې د بلي ګراني مایني څخه و، د دې ګراني مایني د زوی نوم "قلندر جان" و، دا قلندر جان تر ټولو کشر دئ، پر باچا خورا ګران دئ. خورا یې نازوی، خورا هوښیار هلک دئ، کارونه د خدای وه پلار یې مړ سو، دی او مور پاته سوه، د ورونو یې د پلار په ژوند لا زړه ورته ډک و، چي پلار یې مړ سو، باره یې بد ورسره کوله، ترا ته یې، کارونه به یې لکه مزدور په کوله، د مور سره یې هم خورا بد کول، قلندر جان په څو ورځو کي تارونار سو، رنګ یې تک ژړ سو، د پلار نازولی زوی و، کله یې دا خواري ګلولای سوای، د قلندر جان مور فکر وکی چي زما سره هم بد کوي، د زوی سره مي هم بد کوي، وچکلک سو، سبا به یې مړ کي دغه یو زوی مي دئ، زه به یوازي پاته سم، دونه څوک به نه لرم چي ستر ګي مي په روني وي، نو یې قلندر جان ته وویل چي خدای ساتندویه دئ، راځه که دي خوښه ده د دې کور او وطنه څخه به ولاړ سو، نه چي ورونه دي دښمنان دي سبا به دي مړ کي، یا به بل چم در وکي، اوس مي لا په تا ستر ګي روني دي، نو دا کور به ورپرېږدو بل ولات ته به ولاړ سو.

قلندر جان ویل ښه دئ ادې جاني ! چي ستا خوښه ده زما خوښه ده، درڅه توکل پر پاک خدای دئ. چي ماښام سو، خورجین یې د بتکیو ډک کی خپل آس یې څین کی، دی او مور پر آس سپاره سوله، په نیمه شپه د کوره پټ راووتله، را رهي سوله. هله هله دغه شپه دا بله ورځ یې مزل وکی دا دي یو بل ولات ته راشوه سوله، په یوه کلي کي یې په یوه سرای کي واړول، قلندر جان خو د ښکار شوقي و، په هیڅ کي یې چرت نه واهه، ښکار

ته يې لاس ورته کی، ښکار کوي.
يوه ورځ يې غشي او لينده راواخيستله د کوره راووت، يو مسجد دئ په مسجد کي يوه درخته ده، په درخته کي يوه کوتره ناسته ده، پر دې کوتره يې واری وکی، وې ويشتله، غشي او کوتره دواړه په مسجد کي ولوېدله، قلندر جان مسجد ته پسي ور واووښت چي غشي او کوتره واخلي، که يې کتل چي په مسجد کي يو زلمی ناست دئ، ځکه چي دا سړی هم د ښه خوی او ښو اخلاقو خاوند و، نو د ده آشنای او ملګری سو، د دې ځلمي نوم "ميراجان" دئ، د يوه غټ خان زوی دئ، چي قلندر جان يې هم ملګری سو. وروسته يې د زړه حال سره ووايه، د وروری لاس يې سره ورکی، آبس قلندر جان دستي راغی مور ته يې وويل چي زه هم په مسجد کي پر ملا صاحب سبق شروع کوم. مور يې هم ويل ډېر ښه دئ، تر دې لا بل ښه ساعت چيري دئ چي ته سبق وايې، تر ايله او بېکاره ګرځېدو خو سبق ښه دئ، دستي يې يوه سيپاره رانيوله، ورغی ملا ته چي زه سبق شروع کوم، سبق وايم ما ته سبق راشروع که. ملا هم ويل ښه دئ، دلته قلندر او ميرا ډېر سره خواږه وه، لکه دوه ورونه او يا سره ګران ملګري په سبق ويلو بوخت وه، او دا دوه اشنايان به کورته نه سره جلا کېده.
دوی به يو ځای په باغو او دښتو کي سره ګرزېده، مېلې به يې کولې، دواړه سره خواخوږي ملګري وه. مګر زمانه هر کله پر يوه ډول نه وي، کله کله خواږه آشنايان هم سره بېلوي، او دوی سره خپه کوي، يوه ورځ دواړه ملګري په يوه باغ کي د پلک تر درختي لاندي ناست وه، او داسي يوه خبره له قلندر څخه وسوه، چي د ميرا خوا په بده سوه، او دا يې په زړه کي ټينګه کړه، چي له ده څخه بېل سي، نو ميرا په دغه نيت رهي سو، او د بېلتانه پر خوا يې مخ ونيو. قلندر چي هر څه عذر وکی خو ميرا غوږ نه پر ونيو ځني ولاړ، قلندر جان د زړه د تاوه پر درختي ناره وکړه:

که درختي درختي د پلک درختي
آشنا مي ولاړی سو مه بدبختي
که مي دوستان دي که دښمنان دي
د دوی به راسي مـا لره سختي

چي يعني د دوستانو او دښمنانو له خوا به سختي خبري او پېغورونه داسي به وايي چي ميراجان څنګه ولاړ؟ نو اې درختي دا خو ګرده ستا بدبختي وه.

څه سر د ګرځوم ميراجان د ستر ګو نه دئ نيهام سوى قلندر جان په پسې دئ بيا يې ناره پر وکړه:

که راسه راسه دلبره راسه
زه دي غلام يم ته مي آغا سه
يار دي پر شوخو ستر ګو مين کړم
بيا راته وايې له ما جلا سه

ميراجان هيڅ چرت نه پکښې وواهه، لا ځني چابک سو، د قلندر جان زړه ته ولوېده چي اوس نو ولاړ، جدايي او بېلتون دئ، خورا زور يې ورکى ناره يې وکړه:

پاس پر تندي مي آسمان نړېږي
له تاوه جوشه ماغزه مي لوېږي
قيامت خو اوس دئ په دا زمان کي
له قلندره ميرا بېلېږي

قلندر جان فکر وکى، چي ولاړ درڅخه، باره ويل يې زما دي نو هم ژوند دلته خاوري سي، پايڅې يې پسي راپورته کړې پسي بړغ يې کړه چي ترمر ګه دي ولاکه پسي پر بېږدم چي هر ځاى ځې زه درپسې يم، پسي را الا يې کړه، ميراجان دمخه دئ، قلندر جان په پسې دئ، چي تر کلي راووتله قلندر جان مخ د کلي و خوا ته راوګرځاوه ناره يې وکړه:

که ولاړو ولاړو له کندو کنبې
زما يارانو زما دوستانو
دعا د خير راپسي کاندئ
خداى خبر دئ چي بيا به راسو

بيرته يې مخ د ميراجان پر خوا راوګرځاوه، پسي را الا يې کړه، هله هله څو لمر ولوېدى، تر ستر ګو لا نه دئ ځني نيهام سوى، هر څه نارې چي پسي کوي هغه نه بړغ کوي نه مخ ورته راګرځوي، ځان يې کوڼ اچولى دئ

ځي، قلندر جان بيا د زړه د تاوه ناره وکړه :

که دوري دوري د فلک دوري
زړه مي چوي دا ستا بې غوري
يار مي جلا سو نه راستنېږي
زمـا دا سـوي نارې نه اوري

څه سر دي ګرځوم ماښام سو تياره سوه، ميراجان د سترګو ځني نيهام سو، ورک سو. په دغه تور ماښام په لڅي پښې پر هغه رَوده چي ميراجان ځني ولاړ ورک سو ځي، دا ګرد ه شپه يې پر دغه بټي بېبان مزل وکی وکی، هله هله وړی تږی څو سهار سو، لمر راوخوت، وږی دئ، تږی دئ، ټوکر ټوکر دئ، ميراجان ورک سو، دغه ورځ يې پسي راواخيستله، پر لاري دغه د لارويانو و پلو ته ګوري، چي دا پل به د ميراجان وي، دا پل به د ميراجان وي، خاوري يې اخلي په سترګو پوري يې مږي، د دغه هر پل خاوري اخلي مچوي يې په سترګو پوري يې مږي[1]، چي څوک پر لاري په مخه ورځي، دی ورته وايي چي ميراجان دي نه دئ ليدلی؟ ميراجان دي نه دئ ليدلی؟ ميراجان څه سو، بېخي لکه لېونی داسي سو، سترګي يې د ژړا د لاسه تکي سرې سولې، بيا پر ماښام سو، د ماښام د آذانو وخت دئ، شپانه مېږي او رمه رهي کړې ده، کور ته يې بيايي، قلندر جان پر دغو مېږو ناره وکړه :

مېږي لا ښې دي چي مخ پر کور ځي
بد قلندر دئ چي مخ پر چـــول ځي
چول مي پر غبرګو سترګو قبول دئ
تر چول بدتر وای د يار بېلتون دئ

خو څه سر دي ګرځوم څو شواروزه يې د شپې او د ورځي مزل وکی پسې، هله هله څو يوه ورځ يو لاروی په مخه ورغی ده ورته ويل چي ميراجان

---

[1] په دېوان کي هم و دې حالت ته اشاره کوي، وايي :

هغه خاوري به رانجه کړم زه د ســـترګو
چي اشنای ورباندي ايښی خپل قدم دئ

دي نه دئ لیدلی، لاروي ورته وویل چي میراجان په سوات کي و، مګر هلته یې ویل چي داسي قلندر جان نومېږي، داسي رنګ یې دئ، داسي دئ، که چیري دې کلي ته راغی نو ما مه ور ښیاست، ورته وواياست چي په دې کلي کي نسته او نه یې مور پېژنو، زه د ده څخه پټ راتښتېدلی یم، دا چي قلندر جان واورېدله، دغسي یې دوې پښې داغه کړې دوې یې نوري کړې مخ د سوات پر خوا راهي سو[۲]، هله هله مزل پر مزل د نکل کار دئ معطلي نسته، دا دئ سوات ته راورسېدی، د میراجان څرک یې پټ ویوست، چا ورته وویل چي په پلاني مسجد کي یو ماخستن بل ماخستن وي، لمانځه ته راځي، د ورځي پټ وي نه یې سې پیدا کولای، قلندر جان ماښام راغی په دغه مسجد کي منتظر سو پټ سو و زړه ته وایي چي ماخستن میراجان راغی زه به یې تر لاس ونیسم.

خو هر څوني چي یې ورته وکتل، میراجان رانه غی، او هلته خلکو اور بل کړی و، قلندر چي هغه اور ولیدی، د خپل زړه اور یې هم تند سو، ناره یې وکړه:

که اور دئ اور دئ هجرانه اور دئ
زه قلندر یم پکښې مي کور دئ
د اور په سونګ وی د چا رضا ده
رضا مي نه ده راباندي زور دئ

وروسته قلندر راغی او د سوات پر غونډۍ یې یو پل وموند، او هورې ورته کښېنوست، ملګری خو یې ورک سو، نو یې پر دغه پله هم سکته

---

[۲] په دېوان کي هم وایي

چي میرا درسره نه وي قلندره
ته چي سوات لره ورځې عذر دي کم
قلندر په کمه پزه ولاړ سي سوات له
چي میرا یې همرا نه وي عذر کم
میرا صاحبه خبر یې واخله
قلندر درومي نیت یې د سوات سي

وکړله او د ده پر پله یې شاوخوا ګلان وکرل، نهالونه یې شنه کړه، دلته یې یوه کوچنۍ کوډله جوړه کړه پکښې اوسېدی، د بېلتانه غمونه یې ګالل. میراجان ولاړ هندوستان ته هلته یې د بېلتون غمونه تېرول.

لنډه دا چې څو عمر باد قلندر جان ناجوړه سو، د میراجان بېلتون او غم غلبه پر وکړه، د میراجان د غمه نه څه خوري نه څه چښي، فقط د ده د پله دیدن یې قوت و، داسي سو لکه نل، یوه شپه یې تر سهاره د میراجان د بېلتانه د غمه څخه وژړل، وژړل خوب نه ورتی، چې سهار صبح صادق سو د سهار نری شمال راوالوت، قلندر جان د کوډلي څخه راووت بل قاصد نه و، چې ورلېږلی یې وای، پر باد یې ناره وکړه :

که باده باده د سهار باده
بې پروا ذرومې له ما نابښاده
مدار دي نسته چې ودرېږې
پر میرا جان مي ډېر سلام وایه

چا چې جامونه د میني چښلي دي
ننګ و ناموس یې دواړه پرې ایښي دي
که هند له تللی میراجان راسي
څو صدقې مي ورباندي ایښي دي [۳]

څه سر دي ګرځوم، خو بیرته راغی په کوډل ننوت، اوس نو بېخي ضعیفه سوی غوناشکي وهي، دغه ورځ هم تېره سوه ماښام د غم په کوډل کي یوازي پروت دئ، یوازي د میراجان یاد ورسره سته،

---

[۳] په دېوان کي وایي :

نصیب راوکړې چاري ناپسندي
د سند پر غاړه مړ سوم د تندي
میرا که راسي د هند له لوري
هلته به وایم نصیبه رندېي

ناجوړي او ضعف او بېلتون یې سخت سو، د ډېره عذابه او خوارۍ څخه یې ناره وکړه:

پاس پر تندي مي آسمان نړېږي
لـه تاوه جوشـه ماغزه مي لـوېږي
کـه ته رادرومې تلوار پر وکـه
په تش کاته دي رنځور ښه کېږي[۴]

چي نیمه شپه سوه سپوږمۍ راپورته سوله، د کوډلي تر سوریو یې وړانګي ور ولوېدې، ستوني ستخ پروت دئ، پر سترګو یې د سپوږمۍ رڼا برابره سوله، بل قاصد بیا نه و، چي میراجان ته یې حال ور استولی وای، نو یې پر سپوږمۍ ناره وکړه:

که سپیني سپیني سپوږمیه سپیني
احـوال مي یوسه د یار تر سـیمي
پر مـیراجان مي سـلام ووایه
قلـندر خـوري وای د زړګي ویني

دا ناره یې وکړه بیرته ډوب ولاړ، هله هله څو د سهار ګاه خوا سوله د ځکندن سوګلۍ ورته ودرېدلې، د پښو د خوا یې سا راټوله سوې ده، سترګو یې شنه پېروي نیولي دي، اوس نو څه نه ویني آخره یې ده، مګر بیا هم د ځکندن بیداري ده د مخه څخه یې د سهار شمال وموښت، نو یې پر باد ناره وکړه:

د سـهار باده خـوشبو نسیمه
احـوال مي یوسه د یار تر سـیمه

---

[۴] په دېوان کي وایي:

د رب د پاره کاغـذه ورسـه
هغه اشـنای ته په نارو سر سه
چي تا ویشتلی قلندر پروت دئ
پر زکـندن یې تلقین له ورسه

پر یار مي عرض کړه د خــدای دپاره
د یار دي شنه سوه د سترګو سپینه[۵]

د ســـهار باده خوشــبو نســیمه
احوال مي یوسه د یار تر ســـیمه
ورته مي عـــرض کړه د رب دپاره
هجران خسته کړه په زړه دوه نیمه

میراجان چیري دئ؟ د یوې خوا د بېلتانه غم دئ، د بلي خوا د ځکندن خوارۍ او غم دئ، ډېره پر سخته ده، باره دا آخري ناره یې وکړه :

زه دي په اور کي د هجـــران وسوم
که مي ته خلاص کې له دې جحیمه
یا قلـــندر کړې له مـــیرا وصل
یا یې په ګـــور کړې رب الرحـیمه

دا اوسترۍ ناره یې وکړه، د میراجان د وصل خواست یې نه سو قبول، د ګور خواست یې قبول سو، اوه یې کړه نفس یې والوت، مړ سو. خدای دې وبخښي، دلته نو لمر راوخوت خلک په خبر سوه، راغله چي قلندر جان مړ دئ، غسل مسل یې ورکی ښخ یې کی.

هلته باد و میراجان ته د قلندر جان د مرګ حال ور وړی، یا یې د مرګ

---

[۵] په دېوان کي وایي :

ســـهار سـبا سو پټېږي ســتوري
خـــبر رانه غی د یار د لـــوري
قاصـــده ورســه خـــبر یې راوړه
پسې مي سپین سوه د سترګو توري

د سهار باده خوشــبو نســـیمه
که چیري ولاړ سې د یار تر سیمه
ورته مي عـرض کـړه د رب دپاره
هزار ســلام او هزار تعـــظیمه

افسون پر ولوېدی، یا یې د یار د مرګ حال په زړه کې ور وګرځېدی، په هر صورت خبر سو، چې قلندر جان مړ دئ یا مري (وایي چې دی په لاهور[٦] کې و)، نو را رهي سو، هله هله هله څو سوات ته راورسېدی.

مخ د غونډۍ پر خوا را رهي سو چې راغی یو بزګر دئ دویمه غنم کري، د دې بزګر څخه یې پوښتنه وکړه چې قلندر جان څنګه دئ؟ بزګر ورته وویل چې په ژوند دي پوښتنه نه پر کول، نه ورته راتلې، اوس نو هغه یې د وخته لا ښخ کی، میراجان پر بزګر ناره وکړه :

کښت دي شین کېږه بیا رېبل کېږه
غـــنم دي من و خـروار کـېږه
زما لـه یاره احـــوال دي راکی
بل پر ایمان دي ډېر فــضل کېږه

خو پسي راوخوت غونډۍ ته، په دې غونډۍ کې یوه هوسۍ ګرځي، پر لوړه ولاړه ده، پر دې هوسۍ یې ناره وکړه :

هوسـیه وخورې د سـترګو توري
پر لوړ ولاړه ښکاریان په ګــوري
ښکاریان لا کله د ګور بندیان سوه
خـــزې ولاړې دي تـشي توري

میراجان د غونډۍ سر ته راوخوت د قلندر کوډله یې ولیدله، تشه توره ولاړه ده، بغاري یې کړې، ناره یې وکړه :

که خاصه خـاصه دلبره خاصه
خېمه دي نجـتي د لوړ د پاسه
ستا د اجل سپاهیان چې راغـله
ځیرک یې وخوت خېمه پرېباسه

---

[٦] په دېوان کې وایي :

قلندر چې بې وفا نه دئ نو څه دئ
چې میرا ورڅخه ولاړ مخ پر لاهور

د درده یې کوډل ونړوله، پر مځکه پرله څرخي کورنځي وهي، وروسته خلکو ورته وویل چي اوس نو څله پسي ژاړې، اول ځني ولاړې اشنایي دي نه ورسره کوله، اوس نو پسي ژاړې ناري وهې، د قلندر جان ستا په بېلتون کي زهره وچاوده مړ سو، د میراجان خو دمخه زړه زخمي و، د دې خلکو پېغورو ښه پسي زخمي کی، پر زړه یې مالګي دوړېدلې، نو یې د زړه د جوشه پر مځکه ناره وکړه :

خدایه دا مځـــکه پاره پاره کې

پردېسن لالی زما راته ښکاره کې

په بېلتانه کې الوی مکوټ سوم

یو واریې دید بیا راســره وکې

د ربښتیني او صادق مین خواست و، خدای قبول کی، وایي چي قبر وچاود قلندر جان د میرا سره غاړه په غاړه سو او میراجان هم خدای ته خواست وکی، چي خدایه زه هم زیات یوه دقیقه ژوند نه غواړم، وایي چي خدای یې خواست قبول کی، آه یې کړه خوله یې وازه کړه، مړ سو خدای دې وبخښي.

وروسته خلکو دواړه د قلندر جان په قبر کي ښخ کړه، قبر یې پر جوړ کی ځني ولاړه، ګوره چي رشتیا دي که درواغ.

کیسي په کولک ننوته – زه نو په تلتک ننوتم

# اهداء

خپل دا اثر په ډېرو درناويو د هيواد د جمهوريت مؤسس او وطن پرستو جمهوريت غوښتونکو قهرمانانو ته اهداء کوم!

محمدګل نوري

# مقدمه

د احمدشاه بابا کتاب چاپولو مؤسسه سرلوړې ده، چې د "ملي هينداري" دريم ټوک په داسي مهال کي افغاني ټولني ته وړاندي کوي، چې په افغاني ټولنه کي د جمهوريت نهضت خپور سوی دی، او د دغه تحول سره د نورو اجتماعي مؤسساتو په اړخ کي د افغاني فرهنګ مؤسسه هم درانه وظايف پر غاړه اخلي او سترو علمي خدمتونو ته تياری نيسي.

دا اثر د هيواد د معروف فلکلوريست ښاغلي محمد ګل "نوري" د ټولوني او زحمت نتيجه ده، دغه ښاغلی د نيمي پيړۍ را په دې خوا د افغاني فولکلور په ټولونه کي کار کوي او د دغي حاضري سلسلې دوه ټوکه يې تقريباً ديرش کاله پخوا نشر کړي وه، چې په مکرر ډول يې په داخل او خارج کي يې چاپ تجويد سوی دئ او تر نن پوري په داخل کي د ولسي مجلسونو سات په تېر دئ او په خارج کي د افغاني فولکلور څېړونکي اکاډمۍ تحقيق پر کوي.

د ده د اثارو په جمله کي "ملي هينداره" خورا ډېر شهرت لري او د شوروي جماهيرو د اتحاد معروف محقق " م. ګ اسلانوف" دغه اثر د افغاني فولکلور د اصيلتوب يو سند او وثيقه بولي.

کله چې دغه غنيمت اثر وروستۍ پاني له چاپه راوتلې نو محترم مؤلف يې زما څخه غوښتنه وکړه، چې پر دغه اثر يوه مقدمه وليکم. زه د ده دعوت ته هر کلی وايم او د نورو ذهني او عملي مصروفيتونو په اړخ کي دغه ليکنه کوم.

## د پښتو شفاهي افسانې :

يو ولس چې څونه په مادي لحاظ د پټو خزانو څخه غني وي، کانونه

ولري، ابادي مځکي ولري، برکتناکه سیندونه او ځنګلونه ولري نو په معنوي لحاظ هم فرهنګي غنا ته احتیاج لري او د فرهنګ سره چي یې اشنایي هر څومره قدیمه وي نو د تهذیب سابقه یې په روزنه کي اغېزه کوي. په ولسي فرهنګ کي فولکلور د هغو غني کانونو په شان دئ، چي نسونه یې د جواهراتو څخه ډک وي، دغه جواهرات چي هر څومره د کان له تیرو او ډېرو څخه رابېل سي هغونه د ټولني اقتصادي ژوند تقویه کوي، په همدغه ډول د یو ولس په کلتور کي چي هر څومره د ولس په فولکلور کي عملي څېړنه وسي په هغه اندازه د ټولني فرهنګ تقویه کېږي، او د معنوي غنا ذخیره یې زیاتیږي.

## موږ فولکلور ته څه احتیاج لرو؟

فولکلور پېژندنه یعني په فولکلور کي تحقیق یوه نوې پوهنه ده. د دغي پوهني په برکت د بشري کلتور پر ډېرو تیارو رڼا لوېدلې ده.

په فولکلور پېژندنه کي د افسانې پېژندني (میتولوژی) محققینو په دغه وسیله د بشري کلتور هغه مرحلې کشف کړي دي، چي پر هغه د لرغون پېژندني (اراکیالوژی) پوهنه په بې وسي پټه خوله ده.

د یوې ټولني د اجتماعي تاریخ د بېلو بېلو مرحلو حال تر هر څه وړاندي په میتولوژي کي څرګندېدای سي.

یونان چي د بشري فرهنګ قدیم تاریخ لري نو علت یې دا دئ چي د فولکلور غني خزانه لري او نن د قدیم (هومیر)[1] (ایلیان)[2] او (اوډیسه)[3] د یو ګویا تاریخ په شان د هغي زمانې حالات په افسانه کي بیانوي، چي هلته اجتماعي مناسبات لا د طفولیت په حال کي وه. پر همدغه ځای و، چي فرانسوي مشهور زومان لیکونکي (ویکتور هوګو)[4] وویل: "افسانه په تاریخ کي او تاریخ په افسانه کي دئ".

نن د نړۍ لویي علمي مؤسسې او فرهنګي اکاډمۍ د فولکلور څېړني په برخه کي کار کوي او داسي لوی محققین سته، چي د خپل تحقیق فیلډ یې یوازي افسانه او حتی یوه افسانه ټاکلې وي.

په بشري ټولنو کي عرف او عادات بېل بېل رنګونه لري او دا هر عرف په خپله سلسله کي د اجتماعي مناسباتو و ډېرو قديمو مرحلو ته رسېږي، او په دې برخه کي تحقيق نو د يو څېړونکي په لاس داسي کيلی ورکوي، چي په هغو د اجتماعي تحقيق د هر رمز قلف خلاصېږي. دغه لوی کار د افسانې پېژندني په ساحه کي ډېر برياليِ انجامېدای سي او همدا علت دئ، چي د دغه تحقيق له پاره د ولسونو په افسانو کي تحقيق کېږي.

د مثال په ډول په بشري کلتور کي د فاميلي تکامل يوه ډېره مهمه مسئله ده، چي په مترقي شېوه مطالعه او تحقيق پر کېږي. د فاميلي په تطور او تکامل کي (د ويني اشتراک) مسئله د څرګندو مثالونو سره د ولسونو په افسانو کي پيدا کېږي. د "هومير" "ايلياډ" د دغسي ارزښتونو څخه مالا مال دئ او د مارکس په نظر د يونان اساطيري افسانې ټوله هغه قديمه زمانه معرفي کوي چي هلته لا ښځه په فاميلي مناسباتو کي د (مورني حق) څخه (پلرني حق) ته پوره تسليم سوې نه ده.

دغه لوی تاريخي انتقال چي د بشر په کلتور کي په عمل راغی يعنی د "مورني حق" ځای "پلرني حق" ونيوی، نو د "مورني حق" وروستی بقايا (د ويني اشتراک) پر لار په افسانو کي ښه ترا پېژندل کېدای سي او ميتولوژي د هغه حدود مور، ته راښوولای سي.

انګليسي معاصر محقق (ارنولد تاينبی)[5] د بشري تمدن د ظهور په باب د افسانې ارزښت داسي بيانوي :

"هغه کسان چي د انسان تاريخ د ژوند پېژندني (بيولوژي) يا ځمکه پېژندني (جيولوژي) يا حيوان پېژندني (زولوژي) پر لار پلټي پوره مؤفق نه دي، ځکه په بشري کلتور کي د تغيراتو او تبديلاتو سير تر هر څه په افسانه کي ښه معلومېدای سي او افسانه پېژندنه (ميتولوژي) چي د دغه لوی مقصد له پاره استخدام سي نو په علمي ډول د بشر په نفسياتي برخه کي د تحولاتو علتونه پيدا کېدای سي.

په افسانه کي د انساني ذهن د تکامل مراتب ډېر ښه معلومېدای سي. د ولسونو شفاهي افسانې د دوی د ابتدايي مراحلو ډېر ژوندي مثالونه بيانوي. د انساني ارزو لومړنی جرقې په افسانو کي ډېري ښې معلومېدای سي.

د شوروي اتحاد مشهور ليکوال (ماکسيم ګورکي)[٦] په دې باب وايي : "حيوان تر انسان قوي دئ، ځوانان بايد تر حيوان قوي سي لوی حيوانات نه سي کولای چي الوتونکی په هوا کي ونيسي له دغه ځايه د مځکي پر مخ د چټکوالي او الوتلو ارزو په انسان کي پيدا سوه". چابکي تلونکي موزې"، "الوتونکي غاليچې" او داسي نوري کيسې او افسانې د اولني انسان ارزو او تصوراتو ښکارندوی دي[٧]".

ګورکي په يوه ډېره درنه تحقيقي مقاله کي دا موضوع په خپل ټول علمي او ادبي صلاحيت څېړلې ده او په دې پوره قانع دئ چي د ولسونو شفاهي کيسې او افسانې د دوی د ذهني تکامل د مختلفو مراحلو ځرګندوی دي.

هغه انسان ماغزه يو خلاقه هستي بولي او دا خلاقيت يې تر هر څه وړاندي په شفاهي افسانو کي پلټي. هغه وايي : "هغه مهال چي لا انسان د فردي اصالت (انډيوايډياليسم) تر سيطرې لاندي نه و راغلی نو د اجتماعي اصالت (کولکټويسم) په روحيه يې مناسبات پالل او کله چي دغه اصل له زوال سره مخامخ سو نو موږ وينو، چي په افسانه کي يو خواشينی ارمان ځای نيسي".

د ولسونو د شفاهي افسانو څېړونکي پوهان وايي چي د ولسونو په اساطيرو کي چي موږ کوم قهرمانان پېژنو او نامعلومه افسانه نګارانو هغو ته د خدايانو منزلت ور کړی دئ هغه په حقيقت کي د دوی د ټولني ماهران وه او دا د انساني ماغزو ارمان و، چي انسان ته د طبيعت پر ټولو قوتونو بری په نصيب کړي نو دا و، چي د ماکسيم ګورکي په اصطلاح افسانه د حماسې په غېږ ورغله او قهرمانان د خدايانو پر تخت کښېنول سول.

"د ولسونو د هري زړې افسانې انګېزه د کار په اساني کي د انساني تلاښ څخه سرچينه اخلي او نو ځکه ويل کېدای سي چي (هر کول)[٨] به په هغه وخت کي "د کار قهرمان" او " د ټولو فنونو استاد" و، چي د لمانځني په زياتوب کي و (المپ)[٩] ته بېول سوی او هلته د ارباب الانواعو په اړخ کي ځای ورکول سوی و[١٠]".

نن په نړۍ کي د ولسونو دغسي افسانې راټولېږي او تحقیق پر روان دئ. په جرمني کي د دغه ډول افسانو یوه مجموعه د "ګریم" په نامه په نونسمه پېړۍ کي خپره سوه او له دې سره سم د "زرین وېښتان" په نامه او په هغه پسې په ټوله اروپا کي دغه ډول افسانې راټولي سوې او په ختیځ کي دغه کار په ډېره علاقمندي نن جاري دئ.

## د افغاني فولکلور ارزښت :

په افغاني فولکلور کي پښتو افسانې د علمي تحقیق له پاره غني ذخیرې دي. تر اوسه چي په دې برخه کي کوم کار سوی دئ او کومي افسانې راټولي سوي دي، نو هغه د نړۍ د علمي مؤسسو له خوا په ارزښت سره منل سوي دي.

استاد اسلانوف د پښتو افسانې د علمي تحقیق له پاره په زړه پوره ذخیرې بولي او وایي : "د دغو افسانو په منځ کي د (فتح خان بړېڅ)[۱۱] او (موسی جان او ولیجان)[۱۲] حماسې د ډېري توجه وړ دي مخصوصاً د موسی جان او ولیجان په کیسه کي د افغانانو د عاداتو او رسوماتو دونه توصیف پروت دئ، چي د یو اتنوګرافي موزیم رنګ لري[۱۳]".

دغه دوې شفاهي کیسې او نوري افسانې چي د (ملي هینداري) په ترمخنیو دوو ټوکو کي ټولي سوي دي اکثره یې په روسي او ځینو نورو ژبو ترجمه سوي دي.

دا شفاهي کیسې او افسانې چي نن په ټوله ولس کي ویل کېږي دوه ډوله دي چي یو یې د کوچنیانو له پاره دي او د (خزدکي انا نکل)[۱۴] یې یوه ټیپیک نمونه ده، بل ډول یې د لویانو نکلونه دي، چي هغه هم پر دوو برخو وېشل کېږي یو ډول یې د پېریانانو نکلونه دي، چي معروف یې د (سیف الملوک او بدرۍ جمالي)[۱۵] او (زبزباني شاپېرۍ)[۱۶] نکلونه دي او بل ډول یې هغه کیسې دي، چي په انساني کرکټر کي د ماجراوو سرګذشتونه بیانېږي. په دغو شفاهي کیسو کي د "فتح خان بړېڅ" او "ولیجان" او "ادم خان او درخانۍ"[۱۷] کیسې ډېر شهرت لري. په عمومي ډول که د کوچنیانو

نکلونه او د شاپېريانو افسانې يوې خوا ته کړونو په نورو شفاهي داستانونو کې زموږ د ټولني پروني ځېره د خپلو ټولو اجتماعي مناسباتو سره په کامله روښنايي ليدای سو. دا د پښتو د شفاهي کيسې امتياز دئ او خصوصيت دئ، چې د يوې هينداري په ډول د ټولني د پرونيو مناسباتو ښه او بد په کامله صفايي منعکسوي. زموږ د کوچنيانو نکلونه او د شاپېريانو افسانې لکه د نورو ولسونو فولکلوري افسانې په رمز او سمبوليک ډول د کار او فعاليت قهرماني توصيفوي، خو د لويانو نوري شفاهي کيسې مو عيناً لکه يو ناول د ټولني حال تصويروي.

د مثال په ډول د (موسی جان او وليجان) په شفاهي داستان کې ټوله د داستان عناصر په طبيعي ماحول کې حرکت لري.

په دې کيسه کې زموږ د اجتماعي تاريخ فيوډالي خصوصيات په کامله پاملرنه تصنيف سوي دي. د مثال په ډول په يوه ابتدايي ټولنه کې چې هلته ملوک الطوايفي مناسبات حاکميت لري د دوی په اقتصادي مناسباتو کې د تاجر رول هلته د يو قاطع تحول پيلامه ګرزي. په دغه داستان کې لوی خان (سهيلی)[۱۸] موږ وينو، چې د دوو صحرايي تاجرانو (فيروز او نوروز) پيسو ته احتياج پيدا کوي او کله چې د ده لور (بي بي) ته مرکه کوي نو يو هدف يې دا دئ، چې د هغه څخه به پيسې اخلي او دا دوستي د هغو د پيسو په منظور عملي کېږي.

دا نو هغه مهال دئ چې د (فردريک اينګلس) په قول تجارت په قاطع ډول په دغو مناسباتو کې خپله اغېزه پرېباسي. پيسه په تازه قدمونو د سهيلي خان ټولني ته ورننوزي او هغه خان چې تر دغه وخته يې هيڅ احتياج محسوس کړی نه ونن پيسو ته احتياج پيدا کوي.

په دې پسې کيسه کې چې د خانخانۍ په ماحول کې حرکت لري د لوی خان او خرده مالک چې (وليجان) دئ تر منځ مناسبات د اجتماعي تحقيق له پاره ډېر مواد يو محقق ته په لاس ورکوي.

دا چې څرنګه يو خان د خپلي طبيعي خاصې پر بنا د خرده مالک سره اخته کېږي، او په پای کې د هغه له خوا د يوې سرشاره مبارزې سره مخامخ کېږي نو د طبيعي قانون له مخې عکس العمل جلبوي څو په دغه عکس

العمل له منځه ځي.

په دغه کیسه کي د شیریني له پاره یو پاک او معصومانه عشق هم توصیف کېږي. دا مینه له یوه پلوه د (موسی خان) او (ګلمکۍ)[19] په عشق بدرقه کېږي نو بلي خواته د (موسی جان او ولیجان) یارانه هم د ځوانمردۍ یو ډېر ټینګ مثال برابروي. د دغي کیسې په پای کي د لوی خان سره د (تانو)[20] پېغلي توره په توره جنګ او د خان وژل د یوې مبارزي پېغلي له خوا د داستان قهرماني آسمان ته پورته کوي او پر لوستونکي چي د ولیجان، موسی جان او ګلمکۍ د مرګ فاجعې هر څونه خواشینۍ ور وړې وي د "تانو" په قهرماني یې د انتقام حس تسکین کېږي.

د دې قبیله د پښتو هره کیسه څه د علمي اجتماعي تحقیق له لحاظه او څه د ادبي جوړښت له پلوه د هر ډول ارزښتونو درلوونکې ده.

د علمي تحقیق له پاره د نورو موضوعاتو په اړخ کي د حقوقي او جزایي تعاملاتو په ساحه کي ډېر غني مواد لري.

دلته به په ډېر اختصار سر دغه اصل بیان هم د (موسی جان او ولیجان) په کیسه کي چي استاد اسلانوف یې د "اتنوګرافي" موزیم بولي یو څه وڅېړو. دلته زه صرف د (هډ) او (ساري) دوې کلمې څېړم، نور نو دا کیسه ځانته قاموس لري، چي هره اصطلاح یې په لوی تفسیر او ژوره څېړنه ارزي. ساري او هډ دوې اصطلاحي کلمې دي، چي د پرونیو اجتماعي مناسباتو توازن پر تړلي دئ یعني څوک که د بل پر حق تجاوز کوي نو مجازات هم باید ومني. په حقوقو کي نفس لوی ارزښت لري، او قتل نفس داسي جرم دئ چي بدله یې مقابل طرف ته روا حق بلل کېږي.

(ساری) د برابرۍ په معنی راغلی دئ، خو زیات وخت په زیروح کي استعمالېږي یعني وایي "توریالی د ننګیالي ساری دئ" یا داسي ویل کېږي چي : "تور سخوندر د ژړ سخوندر ساری دئ" د حقوقي تمایلاتو په چوکاټ کي د ساري اصطلاح د هغه (پور) په بدله کي راځي چي د قتل نفس ذمه واري پر غاړه ولري. د ولیجان په داستان کي هغه مهال چي ولیجان د لوی خان (سهیلي) له خوا وژل کېږي نو ولیجان د زکندن پر وخت خپل زوی

(میرولي)[21] ته داسي وصیت کوي:

میرولیه پر سمه که بګړیه!
یو مي ساری د سهیلي واخله
موسی لره بل راوړه ګلمکیه!

بګړی پر سر سمه کړه، یعني د کورنۍ مشري پر غاړه ومنه او زما "پور - خون" د سهیلي څخه واخله دلته د (ساري) څخه یوازي پور مراد نه دئ بلکه (ساري) د برابرۍ معنی هم ورکوي یعني د مقتول په سویه بدله واخله.

هډ هم په کلمه کي د (استخوان) معنی لري خو د تعاملاتو له مخي یې معنی یو پوره نفس دئ چي بدله پر بنا کېږي.

د ولیجان په کیسه کي دا اصطلاح داسي راځي چي کله پر زکندن ولیجان له خپل زوی څخه د ده د (ساري) اخیستلو وعده اخلي نو زوی یې ورته وایي.

"بابا پلاره دا وصیت به دي خوار نه کم
یو به دي ساری د سهیلي واخلم - بل به هډ او ساری وکم"

یعني هغه هډ چي زما په فامیل کي مات سوی دئ د هغه بدل به په ساري واخلم.

په پښتني عرف کي بدله پرېښوول بې غیرتي ده او نو ځکه په دغه کیسه کي د پلار په بدله کي زوی مبارزه کوي څو هغه هم له منځه ځي، او په پای کي دا ساری د ولیجان خور (تانو) اخلي او (سهیلي) وژني.

په ادبي لحاظ دا کیسه او د پښتو نوري افسانې د دې کمال درلوونکي دي، چي په نوي افسانه نګارانۍ کي زموږ د ژبي لیکوالان د هغو تقلید وکړي، د دغو افسانو طرح، قهرمانان، کرکترونه او د کیسې فضا عادي جریان تمثیلوي، او د کیسې (تم) یوې عالي نتیجې ته رسېږي. په پښتو افسانو کي تصادف او بحران ډېر په احتیاط برخه لري او د لوستونکي ذهن له اوارګۍ سره نه مخامخ کوي.

د دغو ارزښتونو او ادبي کیفیت په بنا نو که د پښتو له شفاهي کیسو او افسانو څخه زموږ په نوې کیسه لیکنه کي د تقلید استفاده وسي دا به مو لیکوالو یوه کامیابه لار په مخه اخیستې وي.

## د شفاهي کیسو څخه په نوې افسانه نګارۍ کې استفاده :

پښتو ادب چې څونه د شفاهي کیسو او افسانو له پلوه پنې او غني دئ په دغه اندازه د نوي کیسه لیکنې له خوا خوار او کمندری دئ.

زموږ زیاتره افسانې چې مجلې او اخبارونه یې چاپوي ډېر لږ زموږ د اجتماعي ژوندانه معرف ګرځي. د دې کار علت دا دئ چې افسانه نګار مو کاغذي کتاب لوستی دئ، خو د ټولنې له کتاب څخه بې خبره وي. تاسي وګورئ زموږ په شفاهي کیسه کې د اجتماعي مناسباتو څېره بالکل شفافه او روښانه ده او هر حرکت او برخورد کاملاً عادي رنګ لري خو برعکس زموږ په نوي لیکل سوي کیسو کې دا شفافیت نسته او سړی چې یې لولي ډېر لږ داسي خیال کوي چې ګواکي زموږ د محیط عکاسي دي پکښې سوې وي.

د دې علت دا دئ چې شفاهي کیسه مو د ولس تخلیق دئ او هغه چا چې دا کیسه جوړوله د ټولنې کتاب یې پېژندی خو زموږ نوی افسانه نګار چې جهاني فرهنګ افاقي کړی دئ ډېر یې لږ دې خواته توجه ساتلې ده، چې یو څه ځان په خپله ټولنه کې انفسي کړي او نو ځکه افسانه یا کیسه یې بیګانه ښانته ایسي.

زه دا نه وایم چې د پښتو افسانه نګاران یا د لنډو کیسو لیکونکي لیکوالان به ټوله همداسي وي خو په جرئت ویلای سم، چې داسي اثار به زموږ په نوې کیسه لیکنه کې ډېر لږ وي چې د شفاهي کیسو په شان دي طبیعي وي.

د لنډې کیسې (شارټ ستوري) د لیکنې ادبي فن چې پښتو ادب ته له یورپ څخه راغی بد مېلمه نه و، خو په وروسته وروسته کې بد کور به ځني جوړ سو.

د یورپ په تقلید په پښتو ادب کې داسي کیسې ولیکل سوې، چې صرف نومونه به یې پښتو وه یعني هلته چې د قهرمان نوم (موریس) و، دلته په انځر ګل واوښت، هلته چې د قهرماني نوم (لوسي) و دلته ګلالۍ سوه. هلته چې د داستان قهرمان برخورد ځای د (ژنیو د جهیل) غاړې وې دلته د سیند ګودر سو، په دې ډول به پښتو افسانه کې یو منحظ جریان راوارد سو. په دې پسې زموږ افسانه نګار لیکوال د نوي مطالعاتو پر لار د فولکلور د

اهمیت او ارزښت سره اشنا سول، او د نړۍ د لويو تحقيقي او فرهنګي مؤسسو څخه يې واورېدل چي پښتو شفاهي ادب د فولکلور خورا ښه خزانه ده دا مهال يې نو مخه دې ته کړې، دلته هم د يوې غلطۍ سره مخامخ سول او د خپل شاوخوا عيني شرايط يې له ياده ووتل او ولاړ په تخيلاتو کي نوک تر کوټيه غوټه سو.

دلته نو د پاوليو شرنګا او کړو برېټو پسې واخيست څو د ادبي ابتذال لويي کندي ته ولوېد.

په دې برخه کي چي زموږ پاک شفاف او اصيل شفاهي ادب ته ښه د پراخه لاسه زيان ورسېد، نو تر افسانې په راډيو ډرامه کي دا کار کاملاً په بې صلاحيتي او بخښنه غواړم په بې ادبي سر ته ورسېد.

يو بل وخت را ورسېد چي زموږ باذوقه خو د ادبي روزني څخه فارغه افسانه نګار د نويو ريالستي ادبي اثارو سره اشنا سو، نو دردېدلي عواطف يې لکه د اور غر پر جوش راغلل خو څرنګه چي د سره څخه بده پېښه وه نو دلته هم لار ورکه سوه.

زموږ افسانه نګار د بزګر خواره ورځ په قلم تصوير کړه، د ده د پښو چاودي، خواشينې ورځ، د تندي غوټۍ او کړاغي سترګي يې ترسيم کړې، خو دا بزګر بيا هم زموږ بزګر نه وو بلکي د نورو مځکو او د بل کلتور بزګر و چي زموږ له بزګر سره يې عيني او ذهني شرايطو توپير درلود[٢٢].

په دې ډول په نوې شېوه په پښتو افسانه نګاري کي يو لار ورکي جريان روان دئ او په کار ده چي د دغه کاروان مهار و لاري ته راکش سي.

په حاضر وخت کي زموږ د ادبياتو په پوهنځي کي هم دغه کار ته پروګرام نسته، او د پښتو اکاډمۍ (پښتو ټولنه) خو نو له داسي مسايلو سره کاملاً نا اشنا وه.

اوس چي زموږ په اجتماعي اوضاع کي يو لوی تحول او بدلون راغلی دی او له دې سره سم زموږ په فرهنګي مؤسسو کي هم نويتوب را روان دئ نو هيله ده چي د ادبياتو پوهنځی او پښتو ټولنه او نوري علمي او تحقيقي مؤسسې به دغي مبرمي مسئلې ته توجه وکړي. زه په پوره زړه سره دا ويلای سم چي زموږ ننۍ ځوان افسانه ليکونکی به د خپلي ټولني عيني او

ذهني جريانات د علمي جهانبينئ په رڼا کي مطالعه کړي او بيا د افسانه ليکني په وخت کي زموږ د شفاهي کيسو ادبي شېوه او ترتيب په خپله ليکنه کي وپالي نو داسي يو اثر به واقعاً زموږ د اجتماعي ژوندانه د انعکاس څخه غني برخه ولري او په رښتيا به يو افغاني ادبي اثر ورته وويلای سو.

دا حقيقت بالکل منل سوی دي، چي د نړۍ نخښه ليکوالان او افسانه ليکونکي هغه خلک دي، چي په خپل ملي فولکلور کي د معلوماتو لويه ذخيره ولري.

نو ځکه ويلای سو، چي دا کتاب کوم چي ما دالنده څېړنه د مقدمې په ډول پر ليکلې ده زموږ د فولکلور يوه غنيمت خزانه ده او د ټولوونکي او مؤلف کار يې په هر ډول لمانځنه او ستاينه ارزي.

هيله لرم چي دا اثر زموږ د ځوانو افسانه ليکونکو او ناول ليکونکو له پاره په ګټه تمام سي.

محمد ابراهيم عطايي
د کندهار د اطلاعاتو او کلتور لوی مدير
او د احمدشاه بابا د کتاب چاپولو د مؤسسې آمر

# د نومونو شرح او حوالې

دلته هغه نومونه او حوالې شرح کېږي چي په مقدمه کي په لمبر اشاره ورته سوېده:

١. هومير: د قديم يونان يو شاعر و، د ده تاريخ پوره معلوم نه دئ څوک وايي چي تر ميلاد پخوا و. دی د (ايلياډ) او (اوډيسه) د حکاياتو ناظم و.

٢. ايلياډ: دا د قديم يونان يو منظوم حکايت دي، چي هومير ته منسوب دئ. په دغه منظوم حکايت کي د تراجان د جګړو د

وروستيو ۴۹ ورځو بيان راغلی دئ، ايلياډ پر ۲۴ برخو مشتمل دئ او د (ترای) د محاصرې ځخه رغېږي.

۳. اوډيسه : داهم د هومير يو منظوم داستان دئ، چې ۳۴ برخې لري او د (ترای) تر سقوط وروسته د (اتاکا) د باچهی خبرې پکښې دي.

۴. ويکتور هوګو : (۱۸۰۲ - ۱۸۸۱) دا د فرانسې يو معروف رومان ليکونکی او شاعر و، د ده د (بينوايان) اثر ډېر شهرت لري.

۵. ټاينبي (ارنولد) معاصر انګليسي مؤرخ او سياسي ليکوال دئ، دا سړی په (۱۸۸۹) کې زېږېدلی او د تاريخ په باب فلسفي څېړني لري اوس هم ژوندی دئ.

۶. ګورکي (ماکسيم) : د شوروي اتحاد مشهور ليکوال دی چې په (۱۸۶۹ م) کې زېږېدلی او په (۱۹۳۶ م) کې مړ دئ. ده په (۱۹۰۵ م) کې امريکا ته سفر وکړ او د (مور) په نامه کتاب يې د دغه سفر سوغات و، ګورکي د نړۍ په معاصرو ليکوالو کې د اجتماعي رياليسم د سبک لوی استاد دئ.

۷. د ګورکی د (نظری به ادبيات) د کتاب ۲۲۸ مخ.

۸. هرکول : د قديم يونان په اساطيرو کې د زور او قوت رب النوعه په اساطيرو کې وايي چې ده به په څو سوه کاله کې يو ځل د لوی رب النوعه (ذينوس) مامته جارو کوله.

۹. المپ : په يونان کې هغه مقدس غر، چې قديمو يونانيانو عقيده درلوده، چې ارباب الانواع هلته اوسي.

۱۰. د نظری به ادبيات د کتاب ۲۳۸ مخ.

۱۱. فتح خان (بړيڅ) : د پښتو د يوې شفاهي کيسې د داستان قهرمان د دغه داستان قهرمانه (رابيا) ده او د پېښې ځای يې د کلابُست څخه تر هندوستان پورې دئ.

۱۲. موسی جان او وليجان : د پښتو د ملي افسانې دوه قهرمانان.

۱۳. د افغانشناسی ۸۳ مخ.

۱۴. د خزدکي انانکل : دا د کوچنيانو يوه مشهوره کيسه ده، چې په

لوېديځو پښتني سيمو کي پېژندل سوې ده.

۱۵. بدرۍ جماله شاپېرۍ : دا د پښتو د پېرياني نکلونو د داستان يوه قهرمانه ده، چي سيف الملوک پر مين سوی و.

۱٦. زبزبانه شاپېرۍ : دا هم د پښتو د شاپېريانو د نکلونو يوه قهرمانه ده.

۱۷. آدم خان او درخانۍ : دا د پښتو د يوې مشهوري شفاهي کيسې قهرمان او قهرمانه دي.

۱۸. سهيلي : د موسی جان او وليجان د کيسې منفي کرکتر او لوی خان.

۱۹. ګلمکۍ : د موسی جان او وليجان د کيسې قهرمانه د موسی جان مينه دا نکل د موسی جان او ګلمکۍ په نامه هم يادېږي.

۲۰. تانو : د موسی جان او وليجان په کيسه کي د وليجان خور چي (سهيلي) لوی خان يې د توره په توره جنګ کي مړ کی.

۲۱. ميرولي : د وليجان زوی چي د سهيلي خان په جنګ کي مړ سوی دئ.

۲۲. د ننګرهار د مجلې د ۱۳۵۱ کال د مرغومي په ګڼه کي د (برښنا) پر داستان تقريظ چي زما په مستعار تخلص (اديب) په نامه نشر سوی دئ.

# محمد ګل نوري

## د "ملي هینداري" مؤلف

ښاغلي محمد ګل "نوري" چي اوس یې عمر تقریباً (۷۳) کالو ته رسیږي تقریباً پنځوس کاله یې د ولسي ادب (فولکلور) په ټولونه کي خدمت کړی دئ.

ده د عمومي مدیریت تر چوکۍ پوري کار کړی دئ، او بیا تقاعد سو اوس د کندهار په مطبعه کي مصحح دئ.

دا سړی چي نن ځونه په ګمنامۍ کي ژوند کوي نو شهرت یې د افغاني فرهنګ په قاموس کي هغومره اوچت دئ.

د ده کار د هغو هیوادونو د ادبي او فرهنګي مؤسساتو له خوا په درناوي لمانځل سوی دئ چي د افغاني ادب او فرهنګ سره اشنایي لري.

ښاغلي نوري تقریباً څلوېښت کاله دمخه په هغه کار شروع وکړه، چي نن هم زموږ د فرهنګ په معرفي کي د لومړي، ضروري او مبرم اهمیت درلوونکی دئ. ده پښتو متلونه، لنډۍ، نومونه او تکیه کلامونه راټول کړل او ځیني چاپ سوه او ځیني یې ورک سول.

د ده پښتو اصطلاحات هغه قاموس دئ چي تقریباً پنځه ویشت کاله پخوا چاپ سوی دئ او تر نن پوري بیا چا په دې باب کار نه دئ کړی او حتی دغه ضروري کتاب چي اوس بیخي نه پیدا کېږي دوباره چاپ سوی هم نه دئ.

ښاغلي نوري ولسي کیسي راټولي کړې او دوه جلده یې شل پنځه ویشت کاله پخوا د ملي هینداري په نامه چاپ سوه او دریم ټوک یې دا دئ اوس چاپیږي. د ده دغه اثر (ملي هیندار) په جهاني سویه شهرت لري او

هغه خارجي تحقيقي مؤسسې چي د افغاني کلتور په باب څېړني کوي دغه اثر ته په لوی اهميت قايلي دي.

دغه فرهنګي کارونه چي په يوازي سر ښاغلي نوري کړي دي نو د ده تر تقاعد وروسته حتی په پښتو ټولنه کي هم دغومره کار نه دئ سوی.

بايد په خواشيني ووايو، چي پښتو ټولنه په دې برخه کي دونه بې علاقې وه چي د (ملي هينداره) دوه ټوکه چي د ده په نامه وه په پېښور کي د ده بې اجازې څو واره چاپ سوه او حتی ليکوال يې په جګ سر ژوندی و، خو نوم يې هم غلط سو يعنی د محمدګل پر ځای محمد کامل ور ولوېدی دا چي په متن کي يې نوري څه مداخلې سوي دي هغه لا بله خبره ده خو د غه زموږ د ملي ادب پالونکي او ساتونکي مؤسسې په دوو تورو هم د دغي غلطۍ يادونه ونه کړه.

په هر صورت دا سپين ږيری ليکوال چي اوس يې زړه مات دئ او د زمانې ناخوالو ډېري څپړي ورکړي دي يو شمېر نور داسي آثار لري چي زموږ د فولکلور زړه بايد ورته ووايو او موږ هيله لرو، چي د ده تر مرګ پخوا هغه له ضايع کېدو څخه راوګرزي.

البته د پښتو ټولني له نوي جريان څخه چي يو لايق او باانصافه ليکوال يې په مشري ټاکل سوی موږ ته دا ډاډ راکوي چي د ښاغلي نوري د آثارو په نشر کي به د مرستي لاس وغزوي.

(م. عطايي)

# خانان

دا پوره ته نوم د یوه هلک و، چې پلار یې نه درلود، یوه مور یې وه، یو یې پلندر و، نور یې هیڅ نه درلوده، خورا مسکین و، پلندر د خانان سره ډېر بد کوله، د خانان د پلندر سره شپه نه تېرېدله، باره ځني وتښتېدی ولاړ یوه بل وطن ته، ورغی د یوه مالدار او کوچیانو کلي ته، یوې کوډلي ته ورغی خورا وږی دئ په کوډل کي یوه سپین سرې بوډۍ ده، و دې بوډۍ ته یې وویل چي وږی یم څه ډوډۍ راکه!

و بوډۍ ته د کوډلي دمخه د دې چرګه او چیچان ګرځي بوډۍ ورته وایي چي هغه بلي کوډلي ته ورسه، ډوډۍ به درکي زه دا چیچان ګورم چي پډو (تېپوس) یې یو نه سي.

خانان ورته وایي چي زه ډېر ستړی یم، پښې مي تنها کي دي نه سم ورتللای، ته ورسه ډوډۍ راته راوړه زه به د پډو څخه چیچان ګورم ځني شړم به یې.

بوډۍ ویل ښه دئ، بوډۍ په ډوډۍ پسي رهي سوه، ده فکر وکی که پډو راغی خامخا به یو چیچی راڅخه یوسي، د بوډۍ به خوا بده سي باره راولاړ سو، ګرده چیچان یې د چرګي سره پښه پښه په انځی سره غوټه کړه نو ورته کښېنوست.

یو ګړی باد پډو راغی پر چیچانو یې حمله وکړه یو چیچی یې په منګل کي واخیست په هوا سو، خانان ورته ګوري چي نه یې سي وړای، دوباره ټوله چیچان او چرګه په هوا سوله، ګرده پډو یووړه.

خانان فکر وکی چي که بوډۍ راغله ولاکه دي بې مرګه پرېږدي، باره یې دوې پښې دغه کړې دوې نوري د وهمه څخه راوتښتېدی ولاړ، هله هله یوه بل کلي ته راغی، خورا وږی دئ یوه سړي ته یې وویل چي وږی یم که

دي ګوله ډوډۍ راکړه؟ هغه ورته وویل غټ هلک یې ولي مزدوري نه کوې چې پکر کوې؟ ده ورته وویل چې مزدوري کوم که راپیدا سي، هغه سړي ویل چې راسه زما مزدور سه! ده ویل ښه دئ، باره یې خانان کور ته بوت مزدور یې کی، په دغه ورځ یې ډوډۍ ورکړه، موړ یې کی، ماښام سو، د دغه سړي غوا ناجوړه ده، خانان ته یې وویل چې ته په دغه پراړه کي غوا ته پر پوزه، دا غوا ناجوړه ده دغه چاړه درسره کښېږده که غوا مرداریدله دستي به یې حلاله کې، خانان ویل ښه دئ.

باره خانان په ګوخانه کي په پراړه کي پرېووت، دغه سړي یوه خره درلوده، دا هم په دغه ګوخانه کي تړلې ده، چې نیمه شپه سوه تاریکه ده، د خرې ترپکي سولې، ده دستي چاړه پر راواخیستله، د خوبه هم دئ، جړ سو خره یې الاله کړه نو بیرته ورغی بیده سو، چې سهار لږ څه رڼا سوله، که ګوري چې خره یې حلاله کړېده، غوا مرداره سوېده، باره اریان سو چې دا څه چل پېښ سو باره د خاوند د بیري په دغه خره لا د ګوخانې څخه راووت بیا وتښتېدی را رهي سو.

هله هله وهم او بېره په پسې ده، هله هله یو دښت یې پسي راواخیست راغی و یوه غره ته خورا وړی سو، د غره په لمن کي ښکاریان دي تازیان ورسره دي، باره د ښکاریانو سره مزدور سو، وروسته ښکاریانو یو پوستین او یوه شړۍ او تازیان په لاس ورکړه، چې موږ پر دغه لوړ کمر خیژو ته به د غره پر پوزه راوګرځې ها خواته به راسې، تازیان ستړي دي، ته هم نه سې ختلای.

ده ویل ښه دئ، ده پوستین او شړۍ راواخیسته، ښکاریان غره ته وختله، دی را رهي سو، ستړی دئ، شړۍ او پوستین نه سي وړای باره یې پوستین پر یوه تازي وتاړه، شړۍ یې پر بل تازي وتړله، څه څکل چې ولاړ، یو وار د تازیانو په مخ کي ګیدړه وغورځېده، تازیان ورپسي ور په هوا سوله پسي الا یې کړه، ګیدړه دمخه تازیان په پسې دي هله هله ګیدړه راغله په یوه غار ځني ننوتله، هغه تازي چې پوستین پر تړلی دئ په ګیدړه پسي ننووت د دې خوا دا بل تازي پسي ننووت، دا تازي چې ور حمله کي یو ټکر پوستین په خوله کي ځني یوسي، خولنده دا چې پوستین ټکر ټکر ګدړ

ګدړ سو، شړی هم په ځوزانو کي ټوک ټوک سوله، څه سر دي ګرځوم بیا د ښکاریانو د بیري راوتښتېدی هله هله راغی یوه کلي ته، شپه ده یوه کور ته ور ننووت، یوه ښځه ناسته ده ډوډۍ پخوي، وریجي یې باندي کړي دي، اندړه یې دېګ ته جلا اچولې ده پخوي یې، دا ښه یار لري، هغه راغلی دئ د خوني په پای کي ناست دئ، دغه ښځه د هغه یار له پاره دا وریجي او غوښي پخوي.

باره خانان ور ته وایي چي وږی یم ډوډۍ راکه !

دې نیمه ډوډۍ ورکړه چي ها دغه ده څه ولاړ سه !

خانان وایي یه ولا مړ مي کې که ولاړ سم، زه هغه اندړه غواړم وریجي غواړم، ښځي چي هر څه ور ته وکړه، وې واهه درد یې پر وکی چي ولاړ سه، دی وایي ولاکه ګام واخلم، زه وږی یم، خانان رشتیا چي وږی هم دئ او بل یې د ښځي یار لیدلی چي د خوني په پای کي ناست دئ، پوهېږي چي دا خواړه و یار ته پخوي، نو ځکه وایي ولاکه ولاړ سم، چي زه به وږی ناست یم ستا یار بې خوري، ښځه اریانه سوله چي که اوس اندړه یا وریجي ورکوم ګر ده خوري یار ته مي هیڅ نه پاتېږي، خو دا په دغه چرت کي ده چي اوس هلک څنګه وباسم، نیمه شپه سوه یار مي وږی دئ، بازۍ مي هم د یار سره ونه کړې، یو وار د دروازې کړپ سو، مېړه یې راغی، یار یې په کندو کي واچاوه، نو راغله د هلک سره په ګفتګوی سوله چي ورځه ووزه !

مېړه چي یې راغی ویل څه نکل دئ؟

دې ور ته وویل دغه سپین سترګی هلک دئ راغی ویل وږی یم یوه ډوډۍ مي ستا له پاره ساتلې وه، د هغې څخه مي نیمه ورکړه وې خوړله، اوس وایي دا نوره هم راکه چي وې خورم، زه وایم ورځه بس ده دا نوره مي د مېړه ده، بیا هغه وږی پاتېږي، دی نه ځي وایي ولاکه ولاړ سم.

مېړه یې ویل نوره ډوډۍ نسته؟

دې ویل یه !

ده ویل خیر دئ، چي نسته داغه به سره شریکه کو.

باره ده او هلک هغه نوره نیمه ډوډۍ سره وخوړله، نو کی یې ماینې ته ورکړه چي دا خواره به هم وږې وي، ډوډۍ چي یې وخوړله ماینه یې هلک ته

وايي چي اوس تو ورځه ولاړ سه، هلک وايي چيري په دې يخ، په دې نيمه شپه ولاړ سم، ولاکه ګام لا واخلم، مېړه يې واى مې کوه خوار کی، سهار به ولاړ سي، يو ګړى باد سړى و هلک ته وايي، چي هلکه د کم ځاى يې؟ څنګه راغلى يې؟ هلک وايي د روزګان يم، په مزدوري او خواري پسې راغلى يم، د کور خاوند وايي : ښه دئ زما سره مزدور سه، زه به دي ښه ساتم. ماينه يې وايي : ورک يې که دا سپين ستر ګى هلک، ډېر بې حيا دئ ولاکه يې په نس موړ کې، سُسُت او لټ دئ څه يې کوې، ولاکه که زما خوله وي که نن شپه راته تېره کي.

مېړه يې وايي: څو شپې دي وي معلوم به سي که يې ښه کار کاوه هغه دئ راسره به وي، که لټ، بېکاره او سپين ستر ګى و بيرته به جواب ورکو.

لنډه دا چي اوس وخت د خوب دئ، ماينه يې وايي درځئ چي بيده سو نيمه شپه سوه.

مېړه يې وايي : ښه دئ زه هم ستړى يم.

هلک وايي : وختي دئ، ودرېږئ چي يو نکل مکل وکو بيا به بيده سو.

ماينه يې وايي : ويش خوار سې، ځغله ورک سه د دله زو ته چيري نکلچي سوې.

د کور خاوند وايي : ښکنځل مه ورته کوه، يتيم هلک دئ ولي يې زهيروې، بيا يې هلک ته مخ راوګرځاوه چي ښه زويه وکه نکل، زه به دي شپانه يم ښه ښه به درته لرم، ښه ! هلک وايي نکل دا دئ چي نن راتلم په لار کي يو مار و داسي پنډ او داسي پېچ پېچ کېدی فقط لکه هغه انډره چي په غوړو کي سره سوېده، او په کاسه کي تر کور لاندي پرته ده "ماينه يې وايي ورک سه چيري ده، انډره خداى دي خوار که په هغه نکل، ناحقه درواغ وايې، مېړه يې وايي ښه نکل وکه ته يې پرېږده ښځي چي نکل وکي، ښه !

هلک وايي : داسي نري غاښونه يې وه لکه هغه وريجي چي په غوړو کي د کور تر کمبله لاندي پرتې دي، او داسي ژړي ستر ګي يې وې، لکه د هغه سړي چي په کندو کي دئ.

سوداګر پوه سو چې يو څه چل سته، باره ور ولاړ سو، چې کمبله يې پورته کړ، سره کړې انډره، وريجې او غوښې پرتې دي، دستي يې و کندو ته هلا کړه، چې سړی ولاړ نه سي، چې ورغی د کندو څخه سړی د ښځې يار را وغورځېدئ، باره د کور خاوند او لونډه سره چنګاو سوله.

ښځه ورغله د خپل يار پر خوا سوله، يار څني خلاصوي، د کور خاوند يو دئ، دوی دوه سوه، خو په دغه کشمکش کي دبانډي سره راووتله، د سرای مينځ ته، هلک ورته ګوري وپوهېدی چې ښځه او يار پر زور سوله، باره ورغی د آس پالانه يې واخيستله پر بام وخوت، اوس يې پر لونډه را ايله کوي چې تر لاندي سي نو به د کور خاوند پر زور سي، چې پالانه يې د پاسه پر را ايله کړه د پالانې دمچي د ده په غاړه کي بنده سوله، دی و پالانه دواړه پر دوی را ولوېدله، لونډه تر پالانه لاندي سو، پالانه پر سربېره سوله، هلک پر پالانه سربېره ولوېدی، ښځه د دې کيفيت څخه وبېرېدله، هلته ځای پر ځای کښېنستله، باره لونډه يې هلته سره سوکي موکي کی مړ يې کی، باره يې پر ماينې را واچوله دا يې مړه کړه، هلک ته يې ډيري روپۍ ورکړې، کور ته راغی مور يې بير ته کونډه سوې وه، روپۍ يې مور ته کښېښووې چې دغه دي خوره يې.

# شاتر حسن

چي و يو باچا و، نوم يې نوشېروان و، يو داسي ګړندی شاتر يې درلود، چي درې ګامه به د باد څخه تلی، د دې شاتر نوم "حسن" و.
يوه ورځ باچا او شاتر حسن په ښكار سره ولاړه، چي غره ته ورسېدله، د باچا مسئله كور پاته سوې وه، شاتر حسن يې كور ته راولېږی چي مسئله راوړي.
شاتر حسن لكه باد كور ته راغی، كه يې كتل چي د باچا ماينه او وزير سره ناست دي، (حسن) باک په ونه كی تر تېر سو مسئله يې راواخيستله، باچا ته يې په يوه پلا په يوه تراټ راوړه، حال يې پلن واچاوه، باچا ته يې څه ونه ويل.
دلته وزير وهم واخيستی چي شاتر حسن وليدلې نبايده چي باچا ته ونه وايي، په راسه دا شاتر په باچا په يو ډول مړ كه.
شاتر حسن خو پر باچا داسي ګران دئ لكه خپل سكه زوی ځكه چي د شاتر حسن دا عادت او خوی و، چي هر رنګه سخت كار به و، چي باچا به ور وفرمايه، ده نې نه درلوده، ويل كولای يې سم، هغه كار به يې اجراء كاوه.
وزير فكر وكی چي راسه يو داسي ناشده كار و باچا ته ووايه چي د شاتر حسن د لاسه نه كېږي، او هيڅ شد ونه لري.
لنډه دا چي وزير هم په باچا پسې غره ته راووت يو خورا لوی د چول دښت دئ، يو څاځكی اوبه نسته، چي راغی باچا ته يې سلام وكی، پسله هغه يې د ښارو او اباتيو خبري شروع كړې، په دې ترڅ كي يې ورته وويل: ياره صاحبه ! ارمان چي پر دې دښت يو ښه ښار وای، څه ښه خوند به يې كړی وای. باچا ويل : دا نو د چا د لاسه كېږي؟ وزير ورته وويل چي د شاتر حسن د لاسه كېږي، منګر هو چي ته ورته ووايې "چي دا ښار به په دغه يوه هفته

کي جوړوي که نه وي بې مرګه دي نه پرېږدم".

شاتر حسن داسي کمالات لري چي هر څه کولای سي نه پوهېږم چي پېری دئ که ولي دئ؟ منګر زه په خبر یم تـه نه یې په خبر حال یې نه دئ درته ویلی.

باچا ویل : هن !

ده ویل ولا که بل ډول ده.

باچا دستي شاتر حسن راوغوښت ورتـه ویل یې څنګـه زویـه ! دلاسه دي کېږي چي دلته پر دغه دښت یو ښه نوی ښار جوړ کې؟

ده خو نه، نه ویل، ویل هو !

باچا ویل : ښه منافقه تا دا دونه عمر دي زما څخه دغه کمال پټ کړی و، او ما داسي نازولې، یه نو خامخا که دي د لاسه کېږي کـه نه کېږي پـه دغـه یوه هفته کي به خامخا دغه ښار جوړوې.

شاتر حسن ویل ښه دئ، د جمعې په ورځ به راسي سیل به یې وکې.

لنډه دا چي باچا او وزیر څني را رهي سوله شاتر حسن یـې پرېښـو، ماښـام سـو، شاتر حسـن راغـی پـر یـوه لـوړه غونـډۍ کښېنوسـت ژاړي چـي خدایه دا خو زما د لاسه نه کېږي، دا څنګه کم عقله خلک دي تـه مي چاره وکې.

چي نیمه شپه سوله یو سپین ږیری سړی ورتـه ودرېـدی ورتـه ویـل یـې چي ولي ژاړې؟

ده یې سلام وکی ورته ویل یې چي ستا قربان سم باچا یو داسي د عقله لیري یو ناشده کار را فرمایلی دئ چي هیڅ نه کېږي او نه سوی دئ. ده ویل څنګه خدای به یې اسانه کي.

شاتر حسـن ویـل چـي باچـا تـر بلي هفتـې حکـم رابانـدي کـړی دئ چـي دلته به پر دغه دښت یو نوی داسي ښار جوړوې چي په هیڅ ملک کي نه وي.

سپین ږیري ویل چي دا خو اسانه کار دئ، واخله دغه زما لکړه، په خپله د ښار نقشه واچوه، سهار به که خدای ﷻ کول ښار جوړ سوی وي.

شاتر حسن دستي بسم الله کړه، لکړه یې راواخیسته پـه یوه ګړي کې د ښار او ارګ داسي نقشه واچوله چي توبه.

راغی بیر تـه غونډۍ تـه لکـه یې سپین ږیـري تـه ور کـړه، ولاړ دی پرپووت، چي سهار سو کـه یې کتـل داسي تـک سپین ښار ولاړ دئ، چي سترګي نه پر رونېږي، نو ښه کوټۍ او ماڼۍ او بنګلې دي چي توبه، ښه ښه حوضونه دي، منګر څوک نسته نه اوبه پکښې سته.

شاتر حسن را رهي سو لکه باد باچا ته راغی سلام یې وکـی، ورتـه ویـل یې چي جوړ مي کی، راځه سیل یې وکه!

آبس باچا سره له وزیر او شاتر سره راسپاره سوه، چي راغله که ګوري یو ماڼۍ دي، دوکانونه دي، ارګ دئ، حوضونه دي چي باچا اریان ورته ولاړ.

وزیر ورته ویل چي وینې صاحبه! دا داسي بلا سړی دئ هر څه یې د لاسه کېږي، "په زړه کي یې ویل چي ګور د ډاګ(؟) په دې چم هم نـه سو مړ، دا خو لا پر باچا ګران سو." باره وزیر باچا ته وویـل چي ښار خو ښه ښار دئ منګر ارمان چي دا حوض د اوبو ډک وای، چي ګرده ښار تـه اوبه ځنی ورتلای، او پر غاړه یې یوه د خندا او د ژړا درختي ولاړي وای څه بده به ښه و!؟

باچا ویل: هو ته خو ښه وایې منګر دا د چا د لاسه کېږي، دا وچ دښت اوبه چیري دي، او د خندا او د ژړا درختي چي دي، چیري سته؟

وزیر ورته وویل چي ولي د شاتر حسن د لاسه کېږي، ښار یې په یوه شپه جوړ کی، دا نه سي کولای.

باچا و حسن ته ویل څنګه د لاسه به دي وسي؟

شاتر حسن ویل هو! دا پلا دوې هفتې مهلت راکه!

باچا ویل ښه دئ.

لنډه دا چي باچا او وزیر را رهي سوله خپل کور تـه. شاتر حسن ماښام بیا راغی پر هغه غونډۍ کښېنوست که ګوري په نیمه شپه هغه سپین ږیری ورته ودرېدی، بیا یې ورته وویل: "ولي ژاړې زویه؟"

شاتر حسن ویل: ستا جار سم خو بیا یې داسي کار را فرمایلی دئ چي دا ښار خو اوبه غواړي باید دغه د ارګ حوض اوبه ولري چي وګرده ښار تـه اوبه ځني ور بهېږي، او بل یې د خندا او د ژړا درختي غوښتي دي، چي د دغه حوض پر غاړه به شنې وي.

سپین ږیري ویل: خدای ﷻ به یې اسانه کي، واخله دغه زما لکړه پر سپور به سې سترګي به پټي کې، چي سترګي دي را روڼي کړې په یوه ځنګله کي به یوه دېبه وي، په پښه کي یې دا څو کاله کېږي چي یو منده مات سوی دئ، هیڅوک یې نه سي کښلای، دغه زما نُسی به واخلې دغه منده به وکاږې، هغه دېبه به د خندا او ژړا درختي درکي، رابه یې وړې، د حوض پر غاړه به یې شنې کې، او دغه لکړه به د حوض په منځ کي ووهې، اوبه به ځني راوغورځي ګرده ښار ته به بهېږي.

ده ویل: ښه دئ!

لنډه دا چي ده هم بسم الله کړه پر لکړه سپور سو سترګي یې پټي کړې، چي روڼي یې کړې، که ګوري چي یوه دېبه ده د ځنګه په منځ کي یې زګېروی دئ.

دېبي ورته ویل: څه کوې سړیه؟ دا ځای او ته؟

ده ورته وویل چي راغلی یم چي دغه ستا د پښې منده وکاږم.

دېبي ورته ویل چي پر دې ټولو آن تمام کی کښلای یې نه سي، ته یې چیري کښلای سې، او زه هم توان نه لرم چي پښه درته ونیسم، ناره او چغه مي تر خوله خیژي زما په دغه چغه ټوله دېبان راځي و به دي خوري.

ده ویل چي زما یې چم زده دئ، کښلای یې سم، منګر پس له دې چي منده مي وکیښ د دېبانو څخه به مي ته ساتې. دې ویل: ښه دئ!

آ بس شاترحسن یو غار او نغم پرې کی، دېبي تر غار پښه ور وځړوله، ده بسم الله کړه نُسی یې ور واچاوه کش یې کی منده یې وکیښ.

د دېبي تر خوله یوه بُغاره ووتله چي په دې بُغاره سره ټوله دېبان راغله ویل څه نقل دئ امر کوه خدمت!!

دېبي ورته وویل: خیریت دئ ځای پر ځای ودرېږئ!

یو سړی دئ زما د پښې څخه یې منده وکیښ ناره مي تر خوله ووتله منګر هوښ کوئ چي غرض په ونه کئ. چي پښه یې ارامه سوله، دی د غار څخه راووت، ټوله دېبان په سلام ورته ودرېدل.

دېبي ورته ویل چي غواړه سړیه څه غواړې؟

ده ورته ویل چي د خندا او ژړا درختي غواړم.

دیبي ویل : دا خو اسانه کم قیمته شی دئ بل شی وغواړه.
ده ویل : په بل هیڅ شی نه غواړم.
دیبي حکم وکی چي ورسئ د خندا او ژړا درختي ور کئ. دستي دېبانو درختي راوړې ور یې کړې.
دیبي یو څه د خپل سر وربښتان ور کړه چي که هر وخت دربانـدي تنګسه سوله دغه وربښتان به ودودوې موږ به ټوله ستا په خدمت کي حاضر سو.
لنډه دا چي شاتر حسن د خندا او ژړا درختي راواخیستلې وربښتان یې په جیب کي واچول.
دیبي حکم وکی چي په یوه رپ کي به یې تر ځایه ورسوئ.
دېبانو په څټ کي سپور کی را په هوا یې کی برابر یې هغه نوي ښار ته راووست، دېبان بیر ته ځني رخصت سوله.
د خندا او ژړا درختي یې د حوض پر غاړه شنې کړې لکه یې د حوض په مینځ کي ووهله، دستي د خدای ﷻ په حکم اوبه راوغور ځېدلې لکه فواره داسي راغورځي، د ښار په ټولو لښتیو کي اوبه وبهېدلې.
په دا بل سهار شاتر حسن راغی باچا ته یې سلام وکی ورته وې ویل چي د خندا او ژړا درختي مي راوړې شنې مي کړې، حوض هم د اوبو ډک دئ، ټوله ښار ته اوبه ځني بهېږي، راځه سیل یې وکه !
دستي باچا حکم وکی وزیر یې راوغوښت آفرین یې و وزیر ته ورکی کار شاتر حسن وکی.
باچا او وزیر سره را رهي سوله چي راغلـه د حوض پر غـاړه درختـي ولاړي دي، حوض د اوبو ډک دئ، باچا یو وار یوې درختي ته وویل چي وژاړه ! هغې وژړل. بیا یې و بلي ته وویل چي وخانده ! هغې وخندل.
باچا ګوته په غاښ ورته ونیوله، ډېر خوشحاله سو.
په وزیر مغزی وځرېدی چي دا کار یې هم وکی، باره یې چرت وواهه سر یې راپورته کی و باچا تـه یې وویـل چي داسي ښار جوړ سو چي په رکن(؟) کي نسته، منګر ارمان چي د پلاني باچا لور ستا مینه وای دلته په دې ښار کي وای او په دې بنګله کي ستا سره ناسته وای، څه ښه خوند به یې

کړی وای !

باچا ویل: هغه به مو د وسه ونه سي، د هغې خورا ګران شرطونه دي، چي هیڅوک یې نه سي پر ځای کولای.

وزیر ویل چي شاترحسن دي ژوندی وي، یو نسوار نه دي ورته.

باچا ویل: څنګه د لاسه به دي وسي؟

ده ویل: هو که خدای ﷻ کول. منګر یوه میاشت به راته ګوري.

باچا ویل: ښه دئ.

لنډه دا چي شاترحسن را رهي سو، هله هله برابر هغه باچا ته راغی، ورته ودرېدی چي زه ستالور غواړم، منګر ځان ته نه، د خپل بادار له پاره یې غواړم.

باچا ورته وویل چي زمالور په شرطو ده، ته ښه ځوان یې پر مرګ مي نه پېرزو کېږې.

شاترحسن ورته وویل چي شرطونه یې راوښیه پر ځای کوم یې، زه خپل باچا ته خدمت کوم. د خپل باچا په خدمت کي باید سړی ځان مړ کي!!!

باچا ورته وویل: ښه دئ دغه یې شرطونه دي :

اول : دغه د اوسپني خونه ده، د اوره ډکه ده شپه به پکښې تېروې.

دوهم : زما د جنګي غوايي سره به غويي جنګوې ماتوې به یې.

دا دوه شرطونه که دي پر ځای کړه بس زمالور دي وګټل !

ده ویل ښه دئ ! آ بس چي ماښام سو، راغی د اور خوني ته، د هغې دیبي ورېښتان یې ودودول یو ګړی باد تولړ دېبان ورته راغله ویل خدمت !

ده ویل : خدمت دغه دئ چي اول به دغه خونه سړوئ، اور به یې وژنئ، چي زه شپه پکښې تېره کم، او بل به یو دېب ځان د یوه زاړه غوايي په بڼه کوي او بل دېب به د یوه مسکین په بڼه، راځي دا غوايي به راولي په ګنج کي به یې څني رانیسم، نو بې د باچا د غوايي سره وجنګوم دغه غويي به ور مات کي.

دوی ویل: پر دواړو ستر ګو.

دېبان دستي ورته وجوړېدل او به یې د روده څخه په خولو کي راوړلې،

پر خونه یې توی کړې، خونه یې سره کړه اور یې مړ کی.

دئ په ننووت شپه یې تر سهاره پکښې تېره کړه هیچا څه ونه لیدله چي اور د کمي خوا مړ سو، او نه څوک ورته راتېر سو، چي سهار سو خلک راغله که ګوري دی ژوندئ پکښې ناست دئ، دستي باچا ته رپوټ وسو، چي دا یو شرط یې پر ځای کی. باچا ویل سمه خبره ده، کې دا بل شرط وګاټه نو یې زما لور هم وګټل.

باره په دا بله ورځ حسن راغی ګنج ته چي یو غویی رانیسي د باچا د غوایي سره یې وجنګوي چي ګنج ته راغی په ګنج کي ښه ښه غویي ولاړ دي، حسن پکښې وګرځېدی، یوه مسکین سړي ته زوړ غویی ولاړ دئ، څلور لاښه دئ، وچ پوست، ځړېدلي کړېدلي ښکر، اوښکي یې بهېږي، باره حسن و دغه مسکین ته ویل: په څو دئ؟

هغه ورته ویل چي په لس روپۍ.

باره یې لس روپۍ ورکړې، غویی یې را رهي کړ، خلک پر خاندي چي پر تا دي ودرېږي خو یو چاغ مست غویی به دي رانیولی وای، دا غویی وګوره جنګ وګوره !

ده ویل چي دغه مي خوښ دئ.

لنډه دا چي په دغه بل سهار یې باچا ته حال وکی چي سبا دي غویی راوباسه میدان ته، زه غویی درسره جنګوم.

چي سهار سو، د غویو د جنګ میدان جوړ سو، خلک دي د خدای ﷻ الم دئ، د باچا غویی یې میدان ته راووست، رمبکی یې دئ په ځنځیرو تړلی دئ، خلک خاندي، ده هم خپل زوړ غویی راووست، په میدان کي یې سره ایله کړه.

په اول وار یې د باچا غویی پسي واخیست مات یې کی.

یو وار ډولونه او نغارې وډنګېدلې چي بل شرط یې هم وګاټه.

شاتر حسن راغی باچا ته چي اوس خو نو پر خپل قول ولاړ یې؟

ده ویل: هو بېشکه !

ده ورته ویل چي ستا لور پر دغه خپل زاړه غوایي بیایم بل څوک مه راسره کوه!

باچا ویل: ښه دئ.

لنډه دا چي د باچالور يې پر غوايي راسپره کړه هغه بل مسکين ديب يې هم را رهي کی، چي د ښاره راووتله، را په هوا سوله، دوی د هغه ديب په څټ کي سپاره سوله، برابر خپل نوي ښار ته راغله. د باچا لور يې په ارګ کي کښته کړه.

دی دئ هغه دوه ديبان دي د سړو په ښه دي راغله باچا ته يې سلام وکی چي دا کار مو هم وکی، ماينه مو در ته راوستله، باچا او وزير سره رارهي سوله.

په وزير بيا مغزی وځړېدی کرار کرار پسي راځي چرت وهي چي په دې چم هم نه سو مړ، اوس بل ناشده کار په زړه کي سره جوړوي.

شاتر حسن فکر وکی چي دا خبيث دي ولاکه پسي پر پړ دي بيا بله بهانه در ته تراشي. باره يې ديبانو ته وويل چي دغه وزير به د ښار په دروازه کي په توره ووهئ چي ټوکر ټوکر سي لاښ يې يو راواخلئ سر يې بل راواخلئ.

دوی ويل: ښه دئ. څه سر دي ګرځوم باچا خوشحالي اخيستی دئ، وزير ته يې فکر نسته، باچا ورغی ارګ ته خپله ماينه يې په بنګله کي وليدله، وزير ته يې ويل چي دا دئ دا کار يې هم کړی دئ، د وزير ږغ نسته، چي داسي يې تر شا وکتل د وزير تن د يوه سړي څخه سر يې د بل سړي څخه دئ. شاتر حسن ورته وويل چي دغه دئ وزير !

باچا ويل چي دا څه نکل دئ اريان سو؟ شاتر حسن ورته ويل چي وزير مامړ کی چي زه يې په تا وژلم. باچا ويل: څنګه؟ حسن ورته ويل چي ته فکر وکه، دا کارونه دانسان د لاسه کيږي؟ ده ويل: يه !

ښه ! حسن ويل چي نه کېږي نو تا څنګه د ده په خوله عمل کاوه، او زه خو ستا په خدمت کي راست وم، نه مي نه درلوده، که مي کار کولای سوای که مي نه سوای کولای، ما به ويل چي کولای يې سم، ولي چي و خپل بادار ته بايد سړی ونه وايي چي دا کار نه سم کولای، منګر بادار دي هغه کار ور فرمايي او سره وسنجوي چي دغه نوکر يې کولای سي که يه؟ او د شيطان او دښمن په خوله بايد ونه کي، خپل دوست او دښمن وپېژني.

لنډه دا چې دا نکل يې سر تر پايه باچا ته وکی، چې داسې وزير ستا د پلانې حرم سره جوړ و، د وهمه يې وژلم، منګر خداى ﷻ زه نه وم وژلى، ګر ده کارونه خداى ﷻ اسانه کړه وسوله.

دغه دوه کسه دېبان دي او ټوله دېبان مي پخوانه وه مسخر کړي دغه دئ ښار دغه دئ حوض، اوبه او درختي، دغه دي ماينه، اوس نو ما ايله که زه زيات ستا خدمت نه سم کولاى.

باچا ورته ويل چې پر تا دي آفرين وي، هغه خپله ښځه يې راوغوښتله، د شاتر حسن دمخه يې مړه کړه، و شاتر حسن ته يې وويل چې ايله کوم دي نه، يعنى اجازه نه درکوم، منګر زما پاچهي او حکومت ټوله ستا دي، باره يې نور وزيران او منصبداران راوغوښتله حکومت يې حسن ته ور وسپاره !!!

زه يې تش لاس ايله کړم، ناحقه پر پښو ورته وچ سوم.

# انار ژړان او سېب خندان

یو باچا و، اولاد یې نه کېدی. هر څه تعویذونه چې یې وکړه هر څه خواری چې یې وکښلې اولاد یې نه پیدا کېدی.

د باچا دوې ماینې دي یوه پر ګرانه ده بله ارزانه !

یوه ورځ یو فقیر راغی خیر یې غوښت، مینځې خیر ورته راوړی دا ملنګ یې په خیال ښه سړی ورغی.

باره یې ورته وویل چې ملنګه ! باچا زوی نه لري که دي یو څه وکړه.

د ملنګ څخه درې دانې سېب وه، دا یې ور دم کړه چې بي بي ته یې ورکه خدای ﷻ به درې زامن ورکي.

مینځې سېب څني راواخیستله پر لاري یې په یوه سېب خوله ولګوله نیم یې وخوړ، دوه نیمي دانې سیب یې راوړه و دغي ارزانې ماینې ته یې ورکړه، چې دا ملنګ راکړه دا وخوره خدای ﷻ به زامن درکي.

دې ماینې یې دغه سېب وخوړه، کارونه د خدای دي ماښام د باچا وار د ارزانې ماینې سره دئ.

لنډه دا چې په دغه شپه حمل داره سوله چې نه میاشتې تیرې سولې د دې ماینې دوه زامن او یوه لور پیدا سوله، مینځې دستې الا کړه باچا په دربار کې دئ مینځه ورغله زېری یې پر وکی چې مبارک دي سه دوه زامن او یوه لور دي پیدا سوه. دلته یې ګرانې ماینې فکر وکی چې ولچې پسات وسو، باره به پر باچا دا ګرانه وي د اولاد مېرمن سوه ما به په باک نه راوړي، دستې یې یوه بوډۍ پیدا کړه چې د دې خبرې چاره کوه.

بوډۍ ویل : خوا مه بدوه، دستې یې الا کړه په بازار کې وګرځېدله یوه سپۍ یې پیدا کړه، چې تازه لنګه ده، درې کوتریان یې پیدا کړه، را یې وړه هغه لنګه ماینه بیده ده پر ته ده.

دې بوډۍ يې د بغله څخه الکان وکښله دغه د سپي کوترېان يې تر
تلتک ور لاندې کړه، د دې زامن او لور يې يووړه د يوه غره په لمن کې يې پر
دښت کتار پرې ايستله چې دلته به شرمښان او چغالان وخوري، بيرته په
يوه ټوپ راغله ګراني ماينې ته يې وويل چې داسې کار مې وکی.
دې ګراني ماينې يې دستي بله مينځه ور واستوله چې ولاړه سه باچا ته
ووايه چې ارازانه ماينه دې لنګه سوله درې د سپي کوترېان يې وزېږول.
باچا لا په دربار کې دئ چې مينځه راغله دا يې باچا ته وويل چې زما د
سر امان دې وي ارزاني ماينې دې درې د سپي کوترېان وزېږول.
باچا ته خورا درد ورغی، حکم يې وکی چې ورسئ کوترېان يې مړه
کی، دا د اسانو په تبيله کې واچوئ دروازه پسې وتړئ زياته بڼغ مه کوئ يوه
ګوله اربشينه تر چوله ورغورځوئ.
دا ښځه خوارکۍ په ځان ناخبره ده چې راويښه سوله د کوترېانو بڼغ
دئ اريانه سوله چې دا څه چل دئ؟
يو ګړی باد سړی راغی کوترېان يې مړه کړه دا خواره يې د اسانو په
تبيله کې واچوله، دروازه يې پسې قلف کړه "دا لنګه ماينه نو په هغه تبيله
کې پرېږده چې خپل غمونه ګالي په اوربشينه عمر تېروي هغه کوچنيان
پسي راواخله چې هغه څه سوله؟" هغه دوه ماشومان هلکان او يوه لور چې
هغې بوډۍ پر دښت د غره په لمن کې پرې ايستله و دغه ځای ته نژدې د يوه
مالدار کور دئ شپږ اووه سوه مېږې لري، ماښام چې مېږې کور ته را رهي
کړي دې مېږې وتورېدلې.
مالدار چې راغی ګوري چې شرمښ دئ که څه بلا؟ کې کتل چې تر
يوه ټوکره لاندې د کوچنيانو انګا انګا ده چې دسمال يې ځني پورته کی دوه
هلکان يوه نجلۍ تر لاندې دې دستي يې راواخيستله ډېر خوشحاله سو چې
زوی او لور نه لرم او نه تربور لرم يو سر وم دغه دئ خدای ﷻ راکړه، برابر
يې کور ته کوډلي ته راوړه، ماينې ته يې ورکړه چې دغه دې اوس يې نو
لويوه، وړيا زامن او لور مې در پيدا کړه، مېږې او بزې ډېرې لنګې دي.
ښځې هم هلکان واخيستله ښه يې ساتله د بزو شيدې يې ورکولې
"هله هله هله د نکل کار دئ معطلي نسته پکښې" خدای ﷻ لويول لوی

سوله نجلۍ هم پېغله سوه.

کارونه د خدای ﷻ دي دا مالدار او ماینه یې مړه سوله.

دا دوه وروڼه را ولاړ سوله، دغه مېږي او بزې اوښان یې خرڅ کړه، هلته یې یوه ښه کلا واچوله، خوریې په کلا کي ده خپل کار او پخلی ورکوي دوی دواړه داسي ښایسته هلکان دي چي ستر ګي نه پر روڼېږي، تمامه ورځ خپل ښکار کوي یا د کلا و مخ ته مردکي کوي.

یوه ورځ هغه باچا چي د دوی پلار دئ په ښکار راوتلی دئ دوه کسه نوکران ورسره دي ګرده ورځ یې ښکار وکی "د ښکار شوق دئ" باندي ماښام سو. دغه یو نوکر ته یې وویل چي ته ورسه دغي کلا ته اور به راوړې دلته به دغه کوتري او سیسی کباب کو و بې خورو بیا که تلو ځو به.

نوکر رارهي سو چي راغی که ګوري د کلا و مخ ته دوه داسي ځلمیان ناست دي چي نوکر داسې منګ ورته ولاړ ! نوکر وویل چي دا څنګه لکه شاهزاده ګان هلکان دي، خو یو ګړی ډوب ورته تللی و ... وروسته یې ورته وویل چي اور غواړم؟

دوی ورته وویل چي په کلا کي ږغ ور وکه درته راوبې باسي.

ده چي په کلا کي ږغ ور وکی چي مسافر یم څه اور راکه؟

نجلۍ اور ورته راویوست.

نوکر چي ورته وکتل د روه یې زړه پر بایلو بېسده سو، یو ګړی بېسده پروت و، چي په سد کي راغی و نجلۍ ته یې وویل چي زه به دلې کوتري راوړم خدای ﷻ خبر دا اور تر هغه ځایه ورسېږي که نه دلې بې پخې کم.

نجلۍ ویل : ښه دئ ورسه رایې وړه !

نوکر ولاړی باچا ته یې وویل چي اور یې نه راکاوه ویل نه رسېږي، ویل دلې کوتري راوړه کباب یې که !

باچا ویل : ښه دئ دغه دي دا درې کوتري یوسه !

نوکر کوتري راوړې کلا ته پر اور یې کښېښوولې د نجلي مخ ته ګوري داسي ډوب ورته تللی دئ، کوتري یې د یاده ووتلې هغه پر اور توري تلبی سولې.

نجلۍ ورته وویل چي کوتري دي وسوځلي سوې.

ده چي کوترو ته وکتل تور سکاره سوي وې، باره نوکر وام واخيستی چي باچا به مي مړ کي نجلۍ ته يې ويل چي د دې پای يې څه؟
نجلۍ ويل : خوا مه بدوه دغه درې څلور ډوډۍ واخله دغه څه غوښي دي هلته به يې سره وخورئ.
نوکر هم ډوډۍ او غوښي څني راواخيستلې را يې وړلې باچا لره.
باچا پوښتنه څني وکړه چي ولي دي دونه عمر وکی؟
ده ويل : صاحبه ! په کلا کي يو دوه کسه داسي ښايسته ځوانان او يوه نجلۍ ده چي سترګي نه پر رونېږي، ما د دوی ديد کاوه کوتري پر اور وسوځلي سولې، بيا هغې نجلۍ دغه ډوډۍ او غوښي راکړې دغه دي رامي وړلې.
چي سهار سو باچا را رهي سو چي راغی د کلا دمخه دوه داسي ځوانان ناست دي چي سترګي نه پر رونېږي، ده چي ورته وکتل څه عشق و څه د اولاد محبت، دغسي منګ ورته ولاړ، ولاړ و، ولاړ و هله هله څو په دغه ولاړه کي باندي ماښام سو، هيڅ يې تر خوله نه سوای ايستلای، نې څه ويلای سوای، ماښام کور ته راغی سبا بيا ورغی ورځ يې ورته تېره کړه، دوي خپلي مرد کي کوي.
ماښام باچا کور ته راغی دې ګراني ماينې ته يې دا نکل وکی چي داسي په يوه کلا کي دوه هلکان دي زه پر مين يم او د زامنو ميل مي پر راځي نه پوهېږم چي څه سر دئ او څه چل وکم؟
دې ويل : زامن به دي تر خوله تېر وي ! او هلکان څه کوې د هلکانو مينه نه ده ښه، باچا سړی يې رنګ به دي بد سي باره مه ورځه ورک يې که!
سهار وختي يې ماينې هغه بوډۍ پيدا کړه، ورته وې ويل چي چابکه ځه ! نکل داسي دئ لکه چي هغه هلکان لوی سوي دي که خبره رسوا سوله باچا به زما او ستا تر خۍ وکاږي.
بوډۍ د وهمه په يوه ټوپ ورغله هغه هلکان چي يې وليدله څه سد يي په ورسېدی، دستي په کلا ور ننوتله کې کتل چي هغه نجلۍ ناسته ده، وپوهېدله چي هغه دي، دستي يې خپل مکر را سر بېره کی، د نجلۍ دمخه يې بُغاري کړې چي الله زما د ورور کور داسي خراب سوی دئ، زه خو ستا

عمه یم، په پلاني وطن کي واده وم، تر اوسه يې نه په ژوند خبره وم نه په مرګ، او شکر دئ چي دغه تاسي درې چچخي يې پاته ياست، نور مي نو زړه درد نه کوي منګر دغه مي ژړوي چي ته په کلا کي يوازي يې هلکان در څخه ولاړ سي ساعت په يوه او په بله تېروي، ته به دغ ناسته يې، ارمان چي يو دوه ژوندي زمريان واى چي ستا سات په تېر واى يو وار به پر سپر پدلاى، زما ورپنداري ته دوه زمريان ولاړ وه داسي سات يې په تېر و چي توبه ! او ستا ورونه خو ښکاريان دي دلاسه يې کېږي، چي دوه ژوندي زمريان درته راولي.

نجلۍ ويل : ولچي ښه وايې عمه جاني ! وده چي لالا دوى راسي ورته وايم به. بوډۍ ويل : زه نو ځم په هغه بل کلي کي مي د خور خواندي کور دئ يادېږي مي نه مي ده ليدلې بيا به کله کله درباندي راګر ځم، بوډۍ ولاړه.

ماښام چي هلکان کور ته راغله خور يې ورته وايي چي تاسي په ښکار پسي ولاړ سى، زه يوازي دغ ناسته يم، ماته يو دوه زمريان راولئ چي سات په تېروم.

دغه يو ورور يې ورته وايي : ښه دئ سبا به زه پسي ولاړ سم، چي سهار سو يو ورور يې پسي رهي سو، هله هله دغه غر يې پسي راواخيست کې کتل په يوه ګاره کي هغه ملنګ ناست دئ چي د ده په دعا دوى زوکړي وه، دی ورغی سلام يې ور واچاوه.

ملنګ وعليک ووايه، بيا يې ويل : خير ځوانه څنګه په دې غره کي يوازي ګر ځې؟

"ملنګ يې پېژني دى يې نه پېژني".

ده ويل چي که مي دوه زمريان ژوندي ونيول عمه مي د خور له پاره غوښتي دي.

ملنګ ويل : خطاباسي دي زمريان چا ژوندي نيولي وي؟ بېعقلي مه کوه څه کور ته !

ده ويل چي تر هغو کور ته نه ځم څو ژوندي زمريان پيدا نه کم، کور ته يې بونه زم.

ملنګ ویل : ښه دئ چي نه پاتېږې نو دغه زما دسمال واخله دغه مخامخ لار واخله ځه ځه یو ځنګل به په مخه درسي په ځنګله ور ننوزه د ځنګله په منځ کي دوه زمریان په ځنځیرو تړلي دي دوی به زورونه در ته راوهي، منګر ته مه ځني بېرېږه زړه ور پر ورسه، دغه دسمال ورښکاره که دوی به آرام سي را رهي يې که کور ته يې بوزه!

آبس دسمال يې د ملنګ څخه واخيست و ځنګله ته را رهي سو، چي د ځنګله مينځ ته راغی که ګوري یوه دوه مست زمریان په ځنځیرو تړلي دي، غربري يې دئ زورونه ور ته راوهي چي توبه ! دی هم زړه ور پر ورغی چي ور نژدې سو دسمال يې ور ته ونیوي، زمریانو سر پر ځپړو ور ته کښېښود، لکۍ ور ته ښوروي.

ده هم دستي زمریان را خلاص کړه را رهي يې کړه هله هله دا دئ کور ته يې راوستله په کلا کي يې زمریان ايله کړه خور يې پور ته کښته پر سپر بېږي په خوشحاله ده.

"بوډۍ خو پسي څارو ده" راغله د باچا ماينې ته يې وويل چي په دې چم نه سوله مړه زمریان يې راوستلي دي. دې ویل چي چاره يې کوه باچا هره ورځ ورځي چي خبر نه سي، ما وتا به ټوکر ټوکر کي.

بوډۍ بیا د وهمه را رهي سوله بیا راغله کلا ته زمریانو پر غړومب وهل، نجلۍ ور الا کړه ځني خلاصه يې کړه و زمریانو ته يې ویل چي دا زما عمه ده ورسره اموخته يې کړله.

بوډۍ ویل : وینې اوس دي څنګه سات په تېر دئ.

دې ویل : هو ! عمه جاني.

بوډۍ ویل : ارمان چي هغه یوه درخته لا وای چي هم سېب کوي هم انار کوي، که سېب ته ووايې چي وخانده ! خاندي، انار ته چي وا وژاړه، نو دستي ژاړي چي دا هم وای نو به دي بیخي سات په تېر وای.

نجلۍ ویل : دا نو چیري پیدا کیږي؟

بوډۍ ویل : زما نیکه درلودې، او اوس چي نر وي دستي يې پیدا کولای سي.

دې ویل : وده چي لالا راسي دغه به پیدا کوم.

بوډۍ ويل : چي په ټينګه به ورته وايې، "ورته وا زه درځخه ځم، يا به خامخا د انار ژړان او سېب خندان درخته راپيدا کوئ".

دې ويل : ښه دئ ! آبس بوډۍ ويل : ته مي وليدلې زه نو ځم بيا به بله ورځ درته راسم، بوډۍ ولاړه.

د نجلۍ ورونه چي کور ته راغله، خور يې ورته ويل چي عمه ويل داسي دانار ژړان او سېب خندان ونه سته، چي واى سات به مي ښه په تېر و، دا به خامخا ماته پيدا کوئ، راوړئ بې چي زما سات په تېر وي، زه دغ ناسته يم که يې نه راوړئ نو زه درځخه ځم، پخپله يې پيدا کوم. دا بل ورور يې وايي : زمريان ده راوستله دانو زه پيدا کوم راوړم يې.

دغه بل ورور ورته وايي چي په دغه غره کي ملنګ ناست دئ، ته اول هغه ته ورسه ګوندي هغه يې در وښيي، ماته زمريان هم هغه راوښووله.

سهار دا هلک را رهي سو، برابر هغه ملنګ ته راغی، د ملنګ سلام يې وکی پسله سلامه يې و ملنګ ته وويل چي عمه مي د خور له پاره د انار ژړان اوسېب خندان درخته غواړي.

ملنګ ويل : بېعقله هغه دي عمه نه ده، بوډۍ شيطانه ده، خطاباسي دي، په يوه چم دي وژني، ناشده کارونه مه کوه.

ده ويل : يه زه پسي ځم لالا بيا پېغور راکوي چي ما زمريان راوستله تا دغه درختنه نه راووړه، اوس که دي څه د لاسه کېږي خو ښه که نه وي هيڅ.

ملنګ ويل : ښه دئ نو، دغه زما خط واخله دغه لار واخله ځه ځه په لار کي به يو بدشکله دېبه په مخه درسي مه ځني بېرېږه، دغه زما خط ورته ونيسه، هغه به دي کار روايي وکي.

هلک هم خط ځني راواخيست، را رهي سو، هله هله دا ده دېبه په مخه ورغله، و ديبي ته يې خط ونيو. ديبي کاغذ مچ کی، هلک يې په څټ کي واخيست ويل سترګي پټي که !

ده چي سترګي پټي کړې يوې بلي علاقې ته يې راوړی و يوه بل دېب ته يې تسليم کی سره له خطه.

هغه دېب په څټ کي پورته کی و بلي علاقې ته يې راووست، و يوه بل

دېب ته يې ورکی، څه سر دئ ګرځوم هه هه پر دغه ډول څلوېښتو دېبانو يوه وبل ته ورساوه، څلوېښتم دېب د يوه غره پر سر ناست دئ.

دې دېب ورته ويل چې زياته زموږ په وسه نه کېږي، چې بو دي زو، اوس دي خپله مرانه او زړه دئ که دي په خپله مړانه او توکل څه وکړه ښه که نه وي هيڅ. تر دې غره چې ورشوه سولې د باغ حرم علاقه ده، يوه شاپېرۍ يې باچا ده چې د ګلخنداني خور ده، شپږ مياشتي بيده وي، شپږ مياشتي ويښه وي، اوس بيده ده، د انار ژړان او سېب خندان درخته د دې په سرای کې ولاړه ده، که دېبه ويښه سوې نه وه نو د درختي يو ښاخ بې مات کې را وا بې خلې نو راځغله تر ما پوري ځان راورسوه، او که ويښه سوې وه نو يې ټوکر کړې کړې زيات ژوند نه لري. بله دا چې تر غره ور شوه سولې تر شا مه ګوره د دې شاپېرۍ د کور پر خوا مخامخ ورځه، ته به هيڅ نه وينې منګر غيبي نارې به کېږي چې "غل دئ درغی راګرځوئ يې" غالمغال به وي هوښ کوه چې ونه بېرېږې، که وبېرېدلې او مخ دي راوګرځاوه سر به دي غوټ پرې سي، مطلب دا دئ ته به باک نه په کوې، په خپل مقصد پسي به ځې.

ده ويل : ښه دئ !

آ بس بسم الله يې کړه تر غره راکښته سو دستي نارې سولې چې "غل دئ درغی مه پر راګورئ نيسي يې، دا دئ درغی هغه دئ ولاړ".

ده هيڅ باک په ونه کی تر غونډۍ مخ د شاپېرۍ د کور پر خوا چابک چابک ځي خو برابر راغی د شاپېرۍ په کلا ورننوت "بخت يې بيدار و" اول يې د دې دمخه نقاب پورته کی خورا يې خوښه سوله، د دې د لاسه يې ګوتمۍ وکښله په خپله ګوته يې کړه، خپله ګوتمۍ يې د دې په ګوته کړه، خپل د جېب دسمال يې ور پرېښود، د دې دسمال يې ځني واخيست، يوه مچه يې هم ځني واخيستله، د درختي څخه يې ښاخ پرې کی را وايې خيست هله هله په وچ تراټ برابر غره ته راغی، را وخوت، دېب ته يې ځان راورساوه.

دېب هم دستي را په هوا کی تر بله دېبه پوري يې راوړی هه هه څو ټولو دېبانو يو د بله سره راورساوه، څو تر دېبي پوري يې راوړی دېبي په څټ

کي واخیست تر ملنګ پوري يې راوړی.
ملنګ ورته وویل چي پر تا دي آفرین وي، دا پلا مړ نه سولې باره دغسي ناشده کار مه کوه، ملنګ تر کلا پوري راووست.
هلک دا دئ راغی په کلا ور ننووت خور ته يې ویل چي دا ده درخته مي راوړه، په کلا کي يې د حوض پر غاړه شنه کړه، د درختي په یوه خوا سېب په بله خوا انار ځړېږي و سېب ته يې ویل وخانده ! شین د خندا ولاړی، و انار ته يې وویل وژاړه ! شین د ژړا ولاړی، د خور يې خورا سات په تېر دئ.
بوډی پسي ځار و ده، چي خبره سوه دستي مغزی په وځړېدی راغله د باچا ماینې ته چي دا درخته خو يې هم راوړېده، په دې چل نه سوه مړه، منګر یو چل مي لا زده دئ که په هغه چل هم نه وه مړه، نو زموږ مرګ دئ، دوی په هیڅ نه مري.
دې ویل : وس کوه چي باچا هره ورځ ورځي چي سره ونه پېژني.
بوډی راغله کلا ته، درخته د حوض پر غاړه شنه ده، و نجلۍ ته وایي : مبارک دي سه ! اوس خو دي نو ښه سات تېر دئ.
نجلۍ وایي : هو عمه ښه مي سات په تېر دئ.
بوډی وایي : دا خو وسوه، منګر ورونه دي بې ماینې دي او ته هم یوه ښځه يې په سرای کي ناسته يې، ارمان چي ګلخندانه يې غوښتې وای، چي وخاندي تر خوله يې ګلان غورځي، نو به بیخي ښه و.
نجلۍ ویل : هو عمه جاني ولچي ښه دي وویل، وده چي لالا دوی راسي ورته وایم به، چي خامخا به ګلخندانه په تاسي دوو کي یو کوئ.
بوډي ویل : ښه دئ د خدای ﷻ په امان ولاړه !
ورونه يې چي کور ته راغله، خور يې ورته ویل چي ما واروېدله چي یوه ګلخندانه شاپېری ده، چي وخاندي ګلان تر خوله تویوي، دا چي په تاسي کي د یوه ماینه وای ځنګه به ښه و.
دغه یو ورور يې ورته وایي : زه پسي ځم پیدا کوم يې تاسي به دالته ناست یاست یا به مړ سم یا بې راولم.
لنډه دا چي ورور يې بیا را رهي سو بیا ملنګ ته راغی سلام يې وکی، و ملنګ ته يې وویل چي زه ګلخندانه غواړم پسي ځم پیدا کوم يې.

ملنګ ویل چي مه کوه، د ښځو په خوله مه کوه، یو وار مي د مرګه خلاص کړې بیا مي د مرګه خلاص کړې دا پلا دي نه سم خلاصولای، ګلخندانه د هیچا لاس ته نه سي ورتلای. هلک ویل : یه زه چي دا ګلخندانه لاس ته رانه ولم زه نو د څه شي نر یم!

ملنګ ویل : ښه دئ چي نه یې پرېږدې نو زه به یې یو درک په لاس درکم، زیاته مي هیڅ کومک د لاسه نه کېږي، دغه د غره لمن ور واخله یو دره ده، چي په دغه دره کي ور ووتلې یو دښت دئ، دغه دښت ته ګلخندانه یوه هفته راځي، دالته سات تېروي، هیڅوک یې نسوای لیدلای، منګر دا یې ویلي دي چي "که هر چا ماته بږغ را وکی چي ګلخنداني ! او ما ور ها کړه او زه د ده په بږغ ورغلم زه د هغه یم، او که نه ورغلم هغه سړی به هلته ښخ سي، لکه کاڼی داسي به وي". دا ځلمي چي را رهي سو هله هله هغه دښت ته راغی که ګوري په سوو کسان ډبري سوي ښخ ولاړ دي، دی هم دالته ودرېدی چي د شاپیریانو هی هی سو، ده بږغ پر وکی ګلخنداني ! پر هغه ځای شخ ودرېدی ډبره سو.

دوهمه درېیمه ورځ یې دا بل ورور پسي را رهي سو چي لالا ډېر عمر تېر کی چي درک یې معلوم کم، باره راغی ملنګ ته ورته ویې ویل چي زما ورور څه سو؟

ملنګ ویل : هغه په ګلخنداني پسي ولاړ، هلته پر هغه دښت ډبره سوی دئ، ما ډېر ورته وویل چي مه ځه ! دی نه پاتېدی، ملنګ دا قصه ورته وکړه.

ده ویل چي زما ورور مړ سو، نو زما ژوند هم غیم، زه هم پسي ځم.

ملنګ چي هر څه زاری ورته وکړې، چي مرګ دئ مه ځه د ملنګ په خوله یې ونه کړه، هغه د ورور پر لار را رهي سو راغی هغه دښت ته په دغه ډبره سوو خلکو کي وګرځېدی خپل ورور یې پیدا کی، یو ګړی یې پر وژړله، وروسته د خپل ورور پر اړخ ودرېدی، چي د شاپیریانو بږغ او هایو هوی سو ده ور بږغ کړه چي ګلخنداني، دی هم پسي ډبره سو.

څو ورځي باد یې خور پسي راغله ملنګ ته یې وویل چي زما وروڼه څه سوه؟ ملنګ ویل چي په وروڼو تا پسات وکی، مړه دي کړه، او ته بوڅې

خبيثي خطا ايستلې، نو ستا عمه چيري وه؟ ستا وروڼه ما دوه واره د مرګه خلاص کړه دا پلا مي زور نه په رسېدی هغه دئ پر هغه دښت ګلخنداني دواړه ډېره کړي دي څه ولاړه سه کور ته !

نجلۍ ويل : زما ژوند دي نو هم خاوري سي، زه نو د چا سره کښېنم تر دې دا ښه دئ چي زه هم د خپلو وروڼو تر څنګ ډېره سم، او ودرېږم، زه هم پسې ځم د خدای ﷻ په امان ! آبس نجلۍ را رهي سوله هله هله دښت ته راغله خپل وروڼه يې پيدا کړه، دواړه شنه کاڼي دي ولاړ دي، دا يې هم پر اړخ ودرېدله، چي د شاپېريانو برغ او غالمغال سو.

نجلۍ ور برغ کړه چي ګلخنداني !

ګلخنداني چي وکتله که ګوري ښايسته نجلۍ ولاړه ده، فکر يې وکی چي دا خو ښځه ده، ما نه سي ماينه کولای، په راسه ورها که، ورسه چي دا څه نکل دئ، او دا نجلۍ څنګه راغلې ده؟

نجلۍ بيا وربرغ کړه چي ګلخنداني !

د دښت څخه ور برغ سو چي ها درغلم !

درېيم وار بيا نجلۍ ور برغ کړه چي ګلخنداني ! ژر راځه !

ګلخندانه دستي د انسان په ډول ور ته ودرېدله ويل : خدمت !

نجلۍ ور ته ويل چي تا خو ويلي وه چي "زه چي د هر چا په برغ هغه ته راغلم زه د هغه يم" دا خو دي نه وه ويلي چي نر يا ښځه فرق خو دي نه و کړی، ويل پر خپل قول ولاړه يې که يه ؟

ګلخنداني ور ته ويل چي بېشکه پر خپل قول ولاړه يم، بېشکه زه ستا يم، اوس امر کوه !

نجلۍ ور ته ويل چي اول دغه زما دوه وروڼه را ژوندي که !

ګلخنداني هم د روه دم پر ووايه ژوندي يې کړه "په حقيقت کي خو مړه نه وه په سحر سره ډبري سوي وه" ګلخنداني چي ودې هلکانو ته وکتل دستي پر مينه سوله.

وروسته يې ګلخندانه را رهي کړه پر هغه ملنګ راغله.

ملنګ ته يې ويل چي دغه ده رامو وستله.

ملنګ ور ته ويل چي دا شل کاله کېږي چي زه پر مين وم او دا شل کاله

دمخه ما یو وار لیدلې وه بیا مي نه وه لیدلې، او ما د خدایه غوښته چي زما په ژوند یې یو وار بیا په ما وويني زیاته ژوند نه غواړم، اوس دا دئ چي پس له شلو کالو چي ما په دې غار کي د دې د دید له پاره ورته تېر کړه، ستاسي په سبب دا ده خدای ﷻ په ما ولیدله، زیاته ارمان د خدای ﷻ څخه نه لرم.

هلکانو ورته وویل چي دغه ده موږ لا اوس نکاح نه ده پر تړلې ستا یې په حلاله نکاح ، موږ نه یو پر عاشقان، ته پر مین یې او ته زموږ پیر یې زموږ سره دي ډېري نیکی کړي دي.

ملنګ ویل : یه خدای ﷻ دې ستا روزي کي، ما یې د خدای ﷻ څخه په ژوند کي دغه یو دید غوښتی و، هغه مي دا دئ ستا په سبب وکی، منګر دغه ستاسي حال لا درته وایم، زیاته نو زما عمر پوره دئ مرم.

ورته ویل یې چي تاسي د دې ښار د باچا زامن یاست، پلار مو هم دغه دئ چي پر تاسي مین دئ کله کله درته راسي، او مور مو باچا د آسو په تبیله کي اچولې ده تاسي دغه بوډۍ چي وای عمه مو یم دلته په څلوېښتي کي د مور د غېږي راوړاست وې غور ځولاست، او ستاسي په عوض کي یې د سپي کوتریان ستا د مور په ځای کي ور واچوله ستاسي میره چي پر باچا ډېره ګرانه ده ستاسي دښمنه ده چي اوس هغه او دغه بوډۍ په تاسي پسې څارو ده او تاسي یې وژلاست، او ناشده کارونه یې په تاسي کوله، منګر ستاسي اجل خدای ﷻ نه و پوره کړی تولـه خدای ﷻ اسانه کړه، او ستاسي بخت به لا خدای ﷻ ښه راسته کي، د شاپېریانو باچهي به خدای درکي، او تاسي به تر هغو خپل پلار په ځان نه خبروئ څو شاپېرۍ د ګلخنداني ملګري لاس ته در نه سي او باچهي د پېریانو ستاسي نه سي.

دا یې ورته وویل، ویل "حق پل لرئ" ملنګ چپه سو مړ سو !

ملنګ ته یې هلته غسل ورکی، ښخ یې کی نو کور او کلا ته سره راغله. "دوی نو دالته پرېږده"

هلته د ګلخنداني د خور چي د پېریانو باچا ده خوب یې پوره سو، چي راکښېنستله که ګوري د بل چا دسمال یې پر مخ هوار دئ، د انسان بوی یې ځي، د دې دسمال نسته، چي لاس ته یې وکتل د بل ګوتمۍ یې په ګوته ده د دې ګوتمۍ نسته، او پر باړخو یې د انسان د خولې بوی دئ، حیرانه ولاړه،

چي دباندي راووتله د انار ژړان او سپب خندان د درختي يو ښاخ نسته، باره دغسي يې سترګي لکه د انارو پيالې راوکښلې د درده سره چوي. اول يې هغه دېبان چي پيره داران وه راوې غوښتل مړه يې کړه، حکم يې پر پېريانو وکی چي ولاړ سئ پر مځکه تيت سئ هر ځای چي مو دا درخته پيدا کړه، په درخته او په چا غرض مه کوئ فقط حال راوړئ، دا کار بې زوره نه کېږي لکه چي خورا زوره ور سړی راغلی دئ. دا کارونه يې کړي دي، زه يې ورسره معلومومه دا څنګه زوره ور دئ.

څه سر دي ګرځوم پېريان سره په هوا سوله چي وګرځېدله وګرځېدله، هه هه دا ده د دې هلکانو په کلا کي يې درخته وليدله، دوه زمريان هم ورته تړلي دي، پېريان ځني وبېرېدلهٕ، د وهمه يې را الا کړه برابر شاپېری ته راغله.

شاپېری ته يې وويل چي درخته په يوه کلا کي ولاړه وه؛ دوه نر زمريان پوري تړلي وه هغه هم په خيال دېبان راغله، او کلا د انسانانو وه !

شاپېری هم امر وکئ چي جنګ ته ځان تيار کئ، نفر او خېمه در واخلئ ماښام کوچ دئ.

آبس ماښام ګرده پېريان او شاپېری راپه هوا سول دا دي راغله پر کلا يې شاوخوا خېمې ونجتلې کُل دښت يې په خېمو ونيو چي لار و ګودر نسته.

سهار چي هلکان راکښېنسته که ګوري دښت ټوله شنو خېمو نيولی دئ، يو بامبو پروت دئ، هلکان بېرته په کلا ننوتله.

شاپېری يو پېری د سړي په بڼه ورته راولېږی چي ته ورسه ورته ووايه چي غل په لاس راکئ يا جنګ ته راووزئ چي سره معلومه يې کو، که نه وي آل و مال به مو ګرده دود کم.

پېری راغی د کلا دروازه يې ور وټکوله، هغه هلک چي درخته يې ځني راوړې وه ورته راووت ويل خير !

دې سړي ورته وويل چي زموږ د باچا د انار ژړان او سپب خندان درخته ورکه ده، اوس باچا سره له لښکره راغلی دئ وايې : يا غل په لاس راکئ يا جنګ دئ ! ده ورته وويل چي زه نه لښکر لرم نه صلاح کوم، درځه زه يې جواب وايم، دستي کور ته ننووت هغه د شاپېری دسمال او ګوتمی

يې راواخيستله، ورور او ګلخنداني ته يې دا کيفيت ووايه ! ګلخنداني ورته ويل چي زه به درسره ولاړه سم، هغه زما خور ده، يو څه عذر او زاري به ورته وکم !

ده ويل : يه ! زه يوازي ورځم او رشتيا ورته وايم توکل دئ.

آبس د دې قاصد سره را رهي سو، برابر راغی د شاپيرۍ پر زنګانه کښېنوست.

شاپيرۍ ورته ويل چي غل ته يې درخته تا وړېده؟

ده ورته ويل : هو ! غل زه يم درخته ما وړېده.

دې ورته وويل چي نښاني يې ووايه !

ده ورته ويل چي دغه ستا دسمال او ګوتمۍ نښاني ده، او دغه ستا پر مخ زما د غاښو ليکي دي.

شاپيرۍ ويل چي ته څنګه راغلې؟ زما ځای ته خو نه انسان نه پېريان راتلای سوای، نو ته په کم زور په څه چم راغلې؟

ده ورته ويل : نه مي چم و نه مي زور و، نه مي لښکر و نه مي سپاه وه، خاص په خپل غيرت او مړانه درغلم.

شاپيرۍ ويل : بېشکه ټيک وايې، آفرين ! زه په حلاله نکاح ستا يم، ته زما مېړه يې، او تې زما پر ځای باچا، دغه دي لښکر دئ.

لنډه دا چي نور پېريان يې رخصت کړه شاپيرۍ يې د انسان په بڼه را رهي کړه کلا ته يې راوستله.

شاپيرۍ که ګوري چي په کلا کي ګلخندانه خور يې ناسته ده.

شاپيرۍ ويل : ته څه کوې دلته څنګه راغلې يې؟

دې ورته ويل چي زه يې ګټلې يم، خپل نکل يې ورته وکی. دې هم خپل نکل ټوله ورته وکی، چي دې هلک زما د سرايه څخه د انار ژړان او سېب خندان ونه راوړېده، او ډېر زړه ور او دلاور هلک دئ، نو ماهم دی مېړه کی.

څو ورځي باد دې هلکانو وويل چي زموږ مور د باچا په پلانۍ ګوخانه کي ده، دستي به يو پېرۍ استوئ راولئ بې.

شاپيرۍ هم دستي يو پېرۍ واستاوه ورته وې ويل چي يو دم به ورځي

چي څوک يې درڅخه ونه ويني، دا ښځه به راوړې.

پيرى ورغى په يوه رپ کې يې د دوى مور راوړه.

نجلۍ او هلکانو يې لاسونه مچ کړه، ورته وې ويل چې مور ستا هغه اولاد يو، چې بوډۍ دلته د غره په لمن کې وغورځولو، منګر خداى ﷻ مهربان دئ د صابر صبر نه ضايع کوي، خداى ﷻ ساتندويه دئ مور يې د مرګه وساتلو، لوى يې کړو، دا مو ماينې دي، دا مو کلا ده، او ستا کسات به د بوډۍ او ستا د بنې څخه ستا په مخ کې وکاږو، دستي يې حمام په وکى د پېر ذاتو کالي يې په واغوستله.

دې هم د خداى ﷻ شکر وکيښ.

بله ورځ ګلخندانې و هلکانو ته وويل چې پلار خو مو ملامت نه دئ، ناخبره و، ګناه ګرده د بوډۍ او ستا د ميرې ده سبا که مو پلار راغى تاسي به يې سلام وکى مه يې خبروئ چې مور ستا زامن يو، يا ته مو پلار يې، بلکى ورته وواياست چې سبا شپه ته او ستا ټوله عمله زمور مېلمانه ياست خامخا به راځئ ! زمور او ستاسي باره سره خپلوي ده شناخت به سره کوو.

هلکانو ويل : ښه دئ !

سبا چې يې پلار د کلا دروازې ته راغى دواړه هلکان ورته راووته سلام يې وکى، پس له تعظيمه يې و باچا ته وويل چې سبا ته او ستا ټوله عمله او سپاه زمور مېلمانه ياست باره به خپلوي اوشناخت سره کوو.

"باچا خو پر مين و داسي خوشحال سو لکه د جنت زيرى چې پر وسو." باچا ورته ويل چې ښه دئ، ځني را رخصت سو، چې کور ته راغى دستي يې جار وواهه چې سبا مازيګر ته دي ټوله عمله او سپاه او منصبداران راحاضر سي چې يو ځاى مېلمانه يو. په دا سبا مازيګر ټوله عمله، قاضيان، منصبداران او سپاه راټول سوله.

باره باچا دمخه دئ نور په پسې دي هله هله مازيګر غټې لا کلا ته را نژدې سوله، که ګوري نه دود سته نه کادود سته، نه نور ترتيبات سته، نه دېګ سته نه کاسه، اريان ولاړ چې دا يې رشخند راوواهه، که څه؟ خو هيڅ نسته، دا دونه خلک خو په کلا کې نه ځايېږي او دباندي هيڅ نسته.

خو چې ښه کلا ته ور نژدې سوله د کلا څخه يوه ډله سړي راووتله، د

هر يوه څخه يې آس ونيو ستړې مسې يې ورته وكړه.

وروسته بله ډله دكلا څخه راووتله، فرشونه يې په يوه رپ كې هوار كړه، وهر يوه ته يې في نفر يوه يوه وريښمينه غاليچه ور هواره كړه بالښتونه يې ورته كښېښوولـه، څه سر دي ګرځوم چې يو بامبو يو ږوږ دئ چې دوى ټولـه اريـان تللـي دي چې ماښام سو، سرې و څـراغ ورتـه لګېـدى، د ډوډۍ وخت سو د هر سړى لـه پاره جلا جلا ګډوه او دشوى د سرو زرو راوړه سوه لاسونه ور پرېولـه سوه، بيا سړي سر سترخان ورتـه هـوار سو سړي سر د وريجو غوښو او سرو كړو مرغانو او سالنو د سرو زرو غوري ورتـه كښېښوول سو.

چې ډوډۍ وخوړه سوه بيا يوه يوه ګډوه او دشوى د سپينو زرو ورتـه راوړه سوه، لاسونه ور پرېوله سوه، چې خلاص سوه ږغ وسو چې دغه ګډوه او دشوى فرش او غوري چې هر سړي تـه ايښودل سوي دي د هغـه دي ورسره وادې خلي، نور ټوله رخصت دي په مخه يې ښه ! يو باچا، قاضي او وزيـران دي پاته سي، باره ټوله عمله او سپاه رخصت سوله ولاړه.

باچا قاضي او وزيـران يـې كـلا تـه ننـه ايستله د سرو زرو پر تختـو يـې كښېنول د انار ژړان او سېب خندان او د زمريانو سيل يې په وكى.

وروسته ګلخندانـه او خـور يـې راغلې باچا تـه يـې سلام واچـاوه، دوى داسي ښايستې دي چې ستر ګي نه پر رونېږي، باره يې باچا تـه وويـل چې ښه ! تا اروېدلي دي چې انسان كوتريان زېږولي وي؟

په باچا مغزى وګرېدى.

وروسته يې د باچا ارزانه ماينه چې په ګوخانه كي يې اچولې وه ورتـه راوستله، ده چې داسي ورته وكتل اريان سو، چې دا خو زما ماينه ده، دغسي ډوب ولاړ. وروستـه ګلخنـداني دغـه تېـر نكـل د بـوډۍ او د ګرانـي مـاينې تعداوي يې ورته بيان كړې، ټوله نكل يې سر تر پايه ورته وكى، ويـل : دغـه دي هغـه دوه زامـن دي، او هغـه دي لـور ده، زه او دغـه ښځه دي مرندي يـو، زامن دي د ټولو پېريانو پاچهان دي. وروسته باچا وويل : هغه ګرانه ماينـه او بوډۍ راولئ، چې زړه په يخ كم.

باچا چې ستر ګي اړولې بوډۍ او ماينه يې ورته راوستله باره يې پر يو

دیب حکم وکی چي سره کش يې که وې خوره !

دیب ور حمله کړه بوډۍ او دا ښځه يې دواړه يوه ګوله کړه.

باره باچا و زامنو ته وويل چي زما باچهي هم ستاسي ده زياته نو ارمان نه لرم.

باره سره کور و کهول سوله.

# د باچا زوی، مالداره او سپی

ته وا، ښه!
چې و یو باچا و یو زوی یې درلود چې خورا پر ګران و، دې زوی یې بل کار نه درلود بېله ښکاره، یوازې به دی او یو سپی ښکار ته سره تله، بل څوک یې ښکار ته نه ورسره بېوله.
یوه ورځ دوبی دئ، سوړ تک او سره ګرمي ده په ښکار راوتلی دئ، پر دښت ښکار کوي، خو څه ښکار یې و کی، ټکنده غرمه سوله، اوبه یې تمامي سولې خورا تږی سو، خولې پر بهېږي حلق یې وچ کلک دئ شاوخوا یې وکتل هلته لیري پر دښت د مالدارو کلی معلوم سو، و دې کلي ته رهي سو چې اوبه څني وغواړي، هله هله دا دئ راغی، د کلي څخه بیر ته د مالدارو څاه دئ.
یوه مالداره ښځه ده، پېغله ده اوبه کاږي، دی د تندي څخه پر لاري نه سي تلای غواړي چې ژر اوبه وچښي، مالداري چې فکر وکی چې سړی سټړی دئ ګرمي وهلی دئ تږی دئ، دا یخي اوبه کې په یوه ساه وچښلې تاوان ورته لري.
ده اوبه څني وغوښتلې چې اوبه راکه!
ښځي کټوری د اوبو ور ډک کی بیا یې نو پنځه شپږ خاشې پکښې واچولې، کټوری یې ور کی.
ده پر سر پورته کی چې دوه غوړپه یې وکړه خاشې یې خولې ته ورغلې، بیرته یې کټوری د خولې څخه ایسته کی خاشې یې پو کړې، بیا یې خوله پر کښېښووله، ها ها څو په شپږ اووه ساوو یې ځان اوبه کی، وروسته یې د ښځې څخه پوښتنه وکړه چې دا خاشې دې ولې پکښې واچولې؟
ښځې ورته وویل چې ته سټړی او لمر وهلی او ډېر تږی وې په یوه ساه

اوبه نه وې در ته ښې چې چښلي دي واى، نوځکه مي خاشې پکښې واچولې، ما ويل چې په يوه ساه يې ونه چښې.

ده ورته وويل چې ته د چا لور يې؟

دې ويل : زه د دغه کلي د خان لور يم، زما پلار د لسو زرو کورو خان او مشر دئ، موږ مالدار يو، درې زره کوره دغه دي او زر په وطن کي دي.

باره د باچا زوى د دې و عقل او پوهي ته اريان ولاړ چې صحرايي او دونه پوه ! او د دې ښايست او اخلاقو يې هم زړه ځني يووړى، باره يې سپى هم اوبه کى څه اوبه يې په پتک کي ځني راواخيستلې دستي مخ د کور پر خوا را رهي سو، دى او سپى کور ته راغله.

دستي ورغى پلار ته چې اوس نو ماته واده وکه، بس دئ ډيري چتي مي وکړې.

پلار يې ويل : ښه دئ پر دواړو سترگو، څوک در وغواړو؟

ده ويل : پر دښت د مالدارو کلى دئ، د هغه کلي د خان لور راوغواړه.

پلار يې ورته وويل : صحرايي ښځه څه کوې؟ د وزير لور به در وغواړم.

ده ويل : بلې ! ته ومنه کې وکم چې پر دنيا مي يوه شپه کېږي.

پلار يې هم ويل ښه دئ.

دستي يې د هغه کلي خان راوغوښت ورته وې ويل چې دا لور دي زما زوى ته راکه ! خان ويل : ښه دئ درکوم يې منگر هو نن شنبه ده بلي شنبې ته به يې ودوې، که دي واده نه کړه زموږ کلى باربړي ځي وطن ته، بيا زموږ دود نه دئ چې د وطن څخه و بل وطن ته ښځه واده کو، بيا يې په زور هم نه سې بېولاى.

باچا ويل ښه دئ.

څه سر دي گرځوم لنډه دا چې دستي يې دسمال واچاوه نکاح يې وتړله.

باچا او د باچا زوى و بلي شنبې ته د واده کار و بار سره جوړوي.

د خداى ﷻ کارونه دي د واده کار يې و بلي شنبې ته نه کى جوړ، دا اووه ورځي تيري سوې، د يکشنبې په ورځ د مالدارو کلى بار سو، دا لته په

لار کي يو دوه کوره پراته وه.
د مالدارو د خان لور راغله و يوې ښځې ته يې وويل چې که زما مېړه چې د باچا زوی دئ دغسي ځوان دئ او دا يې نښاني ده، په ما پسې که راتلی تـا وليـد، تـه بـه خامخـا ورتـه وايې چې مايـنې دي ويـل چې هوښ کـوه چې راپسي رانه سې د ژوند ځکه ولاکه وکې، زما ځخه لاس پرېمينځه، او زما سلام ورته ووايه !
هغې ښځي ويل : ښه دئ.
د يکشنبې په ورځ چې باچا حال ونيو، مالدار بار سوي وه، باچا اريان سو چې دا څه چل دئ او دا څه نکل پېښ سو؟
د باچا زوی وويل : تاسي خوا مه بدوئ مالره خدای پېښه کړېده، زه په خپله ماينه پسې خپله يوازي ځم، يا بې راولم يا به مړ سم.
باچا چې هر څه الي ځلي وکړې، چې مه ځه بله به دروغواړم.
ده ويل : خدای يو مالګي توروې که پاته سم چې پر دنيا مي يوه شپه وي.
لنډه دا چې پر آس سپور سو څه روپۍ و بتکۍ يې ورسره راواخيستلې يو يې خپل د ښکار سپی ورسره رهی کی را رهي سو برابر يې هغه لار پسي راواخيستله.
تر يوه ځايه چې راغی هغه دوه کوره په مخه ورغله، يوه ښځه ورتـه راووتله، ورته وې ويل چې د باچا زوی ته يې؟
ده ويل : هو ! هغې وويل چې ماينې دي سلام درباندي وايه پسله سلام ويل که دي زما مېړه وليد ورته وا "هوښ کوه چې په ما پسې رانه سې د ژوند ځکه ولاکه وکې" او که راتلې هم نو زموږ وطن پلانی ځای دئ او په لار کي دي د پېريانو وطن هم دئ چې هيڅوک نه سي تر تېرېدلای نور نو اختيار لرې.
ده ويل توکل پر خدای ﷻ دئ، نه پاتېږم يا به مړ سم يا به موږ.
لنډه دا چې پسي را رهي سو، هله هله هله مزل پر مزل د نکل کار دئ په نکل کي معطلي نسته، دا دئ يوه دښت ته راغی، چې د مرغه برچ نسته، نه انسان سته نه حيوان، پر دښت ليري يوه سپينه کلا ولاړه ده، وړی هم دئ

دې کلا ته را رهي سو، چي راغی د کلا دروازې ته ور ږغ یې کړه، چي مسافر یم، بیا یې ور ږغ کړه چي هر څه ناري یې ور وکړې ږغ نسته، باره په کلا ور ننووت، هیڅوک نسته، یو حوض دئ یوه درخته یې پر غاړه ولاړه ده، او به یې وڅښلي تر درخته لاندي د حوض پر غاړه پرېووت بیده سو، آس او سپی یې ورته وتاړه، چي سترګي یې سره ورغلې یوې مینځې ږغ پر وکی چي څوک یې؟

ده ویل : مسافر یم.

مینځې ورته وویل چي ښه ځوان یې، که بي بي خبره سوله رښکی به دي وباسي.

ده ویل : چي بي بي څوک ده؟

مینځې ورته وویل چي بي بي شاپېری ده، نهایتي ښایسته ده، دا په نیلي سواره سره مشهوره ده، په نېزه بازي کي ډېره ګړندۍ ده، او مېړه هم نه لري، وایي چي هر چا که زه په پهلواني او نېزه وهلو کي ماته کړم زه د هغه یم.

د باچا زوی ورته وویل چي ورسه را خبره یې که، ورته ووایه چي یو ځوان راغلی دئ، چي ستا سره یې په پهلواني او نېزه کي معلوموي.

مینځه هم راغله و بي بي ته یې وویل چي داسي یو ښایسته ځوان دئ چي توبه، وایي چي زه د بي بي سره پهلواني کوم او په نېزه بازي کي یې ورسره معلوموم. بي بي هم د بنګلې څخه راکښته سوله، پر خپل نیلي آس سپره سوله، نېزه یې راواخیستله چي راغله، دی یې ولید، لږ څه یې خوښ سو، باره یې ورته وویل چي ځوانه ! نېزه نه درسره وهم ځکه تش لاس یې، منګر پهلواني درسره کوم، که دي د آس په سپرولو کي د آس د ځین څخه واخیستلم په خپل مخ کي دي د ځین پر قاش کښېنولم، نو دي په حلاله نکاح وکتلم، که نه وي سر دي بایلو.

ده ویل : ډېر ښه دئ.

باره دی هم پر آس سپور سو میدان ته سره راووتله، دواړه جوړه سره ودرېدله، چي آس یې په سپرلو سره واچول هله هله هله په عین ټوپ کي یې ور حمله کړه سپکه یې د آس د ځین څخه واخیستله د خپل ځین د مخه یې

کښېنوله.

شاپېرۍ ورته وویل : چې آفرین ! اوس دې نو په حلاله نکاح وګټلم.

راغله بېر ته کلا ته بنګلې ته سره وخاته، چې پر دوو شونډو یادېږي هغه شی سته، څه سر دې ګرځوم څو عمر یې په دغه کلا کې تېر کی.

یوه ورځ یې شاپېرۍ ته وویل چې تا خو هیڅ پوښتنه راڅخه ونه کړه چې ته په څه شي پسې راغلی یې، څنګه راغلی یې؟

شاپېرۍ وویل : ښه اوس نکل وکه، څنګه راغلی وې دلته؟

ده ورته وویل چې زه په ماینه پسې را رهي سوی یم، د مالدارو څخه مي غوښتې وه مالدارو راڅخه بېولې ده، نو اوس که دې یوه لار و لیکه درته معلومه وي خو راوېښیه او ته دالته اوسه.

شاپېرۍ وویل چې دغه لار پسې واخله ځه ځه په لار کې به یوه بله دغسي کلا په مخه درسي، په هغه کلا کې هم دا یوازې ده په مشکۍ سواره سره مشهوره ده، زما دا کالور ده، که دې هغه هم په دغه چم په پهلواني وګټله خو ښه ! او که نه وژني دې، او که دې وګټله نو هلته یو غر دئ، د هغه غره و هغه بلې خواته د هغو مالدارو وطن دئ، ته به د ملنګ پر ډول ور واوړې، خپله ماینه به پیدا کې، په یو چم بې را رهي کې چې تر غره دې راواړوله زیاته موږ ته یې راپرېږده، او که دې راوانه ړوله در خبر سوله، نو دې وینه و مځکې ته نه پرېږدي وژني دې. ده ویل ښه دئ. لنډه دا چې را رهي سو، دا دئ راغی دې بلې کلا ته، په کلا ور ننووت بیا هغسي یوه مینځه ورته راغله دا نکل یې ورته وکی. مینځه راغله د ده نکل یې و شاپېرۍ ته وکی.

شاپېرۍ هم پر مشکي آس سپره سوه ورته راغله.

د دې شاپېرۍ هم مینه پر راغله، خوښ یې سو، و ځوان ته یې وویل چې ځوانه! ښه ځوان یې پر مرګ مي نه پېرزو کېږې مګر زه خپل بول نیولې یم، پهلواني درسره کوم که دې زه په سپرلو کې د آس د ځینه څخه واخیستلم زه ستا یم.

ده ویل : ښه دئ.

آبس میدان ته راووتله، اسان یې په سپرلو سره واچول په اول ټوپ

کي یې شاپیرۍ د آس د سره واخیستله پر خپل آس یې په خپل مخ کي کښېنوله.

لنډه دا چي دا یې هم وکتله خو څو عمر یې په کلا کي د مشکي سواري شاپیرۍ سره تېر کی.

پسله هغه یې مشکي سواري ته وویل چي زه مالدارو ته ځم، هلته زما ماینه ده راولم یې، او ستا د اکالور نیلي سواره مي هم ګټلې ده هغې د مالدارو کلی راښوولی دئ، چي د دغه غره هغه خواته دئ او ویل یې چي زه به درسم، موږ دواړي به د غره پر سر درته کښېنو او اوس نو ته د ملنګ جامې راته پیداکه چي ورسم، خپله ماینه په دغه چم پیدا کم، ولي چي لس زره کوره دي ایله که مي په ډېر زحمت پیدا کړه.

شاپیرۍ ویل : ښه دئ ولاړ سه موږ به پر غره درته ناستي یو، فقط تر موږ پوري یې راورسوه.

ده ویل : ښه !

لنډه دا چي شاپیرۍ د ملنګي کالي ورکړه، دا کالي یې واغوستل را رهي سو راغی تر غره ور واوښت، سپی او آس یې په غره کي وتړله. شاپیرياني دواړي د غره پر سر ورته کښېنستلې، آس او سپی یې ګوري. دی کلي ته راغی د ملنګ پر ډول کور په کور ګرځي پکر غواړي، هله هله څو د خسر پر کور پېښ سو، چي هل یې کړه چي مېرمني خیر راوړه! ماینې یې خیر راواخیست چي راغله ملنګ یې ولید وې پېژاند باره یې روغبړ سره وکی.

ملنګ ورته وویل چي ما خوارۍ وکښلې، مرګ ته مي ځان ورکی، اوس راسره ځې که یه ؟

دې ورته وویل چي پر سر او سترګو درسره ځم، مګر د دې کلي او مالدارنو واک لرې؟ که راخبر سوله تر هر ځایه چي وي راپسي ځي چي هر ځای مو پیدا کي دواړه وژني.

ده ورته وویل چي هلته په غره کي ما آس درولی دئ، ته فقط تر هغه ځایه پوري ځان راورسوه زیاته تولې و ماته پرېږده ما یې چاره کړې ده. زه به دمخه ولاړ سم ته پسې راسه !

دې ویل : ښه دئ.

لنډه دا چې د باچا زوی را رهي سو راغی خپل آس ته شاپېریانې پر غره دوګامه ناستې دي.

ماینې یې هم دستې کور و کار سره جوړ کی، ډېرې روپۍ یې ورسره راواخیستلې خپله بخچه یې هم په بغل کې ونیوله په خپل مېړه پسې را ووتله، هله هله ځو پسې راورسېدله.

د باچا زوی دستې پر آس سپور سو ماینه یې پسې کنجغه کړه را رهي سوله چې تر غره راواوښته د مالدارو لښکر پسې راورسېدی.

دلته دواړو شاپېریانې دوګامه ورته ولاړې دي ده ځان ورته راورساوه، لښکر پسې راورسېدی.

شاپېریانې وردمخه سولې د لښکر مشر ته یې وویل چې خبر دار ! چې زیات پسې راتېر نه سئ، زیات حق نه لرئ، زموږ علاقه ده، که مو تر دغه غره ګام را اړولی و، ولاکه یو بیا ژوندی ولاړ سئ. لښکر هم بیرته مخ وګرځاوه، د شاپېریانو سره یې د وسه نه وه پوره. د باچا زوی او ماینه یې او نورې دوې شاپېریانې راغلې د مشکي سوارې شاپېرۍ کلا ته یو ځو شپې یې تېرې کړې. پس له هغه د باچا زوی ورته وویل چې زه د باچا زوی یم، ځم وطن ته مقصد مې حاصل سو، تاسې راسره ځئ که نه ځئ؟ شاپېریانو دواړو ورته وویل چې بېشکه درسره ځو، موږ هم ستا ماینې یو، په نره توره دې ګټلې یو، ته مو مېړه یې.

لنډه دا چې د دغه ځای ځخه یې هم ډېره دنیا او بتکۍ او جواهرات رابار کړه پر آسانو راسپاره سول.

د نکل کار دئ دا دئ د خپل پلار پاچهۍ و علاقې ته راشوه سوله، د ښار ځخه لیرې یو ځای یې واړول، دالته یې دستې ختو ته لاس ورته کی، مزدوران یې واچول یوه ښه کلا یې لکه ښار غوندې جوړه کړه، مځکې او باغونه یې رانیول یوه ښه مهمانخانه یې جوړه کړه.

ځو ورځې باد د باچا زوی و شاپېریانو ته وویل چې زه ورځم پلار ته حق داره دئ مېلمه کوم یې.

دې ماینو یې درو سرو ته وویل چې ورسره رایې وله مېلمه یې که، منکر

هو کور ته به یې نه راولې، که دي راووست او موږ یې ولیدو پر موږ زړه بایلي د توانه یې وزي، نو په هر چم چي وي تا وژني.

ده ویل : چپ کئ ! چپ کئ ! پلار پر مرندو هیڅکله نه وي مین سوی، او نې زوی وژلی دئ.

دوی ورته وویل چي موږ درته وویل، زیاته اختیار لرې بیا به ارمان وکې.

ده ویل : په کله یې پرېږدم تاسي داسي خبري کوئ چي خره خندوئ.

لنډه دا چي را رهي سو، ښار ته راغی خو خوشحالي سوله چي د باچا زوی راغی. دی برابر پلار ته راغی لاسونه یې ور مچ کړه، روغبړ یې ورسره وکی. پلار یې ورته ویل : په خیر راغلې؟

ده ویل : هو ماینه مي راوستله، او دوې ماینې مي نوري هم کړي دي، تاسي او نوره عمله سره له وزیرانو او قاضیانو سبا زما مېلمانه یاست.

پلار یې حیران ولاړ ورته وې ویل : چیري مي بیایي او ښځي دي چیري دي؟

ده ورته وویل چي زه جلا ځای لرم، نوی ښار مي اچولی دئ.

پلار یې ویل : ښه دئ.

لنډه دا چي سبا باچا او عمله او نوره سپاه د ښاره راووتله چو کچکه ده خوشحالي ده چي د باچا زوی راغلی دئ او باچا یې مېلمه کړی دئ.

څه سر دي ګرځوم دا دئ کلا ته راغی، د کلا دمخه ښه فرشونه اوار دي، کښېنستل ماښام سو ډوډۍ یې وخوړه هغه نور یې رخصت کړه، باچا یې کور ته بوت.

باچا چي کلا ته ننووت دا خپل مرندي یې ولیدې، دستي یې زړه بایلو، خو بړغ یې دم در حاله ونه کی، روغبړ یې سره وکی، شپه تېره سوه، په باچا اور لګېږي تمامه شپه یې په چرت تېره کړه " چي که بل بېګانه وای خو په زوره به مي دا ښځي ځني خلاصي کړي وای یا به مي په یوه بانه وژلی وای، د ده سره به اوس څه کوم؟"

په هر صورت سهار باچا رخصت سو، زوی ته یې وویل چي ته نه راسره ځې؟

ده وویل : یه ! زه دلې خوشحاله یم دلې دښت دئ ښکار کوم.

باچا ولاړ ښار ته !

دې شاپېریانو ورته وویل چي زموږ په خوله دي ونه کړه اوس ته خبر اوسه چي باچا پر موږ زړه بایلو ضرور یو چم درته جوړوي، وژني دي، زیاته اختیار لرې.

ده ویل : چپ کئ ! چپ کئ ! دا خبري مه کوئ !

باچا هلته دستي مانښام قاضي پټ راغوښت و حرمسرای ته، ورته وې ویل چي د دغه زوی مرګ به راته روا کوې، او دا ماینې به یې هم راته روا کوې، که نه وي ولاکه د ژوند څکه راڅخه وکې پرېږدم دي نه !

قاضي فکر وکی چي وژني دي، او پر ناروا څنګه د روا حکم وکم، باره یې باچا ته وویل چي راسه یو چل ورسره وکه.

ده ویل : څه چل؟ قاضي ویل چي حال ور ولېږه ورته وا راځه ښکار ته، چي بودي تی دښت ته یې وباسه، چي خورا الیري وي او څه آبادي او اوبه ور نژدې نه وي، سکاو وپوهوه چي تکی اوبه ور نه کي، او غرمه هم تروه خواړه په وخوره، چي خورا تږی سي، او ډېر یې ستړی هم که، که یې د سکاو څخه اوبه وغوښتې، سکاو دي ورته ووایي چي دا یوه سترګه دي کاږم نو دي اوبوم، چي سترګه یې څني وکښله، نو دي لا تروې د مالکي اوبه ور کي، چي ښه پسي تږی سي بیا دي ورته ووایي چي دا بله سترګه به دي هم وکاږم نو دي په خوږو اوبو اوبوم ! چي ړوند مو کی، پر هغه دښت یې ایله کی، هلته یې درندګان خوري، مړندي به درپاته سي په خوني به هم نه یې.

ده ویل : ښه دئ !

لنډه دا چي سهار یې حال ور وکی چي موږ څو ښکار ته د مېلې ښکار مو ایستلی دئ، ته به هم چټک راسې چي ګرده تاته ولاړ دي.

د باچا زوی هم پر خپل آس سپور سو، خپل د ښکار سپی یې ورسره را رهي کی، دا دئ د پلار سره یو ځای ولاړ، ښکار ته یو دښت یې پسي راواخیستی چي سر او پای یې نه معلومېږي.

زوی یې ورته وایي چي دا چول دئ، اوبه نسته زیات څه کوو چي ځو؟

پلار یې ورته وایي چې د دې په پای کې یوه چینه ده، ډیرې هوسۍ او غرڅه ورته راځي، اوبه څیښي، هلته به ورسو، ښه ښکار به وکو.

څه سر دې ګرځوم خورا یې لیرې بوت، یو ځای یې پیاده کې آس یې بل نوکر ته ورکې، دوی پیاده را رهي سوله، هله هله ټکنده غرمه ده، خورا ګرمي سوله ستړی هم سو تږی هم سو، سکاو ته یې ویل اوبه راکه !

سکاو ورته وایي چې یه ! اوبه نه درکوم باچا حکم کړی دئ چې دا چول دئ اوبه لږ دي هیڅا ته یې مه ورکوه.

بیا یې یو دوه ساعته ځان ټینګ کی، حلق یې وچکلک سو، ویل: اوبه راکه !

سکاو ویل : وده د ډوډۍ وخت دئ، چې ډوډۍ وخورو په ګډه به په اندازه اوبه وڅښو. ډوډۍ راغله، ده ته یې داسي تروه غورمه کښېښووله چې سو کړی مالګه ده، وږی دئ دا یې وخوړه، وروسته داسي تږی سو چې د ترپ او خبرو ولوېدئ. باچا ځان نیهام کړی دئ، او د باچا زوی وایي مړ سوم د تندي اوبه راکه !

سکاو ورته وایي چې څه اوږدې او لنډې کوم، باچا راته ویلي دي چې که ده اوبه غوښتې په یوه سترګه به یې ورکوې، که یې بله پلا غوښتې بله سترګه به یې کاږې.

دئ پوه سو چې ماینو مي رشتیا ویل، منګر ما یې په خوله ونه کړه، په هر صورت په تېر پسي ارمان دئ هیڅ یې د لاسه نه کېږي د چول دښت دئ، هیڅ سړی یې په خوله هم نه کوي، آس یې هم نسته، یو ګړی یې ځان ټینګ کی، آخر ته تندي نهایته غلبه پر وکړه، د صورت ویني یې وار په وار وچېږي آخر ته یې فکر وکی چې مرم خو مرم نه پاتېږم، تر مرګ دغه ښه دئ چې سترګې مي وکاږي اوبه خو به سم، باره یې سکاو ته وویل چې راسه دغه یوه سترګه مي وکاږه اوبه راکه !

سکاو هم دستي نښتر ور واچاوه سترګه یې ځني وکښله هلته یې وغورځوله، سپی یې ورته ولاړ و، دستي یې دا سترګه په هوا ونیوله و مځکې ته یې پرې نښووله وایې خیستله په ستوني کي یې وساتله.

باره سکاو یو غړپ تروې اوبه ورکړې، اوبه یې نه کی.

ده ویل : اوبه خو مي که ! سترګه دي راځخه وکښله اوبه دي نه کړم، هغه یو غړپ هم تروې وې.

سکاو ویل : چي یه ! د باچا حکم نسته، چي دغه بله سترګه دي هم وکاږم نو دي اوبه کوم.

ده ورته وویل چي دغه ده دا بله سترګه هم وکاږه !

سکاو بیا ښنبخ ور واچاوه دا بله سترګه یې هم ځني وکښله هلته یې وغورځوله، سپي بیا حمله کړه په هوا یې ونیوله دا سترګه یې هم تازه توده په ستوني کي وساتله.

دئ او سپی یې دالته پر دښت پرېښوولهٔ. سکاو باچا ته راغی چي سترګي مي ستا په امر وکښلې. باچا هم خوشحاله سو دستي را رهي سو د زوی کلا ته راغی و مړندو ته یې وویل چي مېړه مو مړ سو، راځئ اوس نو زما سره ښار ته. مړندو یې ورته وویل چي موږ دلې د ده پر نامه کښېنو او که زور راسره کوې په زور مو بیایې، نو جنګ درسره کوو، هر څه زور چي لرې راوې باسه !

باچا اریان سو چي دا یې څنګه خبره وکړه ! دوی نو په څه شي جنګ کوي، بیا یې وویل چي ځه ښځي دي یو پېشرو یې وواهه.

سهار یې دوې پیرې ورته راواستولې چي ورسئ ښځي د مال او اسبابه سره راولئ.

پیرې چي ورته راغلې په دروازه کي یې ورته وویل چي درځئ باچا حکم کړی دئ چي دوی راکډه کئ، دوی دي د مال سره راسي.

شاپېریاني دواړي پر اسانو سپرې سولې د نر په بڼه سولې نیزې یې راواخیستلې و میدان ته راووتلې، پیرې یې پسي واخیستلې ټوله یې ځای پر ځای په نېزو وپېیل مړه یې کړه، بیرته کلا ته ننوتلې.

باچا ته حال راغی چي هغه سپاهیان یې ځای پر ځای په نېزو ټوله وپېیل.

په سبایې دوې پلټني عسکر ورته را وایستل.

دوی بیا پر خپل مشکي او نیلي اسانو سپرې سولې بیا په راګډي سولې د پېریانو چابکي ده، اسان یې الوزي خو په یوه رپ کي یې یو پلټن په نېزو

وپېيله پوښنا يې کړه هغه نور پلټن په ښار غوټ ننوتله.

دوی نو پر پرده چي جنګ سره کي، د باچا زوی اوسپی پسي راواخله.

هلته چي د باچا د زوی سترګي يې وکښلې او سپي دواړي په خوله کي وساتلې او دوی دوه يوازي پر دښت وه، دغه سره لمر ته پاته سوله.

سپي فکر وکی چي زه هم مرم، بادار مي هم مري، تـه خو سترګي لري بادار که دي د ترپه ولوېدی ړوند سو، باره يې دغسي لکی پر شا واړوله هله هله يو ګړی يې دښت تر پښو وکيښ آخر ته يې يو ځای يوه پخه چينه پيدا کړه، يوه ونه پر ولاړه ده، راغی ځان يې پر اوبه کی، "ګوره د سپي وفا ده او فکر " خپله لکی يې په اوبو کي ووهله لنده يې کړه بيرتـه يې راالا کـړه ځان يې په يوه ټوپ تر باداره راورساوه، لکی يې د بادار د لاسه ووهله کړنچي يې وکی. ده چي د سپي لکی وکتله لنده وه وپوهېدی چي سپي اوبه پيدا کړي دي باره يې سپي ته وويل چي دمخه سه !

سپي دمخه سو، ده يې په لکی پوري لاس ونيو ټپرېدی هله هله ځو د نس په خوړو يې راووست باره سپي اوبه په چمبه وڅړپولې.

ده يې چړپی واروېدی ور وڅکېدی اوبه يې وڅښلي شکر يې د خدای ﷻ وکيښ.

سپي بيرتـه پـه لاس کي لکی ورکـړه رايې ووسـت تـر ونـي لانـدي يې کښېناوه.

يو ګړی باد سپي فکر وکی چي اوبه خو سولو منګر د لوږي به دلتـه مـړه سو زه لا په واک کي يم بادار مي د واکه ولوېدی، پر يوه نه سي تلای، باره سپي لکی پر شا واړوله، ټوپ يې کړله، هله هله په يوه تراټ کلا ته راغی.

مايني دغسي پر راوغور ځېدلې، سپی يې پر دا خوله مچ کی، سپی پـر دوی هـم شاوخوا راوګر ځېدی، دوی فکـر وکـی چي ولچي د سپي د محبتـه ځخه معلومېږي چي لکه چي ژوندی دئ، سپي ته يې ډوډی واچوله.

سپي ډوډی په خوله کي واخيستله د دباندي پر خوا رهي سو.

د ماينو يې ښه تـرا يقين سو چي خامخا ژوندی دئ، دغه ډوډی لکـه چـي هغـه تـه ور وړي، دستي يـې د سـپي پـه غـاړه د ډوډی او د غوښـو ډک دسمال غوټه کی سپي يې ايله کی، سپي په يوه تراټ راغی سر يې د خاوند

په غېږ کي کښېښو. ده چي لاس پر وتېر اوه په غاړه يې دسمال غوټه دئ ځني خلاص يې کی ډوډۍ او غوښي يې وخوړلې، شکر يې وکيښ چي خدايه بيشکه رزاق او قادر يې. دا بله ورځ بيا سپی را رهي سو، کلا ته راغی، د باچا زوی تر درخته لاندي پروت دئ. دوه مرغان راغله په درخته کي کښېښستل يوه مرغه هغه بل ته ويل چي دا څه ښه ځوان دئ ارمان چي سترګي يې درلودای، دې بل مرغه ورته وويل چي سترګي يې د سپي په ستوني کي دي، چي د دې درختي بلګونه وشکوي او سپی په څټ کي په سوک ووهي سترګي يې د سپي د ستوني څخه رالوېږي، پيا يې د دغي چينې په اوبو پرېمينځي په بسم الله يې د سترګو په غالبانو کي کښېږدي او دا بلګونه ميده کي پر کښې يې ږدي، په دوه ساعته به يې خدای ﷻ سترګي جوړي کي، په ويني به، او هو سترګي به يې شنې وي. هيڅوک به يې نه پېژني.

دا خبري چي مرغانو سره وکړلې پر سو والوتل.

دی دستي درختي ته ور وخوت بلګونه يې ځني وشکوله بير ته راکښته سو چي سپی راغی ده کوچ کی، سپی راغی سر يې په غېږ کي ورته کښېښو.

ده په څټ کي په سوک وواهه په لمن کي يې سترګي ولوېدلې دستي يې واخيستې د چينې په اوبو يې پرېولې، بسم الله يې کړه په غالبانو کي يې کښېښوولې، سربېره يې بلګونه پر کښېښوول. يو دوه ساعته پرېووت چي پورته سو، چي سترګي يې پورته کړې مځکه او آسمان يې وليد شکر يې وکيښ پر سجده و خدای ﷻ ته پرېووت باره راولاړ سو، سپی يې پر خوله مچ کی، نو يې وشاړه چي ولاړ سه کلا ته باره مه راځه.

سپی ولاړ کلا ته دا پلا يې بيا د سپي په غاړه د ډوډۍ او دغوښو دسمال ور غوټه کی، چي هر څه يې چغه کی سپی نه تلی، دوی فکر وکی چي ولچي مړ دئ، خو صبر يې وکی ويل توکل دئ.

د باچا زوی راغی ښار ته پر يوه دوکان کښېنوست، دکاندار خوابدی ناست دئ، ده پوښتنه ځني وکړه چي ولي خوابدی ناست يې؟

دکاندار ورته وويل چي د باچا د مړندو سره جنګ دئ، ګر ده پلټني يې

ور تباه کړي اوس موږ ورباسي.

ده ورته وويل چي ورسه باچا ته ووايه چي يو ځوان دئ وايي چي زه يې په جنګ در ماتوم، زه يوازي په جنګ ور وزم، نور دي هيڅوک نه وي راسره، فقط يو اس دي په کمنډ کي باچا و ماته راکي، نور هيڅ نه غواړم.

دوکاندار خوشحاله سو راغی باچا ته يې وويل چي داسي يو شين سترګی ځوان دئ، وايي چي زه يوازي په جنګ ور وزم، نور هيڅ نه غواړم منګر ماته دي په کمنډ کي يو آس راکي بل څه نه غواړم. باچا ويل : ورسه رايې وله.

دوکاندار راغی دی يې ور رهي کی، باچا ته يې ور ووست، باچا يې نه پېژني خوسترګي يې شنې دي، او چيري يې زړه ته لوېږي چي دا به زما زوی وي.

باچا پوښتنه ځني وکړه چي څنګه ته په جنګ ور وزې؟

ده ويل : هو ! زه يوازي په جنګ ور وزم، نور څوک به نه وي، ته او قاضي او کم يو وزير چي لرې، هغه دي ليري پر يو غونډۍ راته کښېني، نو يې سيل کوئ چي څنګه يې در ماتي کم، که خدای ﷻ کول، منګر هو ! ما په کمنډ کي ايله که، هر اس چي مي خوښ سو هغه راکه، چي زه پر سپور سم.

باچا ويل : ښه دئ ورسه د سره ګرده کمنډ ستا دئ تر تا جار دئ، که دي دا کار راوکی.

دی هم راغی کمنډ ته پکښي وګرځېدی او پکښي وې کتل خپل آس يې پيدا کی.

آس يې داسي ډنګر سوی دئ چي په سترګو يې د اوښکو لاري جوړي سوي دي، چي د ده بوی پر ولګېدی ورته وې شښنل.

دی هم راغی دستي يې پر آس لاس تېر کی، آس يې ځين کی پر آس سپور سو. آس پر دوه دوه نوکه کېږي، راغی ښځو ته يې حال ورکی چي ميدان ته راووزئ.

باچا وزير او قاضي ولاړه ليري پر يوه لوړه غونډۍ ورته کښېنستله سيل يې کوي.

ښځي هم ورته راووتلې دمخه نیلی سواره ده، ده چي آس باندي ور رهی کی، آس مخامخ باندي ور الا کړه، ده نیلی سواره و نېزه وهلو ته پرې نښووله د روه یې واخیستله دمخه پر ځین یې سپره کړه.

باره یې په دغه حال کي ورته وویل چي زه پلانی یم، ستا مېړه یم خوا مه بدوه.

و مشکی سواري ته یې هم حال وواېه چي خوابدي نه سئ نښاني یې ورته وویل، دغه خپل نکل یې ګرده سر تر پایه ورته وکی، نو یې بیر ته ایله کړه، چي ورځه کلا ته، هغه بله راوباسه.

دا کلا ته ولاړه، هغې بلي ته یې دا نکل وکی، حال یې ورته وواېه چي خوشحاله اوسه خوا بده نه کې زموږ مېړه دئ.

لنډه دا چي مشکی سواره هم ورته راووتله، دا یې هم په یوه ټوپ د آس د سره څخه واخیستله، په خپل مخ کي یې سپره کړه بیر ته یې ایله کړه، ورته وې ویل چي سبا به د کلا دروازې ته راسئ یوه به یوې خواته ودرېږئ بله به بلي خواته ودرېږئ، چي باچا در ننووت وهئ به یې پر دغه لنډه باندي چي دوه ټوکره سي، بیا به قاضي او مفتي پسي ووهئ.

دوی ویل ښه دئ موږ هم د خدایه دغه ساعت غوښتی.

دی راغی باچا ته یې وویل چي سبا دي باچا قاضي او مفتي درې په درې راسي دلې به نکاح وتړي شپه به تېره کي سهار به مو په ډېر درب بوزي واده به مو کي.

باچا ویل : ډېر ښه دئ او پر تا دي ډېر آفرینونه او شاباسونه وي، وده چي زه پر کراره سم بیا به دي غټوم.

سبا شپه باچا ښه پېشن کړی دئ د قاضي او مفتي سره را رهي سو خوشحاله دئ، دا دئ کلا ته راغی چي په دروازه یې سر ور دننه کی دتورو پر شرپ سو دوه خیاره یې کی، اه یې ونه کی مړ یې کی، بیا قاضي او مفتي پسي ننوتله، دا یې هم ووهله پر دغه څټانو باندي، سرونه یې هلته وغورځېده. د باچا زوی راغی و کلا ته، شپه یې تر سهاره ده او ماینو په شکر او سجدو تېره کړه.

سهار وختي د باچا زوی راغی ښار ته، و وزیرانو ته یې وویل چي زه هغه

د باچـا زوی يـم چـي سـتر ګـي يـې راڅخـه وکښـلې باچـا او قاضـي او مفتـي ګمراهان مي مړه کړه، تاسي به د روه جار ووهئ چي باچا مړ سو، زوی يې پر تخت کښېنوست، که نه وي والله که يو د ژوند څکه راڅخه وکی، يا تاسي يا سپاه.

وزيرانو ويل چي ستا پلار دي خدای ﷻ دوږخي کي ته مو پر غبر ګو ستر ګو منلی يې، باچا مو يې بېغمه اوسه !

سهار وزيرانو جار وواهه چي باچا مړ سو، پر تخت يې زوی کښېنوست، هوښ کوئ چي غوږ ونه ښوروئ.

باره د هري خوا بيعتونه ورته راغله، دی پر تخت کښېنوست دري سره ماينې يې ښار ته راوستلې، خپله خوشحالي يې کوله، و خدای ﷻ ته يې عبادت کاوه، او د خدای ﷻ شکر يې کيښ. و بس !

دوی هلته پاته سوه، زه دلته راغلم !

# عليبېگ او شاپاټۍ

ته وا، ښه!

چي وه دوه وروڼه وه، دا دواړه په کندهار کي د بکوا وه.

دواړه وروڼه خورا دولتمن وه، خورا ډېر دولت او مالداري يې درلوده، منگر يوه اولاد نه درلود. د خداى کارونه دي د دواړو ماينې اميندواري سولې.

دواړو وروڼو وويل چي که زما لور وه ستا زوى و زه به لور ستا و زوى ته درکوم، او که ستا لور وه زما زوى، ته به لور زما زوى ته راکوې، او که د دواړو دا لوني يا زامن وه خو هيڅ!

څه سر دي گرځوم ښځي چي لنگي سولې د يوه لور او د يوه زوى پيدا سو، د نجلۍ نوم "شاپاټۍ" او د زوى نوم يې "عليبېگ" کښېښو، دستي يې شاپاټۍ و عليبېگ ته ورکړه.

لنډه دا چي عمر دئ تېرېږي، د نکل کار دئ معطلي نسته پکښي، شاپاټۍ او عليبېگ دواړه ښه غټو کي کوچنيان سوله، په دغه کوچنيوالي يې يو د بله مينه سره پيدا سوله، يو د بله داسي سره گران دي چي توبه! يو ځاى سره گرځي بازۍ سره کوي، هه هه هه! څو دواړه خداى لويول لوى سوله. کارونه د خداى دي څو عمر باد يې دواړه وروڼه مړه سوه څو ورځي باد چي فاتحه و کمبله واخيستله سوه، عليبېگ د شاپاټۍ مور ته وويل چي اوس مي نو واده په لاس راکه، ښځه هم لو سول.

د شاپاټۍ مور ورته وويل چي ښه دئ، منگر ولور در څخه غواړم ولي چي اکا دي مړ سو، زه به د کور يو ټاک و ټوک در وکم.

عليبېگ ورته ويل چي ښه وايي منگر اوس خو څه نه لرم چي در يې کم او څو روپۍ سته چي دا درکم بيا بې مايې کېږم نو يه! زه به څه شي مي

په وکم هندوستان له به يې يوسم څه ګټه مټه به وکم، نو د هغې خوا چې راغلم هغه دئ خپل واده به وکم !

آول ښه دئ !

آبس ! عليبيګ راغی ښار ته څه شی می يې واخيستل، خپل کار يې سم کی خپل کاروان يې جوړ کی، دوې درې ورځې باد يې کاروان لکه باد مخ د هندوستان پر خوا رهي سو، هله هله هله ! دا دئ برابر د کن لره راغی، په د کن کي يې کاروان واړاوه.

د بده مرغه هغه مالونه چي ده کړي وه په د کن کي ارزانه وه نو هلته يې په يوه کاروانسرای کي يوه کوټه ونيوله چي ګوندي مال به مي لږ څه ګران او لږ څه پورته سي بيا به يې خرڅ کم، څو عمر که وځنډېږم پروانه لري چي تاوان ونه کم.

دی نو هلته په د کن کي پرېږده چي خپل مال ويلي کي شاپاڼۍ پسي راواخله: شاپاڼۍ داسي ښايسته ده لکه د انار ګل، ستر ګي نه پر روڼېږي، جوړه نه لري. يوه ورځ شاپاڼۍ د خپلو همزولو سره و دښت ته راوتلې ده، د پسرلي موسم دئ سيل کوي، صحرا ده، د غاټوی او د ريدي ګلان دي، څوک ټاټکي کاږي، څوک د غوټاړي ګلان شکوي، ځيني نجوني د غاټوی او ريدي ګلان شکوي، په خپلو چترو او ګرېوانو کي يې ټومبي، څوک اتڼ کوي، څوک څه کوي او څوک څه کوي، په خپله شاپاڼۍ پر يوه غټه ډبره ناسته ده مخ يې لکه د څورلسم سپوږمۍ ځلېږي، دا هم شاوخوا ګوري سيل او ننداري کوي. په دغه وطن کي يو معصوم خان باچا و[1] د دغه وطن مشر او حاکم و، دا معصوم خان پر آس سپور دئ نور سپاره په پسې دي، راوتلی دئ چکر وهي، سيل کوي، شاوخوا ستر ګي رغړوي، يو وار که ګوري دا ښځې يې وليدلې، چي داسي يې لوړ وکتل ستر ګي يې پر شاپاڼۍ ومښتې، د روه پر

---

[1] دمخه هر يو د خپل سر باچا و، د هيچا حمايت يې نه کاوه، هر پښتانه خپلي ښلي ښلي چاربرجه کلاوي درلودې، او هر يو د خپل قوم باچا بلل کېدی، د پښتنو هر خان باچا و، نو ځکه اوس په هر نکل کي وايي چي : يو باچا و پلانی نومېدی، نو معصوم خان هم د دغي جملې د باچهانو څخه و.

مین سو، ځای پر ځای لکه ژېړ بت بېسده پرېووت.
شاپانۍ او نوري ښځي را رهي سولې یو باغ دئ په دې باغ ننوتلې.
معصوم خان چي په سد کي راغی دستي را ولاړ سو و خپلو غړو ته یې وویل چي هغه ښځي څه سولې؟
دوی ورته وویل : چي هغه په دغه باغ ننوتلې.
معصوم خان راغی د باغ تر تخره ور واوښت په باغ کي ماش درګي درګي ولاړ دي، شاپانۍ یې سیل کوي، پلی خوري معصوم خان ناره پر وکړه :

لو یه خدایه ماش ولاړ دي درګي درګي
معصوم خان به څه ښادي کي چي یې لیدلي شاپانۍ خماري سترګي

شاپانۍ چي دا ناره واروېدله فکر یې وکی چي څه بلا درته جوړه سوه، خورا خوابدې سوله، باره یې چرت وواهه چي راسه پوره او کلک جواب یې وکه چي صبر یې سي، او زما مېړه په دکن کي ناست دئ، نو زه څنګه د ده پت مات کم، باید تر مرګه دده پر پت کښېنم. او د ده پت وساتم.
آخود شاپاڼو د ده په جواب کي ناره پر وکړه :

معصوم خانه که ته پُل زه دي واله یم
که ته پر ما مین یې معصوم خانه زه پر تا مینه نه یم

یعني که ته خان یې زه دي همسنګه یم، نه در څخه بېرېږم، نه بېرېدونکې یم، ته لکه پر ځای به پاته یې او زه لکه اوبه درڅخه تېره به سم، زه پر تا نه یم مینه، څه پر لو لار خپله لار دي وهه د بل په ښځو کار مه لره !
ښځي د کلا پر خوا را رهي سولې.
معصوم خان په پسي دئ د توانه یې وتلې ده، چي کلا ته راورسېدلې، معصوم خان بله ناره پر وکړه :

د کلا د خولې څخه خېژي شنه دودونه
معصوم خان به څه ښادي کي
چي یې لیدلي د شاپاڼو سپین مړوندونه

شاپاڼو بیا خوشکیت ورته وکی چي ځغله بې پلاره !
معصوم خان ورته ویل چي زما د طاقته وتلې ده، د پتڼ پای انګار دئ،

که په رضا وي که په زور نه دي پرېږدم، که په رضا ياري نه راسره کوئې په زوره به دي بوزم!!!

شاپانو فکر وکی چي ته ښځه يې، د وسه دي نه ده پوره او په کور کي هم نر ګاړی نه لرې، راسه چم ورسره وکه، که دي خطايوست څو عمر ځان ځني خلاص او تر ګوره ځان ځني ورسوم، ګوندي په دغه ترڅ کي عليبېګ راسي يا به احوال ور وکم، نو يې پر معصوم خان ناره وکړه :

معصوم خانه که ته نل زه دي پيروتی

که ته نل زه دي پېروتی

معصوم خان زه نېزه يم در ته نجتی

يعني چي زه هم پر تا داسي مينه يم لکه پېروتی چي پر نل مينه ده، او شاوخوا پر پېچل کېږي، بيا يې د ده د زړه د ډاډ له پاره بله ناره پر وکړه چي زړه يې ېېغمه سي :

معصوم خانه غابښ دي سپين تر مرغلرو

کلا ببخ لره را درومه

په ورو ورو به سره کړو د ناز خبري

معصوم خان چي دا واروېدله، نهايته خوشحاله سو، چي ولچي دا هم راباندي مينه ده، او رضا سوله.

شاپانو ورته وويل چي د کلا ببخ لره مابنام راسه هلته به خپلي خبري سره وکو، خپل مقصد به سره ووايو، اوس دلته دا دونه د خدای ﷻ عالم دئ نوم به مو بد ګرېوان به مو شيري وي، يه ! کار بايد په پټه وسي. معصوم خان هم ډېر خوشحاله سو ويل ښه دئ. معصوم خان بير ته پر آس سپور سو ولاړ، منګر په زړه يې خدای خبر دئ چي څنګه به وي، وای کله به مابنام سي. شاپانو چي ولاړه دستي په کلا ننوتله، دستي يې د کلا دروازه وتړله قلف يې کړه، خاوري يې ورته کوټه کړې، داسي يې ټينګه کړه چي هيڅوک يې نه سي خلاصولای، وروسته وختله د کلا په برج کي کښېنستله.

لنډه دا چي مابنام سو، چي ښه ترغونې سوله، معصوم خان را رهي سو راغی کلا لره "شاپانو په برج کي ده" ده ور بږغ کړه چي څنګه يې کوې؟ دروازه راخلاصوې که څه وکم؟

شاپاڼو ويل چي زما چرت او کار نه دئ سم سوی، نن ولاړ سه سبا شپه راسه!
څه سر دي گرځوم يوه هفته دوې هفتې يې په دغه چم خطا يوست هره ورځ بې کتله چي نن به عليبېگ راسي سبا به راسي، دې خواري خو نر گاړی نه درلود چي په عليبېگ پسي يې ولېږي، يوه سپين سرې مور يې ده. يوه ورځ شاپاڼی په برج کي ختلې ده، شاوخوا گوري که يې کتل د کلا بېخ ته يو فقير ناست دئ، پر سر يې گډړی اچولې ده پر دې ملنگ يې ناره وکړه چي گوندي په عليبېگ پسي ولاړ سي، دا احوال ور وړي:

شاه ملنگه چي پر سر دي گډړی ده
که به ناز د پاڼو اخلې
عليبېگ لره به يوسې زما چټی

يعني عليبېگ ته زما خط يوسه!
ملنگ په جواب کي ناره پر وکړه:

شاه ملنگ يم چي پر سر مي گډړی
زه به ناز د پاڼو واخلم
عليبېگ لره به يوسم ستا چټی

آبس! ملنگ ورته ويل چي بې بي خدمت! زه هر کار چي دئ کوم يې. شاپاڼو دا خپل تېر حال ورته ووايه، ورته وې ويل: "زه به خط در وليکم، دا خط که دي دکن ته يووړی او عليبېگ ته دي ورکی، هر څه چي غواړې در بې کم".
فقير ورته ويل چي پر غبر گولېمو، را ويې ليکه!
شاپاڼی هم دستي قلم او مشواڼی راواخيستله او دا يې پکښي وليکل:

په عليبېگ پسي به واستوم حالونه
که په دې مياشت کي رانغلې
معصوم خان دي په باغ کښېيستل مالونه

په عليبېگ پسي به واستوم چټی
که په دې مياشت کي رانغلې
تور دکن لره به درسمه بندی

لنډه دا چي د ځان او د معصوم خان کيفيت يې ټوله پکښي وکيښ، چي معصوم خان په نن او سبا خطا باسم داغه يې چي راغلې، دا خط يې وليکې د فقير په لاس يې ورکی.

فقير هم ګـدړی ټکوهله پر غاړه يې واچوله دوې پښې يې دغه کړې دوې يې نوري يا شاهي ولات مخ د دکن پر خوا رهي سو.

پـه دغـه مانبـام معصـوم خـان راغـی و شـاپاڼو تـه يـې وويـل چـي تـه ما خطاباسې، زه پـه زوره درځـم، کـه دا چلونـه کـوې زما يـو ګـړی تـوان نـه کېږي، تـې پـه نـن او پـه سبا کـي وهـې، عليبېګ خـدای خبر مـړ وي کـه ژونـدی پـه هغـه مـه خانتمـاه کېـږه او کـه راسـي هـم پـه زوره دي ځنـي خلاصوم.

شاپاڼی اوستری وعده په قسم سره يوه مياشت ورسره کښېښوله، چي ته دا يوه مياشت صبر وکه، که عليبېګ راغی خو هم ته زور ور يې ما به ځني خلاصه کې نو به تا وکم او که نه راسي هم به دي وکم.

معصوم خان ويل ښه دئ.

فقيـر چي را رهي سو مزل پر مزل د نکل کار دئ، هله هله ځو دا دئ برابر د کـن تـه راورسېدی، دستي يې د عليبېګ ځرک ويوست، فقير هغه کاروانسرای ته چي عليبېګ پکښي اوسېدی تجارت يې کاوه ورغی، فقير يې نه پېژني، چي عليبېګ ته يې وکتل ډول يې د هندوستانيانو ځخه بېل و، ويل که و دغه به وي.

عليبېګ هم چي ورته وکتل وې ويل چي دا فقير خو کندهاری دئ، وروسته عليبېګ پوښتنه ځني وکړه، چي فقيره د کم ځای يې؟

فقير ويل : د کندهار يم.

خير خو سره وې پېژندل روغبړ يې سره وکی، عليبېګ خو هم پر خپلي ميني پاڼو مين وونو يې پر فقير ناره وکړه :

شاه فقير چي پر سر دي ګدړی
ما په خدای قسم درکړی
چي بي بي شاپاڼو مړه وه که ژوندی

فقير په جواب کي ناره پر وکړه:

شاه ملنګ یم چي پر سر مي ګډېږي
ما په خدای قسم خوړلی
چي بي بي شاپاڼو ناسته وه ژوندۍ

وروسته ملنګ کاغذ د ګډېږي څخه راوکېښ و علیبېګ ته یې ورکی، د شاپاڼو او معصوم خان حال یې ګرده په خوله هم ورته ووایه.

علیبېګ چي کاغذ ووایه خورا یې زړه درد وکی پر خپلي میني یې آفرین ووایه چي بېشکه پښتنه یې.

منګر دلته یې معامله بنده وه، مالونه یې پراته وه، نو فقیر ته یې وویل چي ته درځه زه درپسي یم ته به دمخه حال ور وړې چي دغه دئ علیبېګ راځي راپسې دئ. فقیر هم رارهي سو، څو شپې باد په وچه دوړه بیرته راورسېدی د شاپاڼو کلا ته چي ورغی د کلا دروازه بنده ده چي هر څه ناري یې کړې چا ږغ نه ورکاوه، فقیر دروازې ته کښېنوست.

شاپاڼو د کلا په برج کي شاوخوا ګوري ځار کوي که ګوري هغه فقیر یې ولید، د فقیر څخه یې پوښتنه وکړه چي څنګه دي کړه ستړی مسې !

فقیر حال او د علیبېګ نخښي ورته وویلې چي راپسې دئ که خدای ﷻ کول درېیمه ورځ به راسي.

فقیر ته یې ډېري روپۍ ورکړې، فقیر خوشحاله سو پر خپله تړه ولاړ.
شاپاڼو هره ورځ کری ورځ پر بام تېره کي چي اوس به راسي، اوس به راسي، یوه سترګه یې څلور کړېده، دا درې ورځي لکه درې کاله دونه سوله، اوس نو د معصوم خان سره یې چي موده ایښېده، هغه هم پوره کېږي، درې ورځي هم تیري سولې څوک نه سو معلوم.

څلرمه ورځ ږغ سو چي د کنه څخه قافله راغله، دا پر بام وختله چي ګوندي یا د علیبېګ وي یا علیبېګ ورسره وي.

قافله راغله تېره سوه منګر علیبېګ نسته ورسره، نو یې مخ د ښار پر خوا وګرځاوه ناره یې وکړه :

که په نیل دئ احمدشاه چارسو په نیل دئ
دغه نور سوداګر راغله
لویه خدایه علیبېګ سوداګر کم دئ

اوس نو د معصوم خان موده چي شاپاښو ورسره ایښې وه پوره سوه، معصوم خان راغی د شاپاښو کلا ته ورته وې ویل چي دا ده موده هم پوره سوه اوس څه کوې؟

شاپاښۍ ورته ویل : بالکل صحیح ده، خدای خبر علیبېګ مړ وي که ژوندی، اما هو ! سبا شپه به ته یوازي راځې، نور څوک به نه وي درسره، زما و ستا دا د عشق کار دئ، ډول او ډمامې به نه جوړوو. معصوم خان خوشحاله سو ویل : ښه دئ زه هم په یوازي خوشحاله یم.

معصوم خان ولاړ ماښام راځي. دلته د علیبېګ یوه تېره توره ده، دا یې ښه پاکه ساټ و باټ کړه، تیاره یې پټه کښېښووله چي ولاکه د ژوند څکه راڅخه وکې. زما مېړه په جګ سر ژوندی دئ او ته د بل ناموس ته ګورې او زه به د ده پت څنګه اخلم؟ لنډه دا چي معصوم خان ظالم ځان یو غوړپ کړی دئ، دا دئ راغی شک شک برېتونه د کلا دروازه یې ور وټکوله. شاپاښو هم په خپله راغله دروازه یې ور خلاصه کړه ویل : ښه راغلې ! رایې ووست په خونه کي یې کښېناوه ډوډۍ یې ورته راوړه، ډوډۍ یې وخوړله. د شاپاښو مور ده دا یې لا دمخه په دروازه کي کښېنولې ده چي ته دروازه ګوره نور څوک نسته، د شاپاښۍ یوه مینځه ده د معصوم خان تلوار سو ویل : دغه مینځه وباسه څراغ مړ که چي پرېوزو بیده سو. شاپاښو ویل : زما هم تلوار دئ پر دواړو ستر ګو.

آبس ! مینځه یې وایستله ده ته یې ویل چي ته پلنګ ته وخېژه پرېوزه، زه به څراغ مړ کم، اوبه به راواخلم نو به زه هم دروخېژم.

معصوم خان چي پر پلنګ وخوت دراز یې وکیښ.

شاپاښۍ د دې خوا توره ورسره لښته کړه وې واهه په دغه سر کي، سر یې ور دوه ځایه کی. ماغزه یې ور پاش پاش کړه، مړ یې کی پسې ټوکر ټوکر یې کی. اوس نو اریانۍ واخیستله چي څه په وکم چیري یې ښخ کم، چیري یې وغورځوم. کارونه د خدای دي دا په دغه چرت کي ده په دروازه کي ږغ سو چي علیبېګ راغی. دا مخي ته ورغله په وینو سره ده، ښه لا نه معلومېږي خوني ته چي سره راغله علیبېګ دا حال ولید، ټکر ټکر سړی پروت دئ اریان سو وې ویل دا څه نکل دئ؟

شاپاڼو ناره پر وکړه :

ښه وې چې راغلې مسافره د کنه !

ما پر ګوټ پټري وهل درپسي تلمه [1]

خو يو ګړى سره غاړه په غاړه سوله روغبړ يې وکى.

وروسته شاپاڼو ورته وويل چې دا هغه معصوم خان دئ چې تاته مي په خط کې حال درليږلى و. لنډه دا چې دانکل يې سر تر پايه ورته وکى، وروسته يې هډوکي او غوښې سره ټول کړه په جوال کې يې واچولې نيمه شپه يې د کوره څخه ويوست، ګوښه يې په يوه چر کې واچاوه، پاڼ يې پر ونړاوه.

دوى سره کور و کهول سوله سره کښېنستله.

کيسى په کولک ننوته، زه په تلتک ننوتم.

---

[1] دا ناره د کسر پر ډول د هري نارې وروسته کوي، څوک په دې ناره کي د "ګوټ" پر ځاى "ډال" چي په معنى د "سپر" دئ وايي.

# لمبولال یا نېمبولال

ته وا، ښه !

ښه چي و یو باچا وو، د دې باچا یوه لور وه، زوی یې نه درلود، دغه لور خورا پر ګرانه وه، او ډېره ښه سکه یې وه.

پر دې لور یې یو پېری مین و، چي نوم یې "نېمبولال" یا "لمبولال" و، چي د کشمیر د پېریانو د باچا زوی و، یو مریی یې درلود چي نوم یې "لونګین" و، او څلور خوندي یې درلودې، چي کشره خور یې "شهربانو" نومېده، دوې خوندي یې په لاهور کي وې، دوې هلته په کشمیر کي، دی پر مین سو، د باچا پر لور. نو یې مریی چي لونګین نومېدی او هر ځای به د ده سره و، او د ده حفاظت بې کاوه، د ځانه څخه یې جلا کی کشمیر ته یې واستاوه.

ده ځان د یوه سپېره طالب په بڼه کړی دئ، د باچا کور ته نژدې په یوه مسجد کي یې ځای ور ته نیولی دئ استېږي، د ورځي د طالبانو سره سبق پر ملا وایي، چي نیمه شپه سي بیر ته د پیري په ډول سي، راسي نه یې پیره دار ویني نه یې مینځیاني ویني. د باچا د لور سره پر پلنګ تر سهاره شپه تېره کي، نه یې خوب ته پرېږدي نه یې بل څه ته، سهار وختي بیر ته ولاړ سي مسجد ته، د طالب په بڼه سي په مسجد کي سبق وایي، هیڅوک یې نه پېژني. دغه د باچا لور ورځ په ورځ تکه ژړه کېږي، داسي تکه ژړه سوه وچه کلکه لکه دا ژړ نل ننځه کېږي، رنځ یې نه دئ معلوم، هر څه دواوي چي په وکي نه ښه کېږي، دا هم په ځان نه پوهېږي.

آخر ته باچا حکم وکی چي دغه زما لور که هر چا جوړه کړه د هغه سړي ده.

په دغه ښار کي "ځیني خلک وایي چي دغه باچا په سوات کي و

اخوندي بهادر هم په سوات کي و، چي هغه مسجد تر اوسه سته چي اخوند بهادر يې پکښې ځړولی و، دی اوس هم ځړيږي. " اخوند بهادر نومېږي چي پېريان يې مسخر کړي دي.

دې اخوند بهادر يې ذمه واخيسته چي زه يې جوړوم ولې ده خو معلومه وه چي دا پېري دئ.

باچا هم ورته ويل : ښې دئ که جوړه سوه ستا ده.

آ بس اخوند بهادر راغی ورته وظيفه سو، نېمبولال يې په وظيفه سره را حاضر کی، منګر چي هر څه يې وکړه نه يې سوای نيولای په لاس نه ورتی.

اخوند بهادر ورته ويل چي مه کوه دا ښځه پرېږده !

ده ورتـه ويـل چي زه پـر مين يـم هيڅکله يـې نـه پرېږدم، زه ستا پـه وظيفه بند واز نه يم، زه د باچا زوی يم ته مي نه سې نيولای.

تر سهاره ملا ورسره ووهله نېمبولال يې نه ونيو.

آخر ته ملا ورته وويل : که ته داسي غښتلی يې او نر يې په دغـه ګډوه به ننوزې، بيرته به يې تر چوښکه راووزې، که دي دا کار وکی نو بېشکه غښتلی يې نو زه هم ځم په تا غرض نه لرم.

نېمبولال يې خطا يوست ويل : ګوره چي په ننوزم.

اخوند ورته وويل چي ودي ګورم څه !

نېمبولال په ګډوه ننووت.

اخوند بهادر دستي د ګډوې پر خوله او چوښکه لاس ونيو ويل : اور بل کئ، اور چي يې بل کی ګډوه يې پر اور باندي کړه.

هلته يې خوندي خبري سولې په يوه رپ کي راغلې، کـه ګوري اخوند نېمبولال په ګډوه کي اچولی پر اور باندي کړی دئ ايشوي يې، دوی ناره پر وکړه :

لمبولال مه وژنه اخونده

تاته به درکو شېربانو ترشيدو سپينه

نارې دي لونګينه

يعني ته لمبولال د باچا د لور له پاره وژنې موږ به خپله کشره شېربانو خور چي تر ټولو ښايسته ده درکو. لمبولال را ايله که.

اخوند بهادر غوږ نه پر ونیو. خوندو يې بله ناره پر وکړه :

لمبولال مه وژنه اخونده !

د لمبولال په غوږ لښتی شنه يې خالونه

ناري دي لونګينه

چي يعني د لمبولال په غوږ لښتی ده، شنه يې خالونه دي، چي د يوې باچهۍ قيمت لري دا به درکو، دی مه وژنه.

اخوند بهادر غوږ نه پر نيسي، نې پرېږدي، په دوی کي چرت نه وهي، نه ورته ګوري، په ګډوه پسي اور بلوي.

وروسته دوی خپل تر خپله ناره سره وکړه :

خوندي يې ټوله ورته ژاړي

چي لمبولال يې په ګډوه کي ايشاونه

ناري دي لونګينه

لېمولال څه سوه هغه ستا د بشر مينه

ناري دي لونګينه

لنډه دا چي لمبولال يې مړ کی، خوندو يې ناره وکړه :

د نېمبولال د مرګ نارې سوې

په کندهار کي ماښام اور نه بلېدنه

ناري دي لونګينه

وروسته يې نېمبولال د ګډوې څخه مړ راوکيښ، د سر وېښتان يې د سر څخه شوړېدلي وه. خوند يې دغه وېښتان واخيستله څه يې هغه مسجد ته راوړه هغه طالبانو ته چي دی ورسره وو ور يې کړه، نو يې ناره پر وکړه :

د نېمبولال پېکی يې پرې کی

نو طالبان دې د څراغ پليتې کينه

ناري دي لونګينه

لنډه دا چي اخوند بهادر ته يې وويل چي نېمبولال خو دي په داسي ظلم راڅخه مړ کی، يه ! نو پر تا هم ښادي حرامه ده بې مرګه دي والله که پرېږدو.

پس له هغه يې نېمبولال په تابوت کي واچاوه، څلورو خوندو پر اوږو

واخیست کشمیر ته یې یووړی.

باچا عسکر پیریان و مخ ته ورته راوایستله نو عسکرو ناره پر وکړه:

د لمبولال تابوت یې راوړی

څوک وایي مړ دئ څوک وای خوب یې زنګوینه

ناري دي لونګینه

لنډه دا چي نېمبولال یې وسپاره.

بیا نو باچا ټول پیریان راټوله کړه، چي تاسي به ورځئ هر ځای چي مو پر اخوند بهادر چمبه صافه سوله وژنی به یې.

خوندو ویل چي یه! موږ یې په خپله وژنو چي زړه مو په سوړ سي. څه سر دي ګرځوم، بیرته یې خوندي او دوه کسه غټ پیریان راغله، اوس په اخوند بهادر پسي دي وار پر ګوري.

وایي چي اخوند بهادر یو ګړی بې اودسه نه ګرځېدی، او تل مدام به یې په خوله کي ورد و، چي پیری به نه سوای ور نژدې کېدای.

یو شپه اخوند بهادر په مسجد کي پروت دئ، شیطان بازي ورکړه، اودس پر واوښت، دستي د نېمبولال دوو خوندو ور حمله کړه، اخوند بهادر یې ټینګ ونیو، هغه نورو ته یې وویل چي پورته کئ د مسجد چت یې تیر پر ېږدئ. هغو هم د مسجد چت پورته کی یو تیر یې پر ېښو، اخوند بهادر یې پر تیر پر مخي لکه د غوږو زک کښېښو، بیرته یې چت پر کښېښو، اخوند یې مړ کی، لړمون یې تر خوله ووت.

سهار چي یې مقتدیان راغله اخوند بهادر په تیرانو ځړېږي، دوی اریان سوله چي دا څه نکل دئ؟

خوندو یې ناره پر وکړه:

مقتدیان راغله ډلي ډلي

اخوند بهادر مو لکه زک وځړاونه

ناري دي لونګینه

وروسته مقتدیانو چي دا واورېدله پوه سوله چي پیریانو ځړولی دئ.

اوس نو د نېمبولال خوندي هره یوه سره جلا کېږي، ځي خپلو وطنو ته دا آخره ناره سره کوي:

د نېمبولال خوندي څلور دي

"په بلې بلې"

دوې پر لاهور دي دوې پر کشمير دي وير کوينه

ناري دي لونګينه

نېمبولال څه سوه هغه ستا د بشر مينه

ناري دي لونګينه

# دوه وروڼه په یوه رنګ

چي و یو سوداګر و.

دې سوداګر زوی نه درلود، اونې زوی زوکړی و، دنیا او دولت یې خورا ډېر درلود.

یوه ورځ یو فقیر راغی په دروازه کي یې هل کړه.

د کور د خوا مینځې ور بږغ کړه چي ویش اور دي وسي په تاسي ډېرو ملنګانو!

ملنګ ویل: ولي بي بي؟

دې ورتـه وویـل چـي اغـا زوی نـه لـري، پـه تاسـي کـي یـو د خـدای ﷻ دوست نسته چي دعا وکي، خدای اغا ته زوی ورکي.

ملنګ ویل: ښه دئ زه به سېب در دم کم، منګر هو په دې شرط که خدای ﷻ زامن ورکړه لومړی زوی یې په درومړ کي زما دئ.

مینځې و سوداګر او ماینې ته دا بیان وکی چي ملنګ داسي وایي.

سوداګر او ماینې هم ورسره خوښه کړه.

ملنګ سېب ور دم کړه، هغه سوداګر او ماینې سره وخوړله.

کارونه د خدای دي، خدای ﷻ و سوداګر ته درې زامن ورکړه.

ؤ ؤ ؤ! عمر دئ تېرېږي څو داهلکان درې سره غټ سوله لوی سوله، هغه مشر زوی یې بیخي ځوان دئ.

یـوه ورځ بیـا ملنـګ هـل کـړه، هغې مینځـې خیـر ورتـه راوړی فقیـر یـې وپېژندی.

فقیر ورتـه وویـل چـي څنګـه اوس خـو زامـن خـدای تعالی وسوداګر تـه ورکړه اوس زما نذر راکوي که یه؟

مینځه راغله سوداګر ته یې وویل چي هغه ملنګ راغلی دئ وایي چي

پر قول ولاړ یاست که نه، زه خپل نذر غواړم.

سوداګر وویل : بېشکه پر خپله پښتو زه ټینګ یم، نو یې هغه مشر زوی و ملنګ ته ورکی.

ملنګ دعا ورته وکړه د سوداګر زوی یې را رهي کی، ملنګ دمخه دئ، هلک په پسې دئ، د هلک هم خورا ښه رنګ دئ، ملنګ ته بابا وایي، خو هله هله پر لاري پر یوه دښت کوډل ده، یوه زړه بوډۍ یې و مخ ته ناسته ده، کنډوکي او خاشې ټولوي.

بوډۍ چي دې هلک ته وکتل خورا ښه سکه یې وه، خوښ یې سو، دوباره یې هلک ته اشاره وکړه چي دلته راسه !

هلک چي ورته راغی بوډۍ ویل چي چیري ځې دا ملنګ دي څه دئ چي پسي ځې؟ هلک ورته وویل چي زه په کوچنیوالي کي لا پلار و دغه ملنګ ته په نذر کي ورکړلم، اوس نه یم خبر چي چیري مي بیایي؟

دې بوډۍ ورته وویل چي زویه ! ښه ځوان یې، پر مرګ مي نه پېرزو کېږې "ستا په خوله کي دي وي" دغه سړی ملنګ او انسان نه دئ، "تور دېب او ادم خور دئ" اوس دي بیایي هلته یوه کلا ده د ده ځای دئ، په هغه کلا کي یې د دتیلو دېګ باندي کړی دئ چي ورسې تا ته به ووایي چي "ته پر دغه دېګ راوګرځه وګوره چي تېل خو نه تویېږي" په دغه مابین کي تا ورپوري وهي، په تیلو کي چي پوخ سوې، نو بیا دي خوري، یه ! ته داسي وکه چي ورسې دی به دا درته ووایي چي پر دېګ وګرځه، ته ورته ووایه چي یه بابا زمانه دئ زده، چي څنګه پر وګرځم، ته یو وار پر وګرځه زه بې در څخه زده کم، بیا به نو زه پر وګرځم، چي دی پر ګرځي یو وار به خدای یاد کې، بسم الله به کې دی به ور پوري وهې، بخت و شنې دي که دي دی په دېګ کي غوزار کی خو هغه دئ خلاص به سې، که دي پکښي غوزار نه کی نو یې مړ کړلې.

ده ویل : ښه دئ.

لنډه دا چي د سوداګر زوی او ملنګ سره راځي راځي دا دئ راورسېدله، یوه لو کلا ولاړه ده، په کلا سره ننوتله، یو ګړی باد ملنګ یوه کوټه خلاصه کړه په کوټه کي دېګ باندي دئ ایشي، ملنګ و هلک ته وویل

ورسه پر دېګ وګرځه چې تویېږي خونه.

ده ورته وویل چې زمانه زده، یو وار ته پر وګرځه چې زې زده کم.

ملنګ ور ولاړ سو، وایې داسې پر وګرځه!

ملنګ چې یو څرخ پر وخوړ، پر دوهم باندې ده بسم الله کړه ملنګ یې دېګ ته ور پورې واهه، ملنګ پګښې غوزار سو، هلته مکوټ سو، یوه سوځېږې سو، د ملنګ او د مرګه خلاص سو.

وروسته یې د ملنګ ګوډړۍ راواخیستله، سره شنله یې پنځه کیلۍ یې پګښې پیدا کړې دا کیلۍ یې راواخیستلې په کلا کې پنځه خوني قلف دي، یوه خونه یې خلاصه کړه، اسان پګښې تړلي دي، منګر د پروړو پر ځای یې هډوکي ور اچولي دي بله کوټه یې خلاصه کړه، سپیان پګښې تړلي دي، د هډوکو پر ځای پروړ ورته پروت دئ، بله کوټه یې خلاصه کړه، که ګوري خالص انسانان پګښې پراته دي څوک مړه دي څوک ناجوړه دي، زګېروی یې دئ، د چاز کندن دئ، په بله کوټه کې سره زر دي، په بله کوټه کې جواهرات دي.

وروسته را ولاړ سو اسانو ته یې پروړ واچاوه، هډوکي یې واخیستله سپیو ته یې واچوله، مړي یې ښخ کړه نور بندیان یې ایله کړه، وناجوړو ته یې دواوي راوړې په لږ موده کې په دې کیفیت خلک سره خبر سوله، نوکران او مزدوران یې ځان ته ونیوله، په کلا کې یې همسایګان واچوله، یوه کلا چې ځني جوړه سوله اوس نو دالته اوسېږي.

یو کال تېر سو، وروسته د سوداګر زوی دالته دغ سو فکر یې وکی چې کم ځای ته ولاړ سم، او کور ته خونه ځم ولي چې مور و پلار بې فکره او بې سنجشه و مرګ ته ورکړلم، په راسه پر یوه بله خوابه ولاړ سم. "هلته چې ملنګ دی را رهي کی، نو وده ته یې یوه خولۍ ورکړه، چې که دا خولۍ پر سر کړې چې د هر شي په ډول دي زړه غواړي ځان د هغه په بڼه کولای سې." دوباره یې دا خولۍ راواخیستله، څه پیسې یې هم راواخیستلې، د کلا همسایګانو ته یې وویل چې زه څو عمر په سیاحت او مسافري ځم، پر یوه بڼه آس سپور سو را رهي سو، هله هله مزل یې وکی غرمه ده راغی د غره په لمن کې یوه پډه ولاړه ده، تر دې پډې لاندې پرېووت، که ګوري په دغه پډه

کي د "سيمرغ" مرغه ځاله ده، دوه چيچيان پکښي کي دي، يو ښامار ورخېژي غواړي چي دا چيچيان يې وخوري ده د دې خوا غشي او لينده ورته ونيو، دغه ښامار يې وويشت، لاندي يې راواچاوه، باره يې د ښامار څخه يو څه غوښي پرې کړې، دغه چيچيان يې په ماړه کړه، وروسته بير ته بيده سو، يو ګړی چي وسو، د هې خوا سيمرغ مرغه راغی، چي دا سړی يې وليد فکر يې وکی چي دا زما چيچيان هر وخت خوري هغه لکه چي دغه سړی دئ، خورا درد ورغی، راغی يوه د غره کر کنډه يې په منګلو کي راواخيستله، غواړي چي د پاسه يې پر ده را ايله کي، د دې خوا يو چيچی ور والوت دغه خپله مور يې په يو ډول وپوهوله چي دغه سړي مور له دښمنه خلاص کړو.

سيمرغ مرغه بير ته کر کنډه وغورځوله، چيچي دا تېر نکل ورته وکی، مور يې راغله کرار يې دا سړی ويښ کی.

سيمرغ ورته وويل چي دا دونه نېکي دي زما سره وکړه، دغه زما يو چيچی يې ستانوکر، چي ته هر چيري ځې ستا پر سر به سايه کوي.

ده ويل : ښه دئ.

د دغه ځايه بيا د سوداګر زوی را رهي سو هله هله دا دئ راغی يوه ځنګله ته يوه زمری ده چي په پښه کي يې منډه مات سوی دئ خوراځني په عذاب ده.

ده زمری ته وويل چي دغه منډه به زه د پښې څخه در وکاږم، چي ته داسي ځني په عذاب يې.

دې ورته وويل چي نه بې وکاږې.

ده ويل : کښلای يې سم، زه به يو غار وکينم ته به تر غار پښه راځړوې زه بې وکاږم.

دې ويل : ښه دئ.

آبس غار يې پرې کی، زمری پښه په غار کي ور وځړوله، ده لاندي منډه ځني کش کی زمری د درده په ډېره خوله ولګوله، دی په غار کي وڅو د زمری د پښې درد جوړ سو.

دی د غاره راووت، زمری خورا ډېره ځني خوشحاله سوه.

زمری خپل يو زوی و ده ته ورکی چي دا زمری يې ستانوکر.

لنډه دا چي دی او زمری او د سیمرغ چیچی سره را رهي سوله، راغله یوه کلي ته، آس یې ورته وتاړه، زمری پرېووت، سیمرغ مرغه ورته کښېنوست، خو سودا ورلوېدلې ده چي څه وکم.

باره راغی یو ګوروان دئ خپل کالي یې وده ته ورکړه د ګوروان کالي ده واغوستله، ګوروان ته یې وویل چي بړغ مه کوه دغه زما آس ګوره، دغه زمری هم درسره دئ هوښ کوه چي بړغ ونه کې.

د سوداګر زوی په ګورم پسې سو، هغه خولۍ یې پر سر کړه، کټ مټ هغه ګوروان سو، ماښام یې ګورم کلي ته راووست، دی د کلي دباندي پاته سو، یو ګړی باد د ګوروان مور فکر وکی چي ګورم راغی زوی مي نه راغی، دا څه نکل دئ خو پسي را رهي سوله، چي خپل زوی پیدا کي چي راغله د کلي دباندي د سوداګر زوی پروت دئ.

دې ولید ویل: څه کوې زویه چي دلته پروت یې؟

ده فکر وکی چي دغه د ګوروان مور ده، باره یې ورته وویله چي دلته مي تبه سوله، پرېوتلم کور ته نه سوای درتلای.

مور یې نه پېژني چي دا بل څوک دئ هغسي رنګ او کالي یې دي، لکه د دې د زوی، باره یې را رهي کی کور ته یې راووست.

سهار یې بیا ګورم راویوست هغه اصلي ګوروان ته یې یو مټ بتکۍ ورکړې چي ته به دا یو کال کلي او کور ته نه ورځې، دا ګورم زه پیایم، ته ولاړ سه دا یو کال په بل ولایت کي تېر که، هغه یې رخصت کی ولاړ. اوس نو دی ګوروان دئ، په دغه ماښام چي یې ګورم راووست دی کور ته راغی مور ته یې وویل: "د ګوروان مور ګواکي د ده مور ده." چي ادې! زه یو آس یو زمری یو مرغه لرم، کور ته یې راولم، هوښ کوه چي څرک یې څوک در شخه ونهویني یا ونه وایې، که دي ویلي وه یا چا در شخه لیدلي وه، دغه زمری دي خوري، او زه دي هم وژنم، یو مټ بتکۍ یې و مور ته هم ورکړې، چي دغه دي بړغ مه کوه ماته خدای ﷻ راکړه، دغه ګورم به پیایم څوک به نه وي راخبر.

مور یې ویل: په زویه چیري وایم بېغمه اوسه!

باره ده د شپې زمری او سیمرغ او آس کور ته راوستله، په یوه خونه

کي يې واچول، مور يې خواږه ور اچوي دی هره ورځ ګورم پيايي.

يو وخت يې ګورم چمن ته را ايستلی دئ، خولی يې د سره کمبلې ده، پام يې نسته چمن ته نژدې د باچا دکشري لور بنګله ده دوربين يې اچولی دئ، د سوداګر زوی يا په بل نامه سره ګوروان يې وليد، دستي پر مينه سوله.

دغه شپه تېره سوله، دی پرېږده چې خپل ګورم پيايي.

د باچا اوه لوڼي دي دغه يې کشره لور ده چې خورا پر ګرانه ده.

باره دغي کشري خور يې ودغو نورو خوندو ته وويل چې څو تر څو به ناسي يو، يه راځئ چې و پلار تـه ووايو چې مونږ تـه مړونه وکـه، دې نورو هم ورسره خوښه کړه، چې ښه دئ، منګر ښه نو څنګکه به ور ته ووايو؟

دې کشري خور يې ووېل چې زما يې چم زده دئ.

باره يې يو هندوانه راوړه، اوه چاقوګان يې پکښې جګ کړه، نو يې دسمال پر هوار کی، په پتنوس کي يې کښېښووله پلار ته يې ور ولېږله.

باچا چې دا هندوانه او چاقوګان وليدله اريان ولاړ چې دا څه معنی لري؟ باره يې وزيران راوبولل پوښتنه يې ځني وکړه چې د دې معنی څه ده؟

وزيرانو چرت پکښې وواهه، وواهه، دوباره يې دا سوک تر وايستی چې دا مړونه غواړي.

باره يې باچا ته ووېل چې دا دا معنی لري چې مونږ لوېي سولو اوس نو مړونه غواړو.

باچا ويل : ډېره ښه خبره ده، دستي کور ته راغی، لوڼو ته يې ووېل چې ښه دئ تاسي مړونه غواړی هغه دئ هره يوه خپل مېړه خوښ کی.

خير ! چا د يوه وزير زوی، چا د بل وزير زوی، چا د قاضي زوی خوښ کی، يوه کشره لور يې پاته سوله.

باچا و کشري لور ته ووېل چې ته څنګکه مېړه غواړې؟

دې ورتـه ووېل چې تـه د ښار او اطرافو خلک راوغواړه هر يو چې ما خوښ کی هغه زما مېړه دئ.

پر باچا ډېره ګرانه وه، دستي يې جار وواهه چې ټوله خلک دې راځي، د باچا د حرمسرای تر مخ دې تېرېږي.

لنډه دا چې دوې درې ورځې خلک راتله، د حرمسرای مخ ته تېرېدله، دا په بنګله کې ورته ولاړه وه، هیڅوک یې نه سو خوښ.

څلرمه ورځ د سوداګر زوی ګوروان هم را رهي سو، چې راغی د باچا لور و مینځې ته وویل چې ورسه هغه ګوروان په کوښه ووهه چې دغه د باچا د کشري لور مېړه دئ، خوښ یې سو.

مینځه راغله ګوروان یې په کوښه وواهه.

خلکو نارې کړې چې مینځه خطا وتله، خو دی یې درې واره وواهه.

آخر ته باچا ډېر وشرمېدی چې ګراني لور یې ګوروان خوښ کی، آخر ته یې ټوله لونې په درب واده کړې، دا او ګوروان یې د آسو په یه تبیله کې واچول.

ګوروان خپله ګورواني کوي، د ورځې ځي مانښام راځي، د ده خپله هغه خولۍ پر سر ده، ښه یې د هغه بدشکله ګوروان ده.

ماینه یې هره ورځ ورته وایي چې سړیه ! په هغه ورځ چې ما ته ولیدلې د شاهزاده سکه دې وه، اوس دې داسې بده ښه ده او یې هم هغه سړی، دا څه چل دئ او څه سر دئ؟ دی وایي : یه ! زه هغه ګوروان یم هغه مې رنګ دئ خدای ﷻ خبر په هغه ورځ څه شاهزاده په خیال درغلی وم، منګر سربېره پر دې ته صبر وکه تا زه خوښ کړلم، او پر ما دې ګوخانه قبوله کړه، خدای ﷻ مهربانه دئ، خدای ﷻ به مو په داد ورسېږي، صبر تر ټولو ښه دئ، هوښ کوه چې وسواس در وانه چوې !

دې ویل : یه ! اوس هم ما پر شاهزاده ګانو نیولی یې.

یوه ورځ د باچا شېږ زومان دې په ښکار سره راووته په خورا درب و دروب او په سامان.

باچا ورته ویل چې هر یوه چې ډېر او ښه ښکار وکی، هغه به زما مجلسي وي او یو یو نښان هم ورکوم.

دوی چې راووتله ګوروان و ماینې ته وایي، چې زه به یوه غراره پیدا کم، په دوی پسې به ولاړ سم، ښه دئ هغه لرې او کولمې چې دوی یې غورځوي رابې ورم دلته بې ایشوو خورو بې.

دې ویل ښه دئ.

باره ده یوه لو غراره پیدا کړه، پسي راووتی راغی خولۍ یې د سره ایسته کړله بیر ته ښایسته شاهزاده ځوان سو، خپل زمری او سیمرغ مرغه یې را رهي کړه، پر آس سپور سو برابر په دوی پسي راغی، باره یې زمري او سیمرغ مرغه ته وویل چي ولاړ سئ څه چي د غرو او دښتو په دغه نژدې شاوخوا کي هوسۍ یا مرغان دي ټوله ښکار کی، رایې ولئ، چي زه یې دلې وولم.

زمری او سیمرغ مرغه پسي را رهي سوله.

لنډه دا چي د غرو اوزګري، میږي، سیږي او نور یې په سوو ورته راوستله، ده ښکار کړه.

هغه نورو یوه دانه ویشتلې یا نه ویشتلې اریان ولاړه چي دا څنګه سړی دئ؟

باره دوی ورته وایي چي سړی اکا! څوني ډېر ښکار دي وکی، زموږ سره به کومک ونه کې؟

ده ورته وویل چي دغه دئ ګرده یې ستاسي، که ژوندۍ هوسۍ یا سیږي غواړئ هم دغه دي بویې زئ، منګر هو په دوه شرطه یې در کوم، یو خو دا دئ چي تاسي به کوناټي راته لڅوی چي یو یو کوچنی مهر پر کنبېږدم، بل دا دئ چي لري او کولمې به یې ګرده ماته راکوی، او په دغه غراره کي به یې را اچوئ، زیاته مو په مخه ښه! زه د بل ولایت سړی یم، پر خپله تړه پسي ځم.

هغو ویل: ښه دئ، دا خو ډېر ګران شرطونه نه دي، موږ لري څه کوو، او بل یې ویل د بل وطن سړی دئ، په خپل کار پسي به ځي بیا به چیري معلومېږي.

لنډه دا چي د هر یوه پر کوناټي یې مهر ور کنبېښو، څه لري دلبندان یې په غراره کي ور واچوله، دی یې پرېښو.

دوی خپل ښکارونه را بار کړه، راغله هر یوه باچا ته ځیني ژوندي ښکارونه ور کړه.

باچا ورته وویل چي پر تاسي ټولو دي آفرین وي ښه ښکار مو کړی دئ، منګر ماښام ته به هر یو د دغه خپلو ښکارو څخه څه څه راته پخوئ، د

هر یوه دا چي ماښام ښه خوند وکی هغه زما مجلسي دئ.

دوی ویل : ښه دئ.

ماښام هر یوه ډول ډول غوښي پخې کړې.

ده بیر ته خولی پر سر کړه، د ګوروان په ښه سو، خپله غراره یې د لرو او کولمو او پرپوسانو ډکه راوړه، ده هم څه لري او پرپوس پاخه کړه.

ماښام هر یوه خپل کتغ باچا ته راوړی، ده هم په یوه خاورین لوښي کي واچوله، منګر ډېر مزه ناکه پرپوس یې پوخ کړی و، پر سر یې یو د آس خشوی ور کښېښونو یې باچا ته ور وړی.

باچا اول د هغه نورو زومانو د کتغو څخه څه څه وخوړل وروسته یې د دغه د دلبند څخه هم څکه وکړه، خورا ښه خوند یې ور کی، ښه ډېري ګولې یې وخوړلې.

وروسته باچا دا خرشین ولید خورا ډېر درد ورغی، دئ یې راوغوښت، چي دا دلبندان دي د څه وه، او دا خرشین دي ولي پر سر ور ایښی دئ؟ خوړو او کتغ خو دي ښه خوند وکی.

ګوروان ور ته وویل چي ما په خپله ښکار نه دئ کړی، دا دلبندان او لري مي د دوی د ښکار څخه چي دوی وغورځول ما واخیستل پاخه مي کړله، او خوشایي ما په قصد نه دي پر ایښي د ګوخانې او تبیلې خو دغه کار دئ.

وروسته یې هغه زومان وهم واخیستله، فکر جن سوله، چي ډېره عجبه ده، هغه سړی چي موږ ته یې ښکار راکی لري او کولمې یې ده واخیستلې. دئ خو به نه وي؟ بیر ته یې چرت وواهه چي هغه خو ښه ځوان و، ښه آس یې و، ښه دا خو هغه کور کری ګوروان دئ.

باچا حکم وکی چي د ګوخانې څخه یې وباسئ، په یوه بله پاکه خونه کي یې واچوئ. دغه د ځای الیشېده دي د دې په عوض کي او ته د مصاحبت وړ نه یې.

لنډه دا چي د ګوخانې څخه یې دوی وایستله په یوه معمولي خونه کي یې کښېنوله.

یوه ورځ ګوروان ګورم و زمري ته پرېښو، او خولی یې د سره څخه

وکښېله، په ښکار ووت، بیر ته هغه ښایسته ځلمی دئ.

دغه ماینه یې دغ سوېده دباندي په غلا راوتلې ده، دی یې ولید، هغه سړی دئ چي دا پر مینه ده، منګر اریانه سوله چي دا څه سر دئ، چي ما لره راسي ګوروان وي چي په ښکار ووزي بیا ښېل ډول سړی ځني جوړ سوی وي، ښه یې الیشه کړې وي، اوس نو ماته هم بیخي سِل را ولوېدی چي دا څنګه سړی دئ، یه د دې سر به معلوموم چي دا انسان دئ، که پېری دئ، که جادوګر دئ؟ باره بیر ته کور ته راغله.

په دغه فکر کي ده چي ماښام ګوړوان کور ته راغی، چي په خونه ور ننووت ماینې یې شا ور وګرځوله، پخوا به ور ولاړه سوله پر مخ به یې دسمال ور تېر کی، دا پلا یې چرت نه پکښې وواهه او نه یې مخ ور واړاوه.

ده ورته وویل چي ولي دي نن نه سلام راواچاوه، نه دي مخ راوګرځاوه، نه دي ستړې مسې راته وکړه؟

دې ورته ویل چي ما پر تا ځان خاوري کی، د غویو ګوخانه مي درسره قبوله کړه، نوري خوندي ګر ده عمر پیغورونه راکوي راباندي خاندي، مور و پلار راځخه بېزاره دي، او تا تر اوسه د زړه حال او خپل کیفیت ماته ونه وایه.

ده ورته وویل چي څه کیفیت او حال مي غواړې، دغه دئ ګوروان یم، په دغه خواري کي زه هم شپې درسره تېروم، نور نو څه غواړې؟

دې ویل : څنګه څه غواړم، چي ما لره راسې ګوروان یې، چي دباندي په ښکار ووزې بیا شاهزاده یې، زه دي و دغه چل ته حیرانه یم، چي دا څه چل دئ؟ نه زه ولاکه بېعقله وم یا یم چي ما به ګوروان کاوه، او نه ته ولاکه ګوروان یې، یه نو بسته ډیري خواري راباندي تیري سولې، اوس نو ځان او حال راته معلوم که، رشتیا راته ووایه، چي ته انسان یې، پېری یې، ګوروان یې، شاهزاده یې څوک یې څنګه سړی یې؟ زیاته زه دا خواري نه سم سهلای، هر وخت چي وي در څخه ځم، ولي په خپله خوښه مي کړی یې، دا لا شرمندګي ده، ځان وژنم زیاته اختیار لرې. ده ورته وویل چي ښه دئ، پر دواړو سترګو اوس به حال در ته معلوم کم.

دوباره راغی د مور کره، روپی یې راواخیستلې، خولی یې وکښېله،

بیر ته ښه ښایسته ځلمی ځوان دئ، راغی ښار ته ښه دریشي یې رانیوله، بیر ته راغی د ګوروان کره، دریشي یې وکړه پر خپل آس راسپور سو، زمری یې دمخه لکه شاتر ځغلي او سیمرغ مرغه یې پر سر په هوا ځي، سایه یې باندي کړې ده، راغی په ښار راننووت، خلک اریان ورته تللي دي، چي دا باچا دئ، د باچا زوی دئ، یا دا پیري ذات دئ، دغه د ده و رنګ او ځوانی او دې زمري او سیمرغ ته ډوب تللي دي، څه سر دي ګرځوم خلک سیلاني غوندي په ډلو ډلو په پسي دي، دی برابر راغی دربار ته ور ننووت باچا چي داسي ورته وکتل، د تخت څخه سپک ورته را ولاړ سو، د ده تعظیم او سلام یې وکی، هغه نور وزیران او اخښیان او نور د دربار خلک ګرد ده لاس پر نامه ورته ولاړ دي. باچا حیرت اخیستی دئ چي دا ښایسته ځوان، دا آس او دانر زمری یې دمخه او دا سیمرغ مرغه، دا څنګه معامله ده؟ څنګه سړی دئ؟ څنګه راغی؟ د کم ځای دئ؟ څوک دئ؟

خیر خو روغبړ یې ورسره وکی، آس یې یوه نوکر ونیو، سیمرغ مرغه د بنګلې پر کنګره ورته کښېنوست، زمری ورسره دئ، باچا دی پر اړخ ورسره کښېناوه، زمري یې دمخه سر پر څپړو ورته کښېښو، ورته پرېووت، دستي باچا ډوډۍ ورته راوغوښته، زمري ته یې هم پسه ور حلال کی، ډوډۍ چي یې وخوړله، پس له هغه باچا په ډېر ادب پوښتنه ځني وکړه چي څنګه راغلی یې؟

ده وویل چي زما شپې مریان ورک دي، لیکن څرک مي دلته ستا په حضور کي ایستلی دئ، دلې ستا سره دي که دي راکړه.

باچا ورته وویل چي دالته خو مریان بېګانه نسته، او نه ما نوي مریان رانیولي دي، او نه مي نوي نوکران نیولي دي.

ده ورته وویل : بېشکه ته ښه وایې منکر زما مریان دلته نسته، زه نښانی لرم، که ته اجازه وکې زه به یې دغه ستا د مجلسه ولاړ کم، ته بې نښانی وګورې، که مي رشتیا ویلي وه خو خپل مال په لاس راکه، بیایم یې، او که دروغ وه باید زه په سزا ورسېږم.

باچا ویل ښه دئ، که یې ته پېژنې خو ووایه ! کم ځنې خلک دي؟

ده وویل : دغه دئ، دغه دئ، هغه دئ، هوغه دئ، خو د باچا شپې زومان

یې شپږ سره ولاړ کړه، ګر ده د وزیرانو زامن دي، پلرونه یې هم ناست دي.
باچا ویل : دا مریان نه دي، دا زما زومان دي، د وزیرانو زامن دي، ته څه وایې؟
ده خپل مهر ورښکاره کی ورته وې ویل چي که دا مهر د دوی پر کوناټو پروت و نو خو زما مریان دي که یه؟
باچا ویل : بېشکه که ستا مهر د دوی پر کوناټو و بېشکه ستا مریان دي.
وروسته یې پر شپږو سرو حکم وکئ چي ښکاره کئ کوناټي.
دوی چي ښکاره کړه، مهر او نښان یې صحیح و.
باچا ویل : بېشکه دغه دي، ستا مریان دي هر څه چي په کوې، وروسته باچا پوښتنه ځني وکړه، چي ته د کم ځای یې څوک یې؟
ده ویل : زما کور په ګوخانه کي دئ، ستا د غویو او اسانو په ګوخانو کي یم، نوم مي ګوروان دئ، او ستا یو خوار کی زوم یم.
باچا اریان سو، چي دا څه نکل دئ، باره یې ورته وویل چي دهغه ګوروان خو بل ډول ټپین رنګ و، ته خو یو شاهزاده ځوان یې دا څه چل دئ؟
ده ورته وویل چي زه هغه ګوروان یم، ستا زومانو چي ښکار درته راوړی و، هغه ګر ده ما ښکار کړی و، چي لري او کولمې او دلبندان مي واخیستله، پاخه مي کړه، ماښام مي درته راوړه، او پر سر یې خوشایي پروت و، څنګه و څنګه و، دا نکل او نښاني یې ټوله ورته وویلې، ویل ستا لور نه ده خطا وتلې بېغمه اوسه، منګر په ما کار مه لره، نور پوښتنه مه راڅخه کوه، دغه دئ خدمت دي کوم، ستا سترګي مي ستا د لور په واسطه لوړي کړې.
لنډه دا چي باچا خپلې کشري لور او دې زوم ته یې ښه کوټۍ ورکړه، بیخي یې د باچهۍ اختیار ورکی، کشره لور بیرته پر ګرانه سوله، آفرین یې هم ورکی، چي داسي سړی دي خوښ کی، ماته خو حال نه و معلوم.
اوس نو دی د دې پسه ښه نه الیشوي.
دی پر ښه آس سپریږي، هغه زمری یې دمخه وي سیمرغ مرغه یې پر

سر ځي، خپل ښکار کوي، ډېر عزت يې دئ، هغه نور اخښيان يې ځوړي سترګي لکه مريان داسي ګرځي.

يوه ورځ بيا شاهزاده ته چرت ور ولوېدی چي ته راسه يو بل ولايت ته ولاړ سه. باره يې باچا ته وويل چي زه دغ سوم، ځم په سفر يو بل ولايت ته، دغه زما زمري او سيمرغ مرغه راسره بيايم، نور هيڅ نه وړم، نه بل څوک راسره بيايم.

باچا وويل : ښه دئ.

باره رارهي سو، زمري او سيمرغ مرغه ورسره دي، هله هله د نکل کار دئ دا دئ راغی يوه بل ښار ته، په دې ښار کي يوه بوډۍ ده چي په شطرنج کي خورا مشهوره ده، هيڅوک بازي نه سي ځني وړای، دی راغی د دې بوډۍ کره، و بوډۍ ته يې وويل چي زه شطرنج درسره کوم.

هغې وويل : ښه دئ.

شطرنج يې سره کښېښو، دا لومړی شطرنج په پيسو دئ، بوډۍ ځني يووړی.

بيا يې شطرنج په ځان ځان سره کښېښو چي يعني که دي وګاټه زه دي وګټلم، که مي وګاټه ته مي وګټلې. شطرنج چي يې وکی وکی بيا بوډۍ ځني يووړی.

د سوداګر زوی يې وګاټه، وروسته يې جادو پر ووايه، يوه ستن يې کی، پر ګرېوان يې ستن جګه کړه.

"بوډۍ چي به شطرنج کښېښو د چا سره، د دې يوه پيشي وه چي پر دې بوډۍ به زور راغی نو دې به ورته اشاره کړه پيشي به څراغ په چمبه وواهه مړ بې کی، دې به ژر مهره بدله کړه، او شطرنج بې هم د شپې کاوه، د ورځي يې د چا سره نه کاوه."

لنډه دا چي دی نو دالته پرېږده، زمری او سيمرغ مرغه يې بوډۍ ته پاته دي.

هلته يې مور و پلار سره وويل چي بيا نه د ملنګ درک معلوم سو نه مو د زوی، دې ملنګ کوز سپيري دا زموږ زوی څه کی؟ چيري يې بوت؟

هغه مشر ورور يې وويل چي بابا ! زه پسي ځم درک يې معلوموم، چي

زما ورور څه سو، مړ دئ ژوندئ دئ، څنګه دئ؟
پلار یې وویل : ښه دئ ولاړ سه پسي پر خدای ﷻ مي سپارلی یې په مخه دي ښه !
څه سر دي ګرځوم دا ورور پسي را رهي سو.
" د ده او د هغه ورور رنګونه بالکل یو ډول وه چي هیچا یې توپیر نه سوای کولای".
خو مزل یې وکی وکی، د هغه ملنګ لار ولیکه یې پسي راواخیستله، دا دئ پر هغه دښت پر هغې بوډۍ پېښ سو.
هغه بوډۍ یې و مخي ته ورته را ولاړه سوه، ویل : خدای ﷻ دي راوله زویه ! خدای ﷻ د هغه ملنګه خلاص کړې؟
دی ناخبره دئ فکر یې وکی چي اوس دي درک پیدا کی، باره یې وویل : هو ادې !
بوډۍ وویل : چي هغه ملنګ لکه چي ما در وښو، په تیلو کي دي پوري واهه پکښې مړ سو؟
ده ویل : هو دغسي مي په تیلو کي پوره واهه، په تیلو کي وایشېدی.
دې ویل : شکر دئ چي دا ظالم ادم خور خو دي مړ کی او ته خدای ﷻ ځني خلاص کړې.
د ده ښه امید پیدا سو چي ولچي ژوندی دئ، یه دغه لار پسي اخله، بله لار خو نسته، باره د بوډۍ څخه را رهي سو، ویل : زه نو ځم.
هغې وویل : پر خدای ﷻ مي سپارلی یې.
خو هله هله د نکل کار دئ، دا دئ هغه د ملنګ کلا ته راغی، هغه د کلا خلک چي د ده ورور په کلا کي اچولي وه، مخي ته یې راولاړ سوله، چي خدای ﷻ دي راوله اغا ستړی مسې، څونه عمر دي وکی، پیاده راغلې لکه چي آس دي مړ سوی دئ درڅخه؟
ده ویل : عمر ډېر وسو، آس مي مړ سو، راغلم ما ویل آس به بوزم څه روپۍ به هم راسره واخلم.
"فکر یې وکی چي ورور مي ژوندی دئ، دا یې کلا ده منګر په بل سفر تللی دئ، او د ده و د هغه رنګ یو ډول دئ، نه وایي چي زه د هغه ورور یم

پسي ګرځم، ولې واى بيا خلک سره مشوشه کېږي او رشتيانه راته وايي".
لنډه دا چې هغو دستي آس ورته راووست چې آغا دا ښه آس دئ، ناظر د خوني کيلي ورکړه چې بېغمه اوسه، ستا دنيا مو سلامته ساتلې ده. ده هم خونه خلاصه کړه سرې او سپيني يې څه راواخيستلې پر آس راسپور سو ويل : آفرين دي پر تاسي وي، زه بير ته ځم کار مي دئ، تاسي دلې خپل کارونه کوئ، زه به مياشت باد بير ته راسم.
خو لنډه دا چې بيا را رهي سو، هله هله پر عادت راځي يا د ورور په بوى پسي راځي ځو بيا هغې پډې ته راورسېدئ، تر پډه لاندي کښېنوست.
يو ګړى باد لوى سيمرغ مرغه راغى، چې وده ته يې وکتل وې ويل چې دا خو هغه سړى دئ، باره يې ورته ويل چې لکه چې هغه زما چيچي بې وفايي درسره وکړه، در ښخه تللى دئ؟
ده ويل : هو هغه راځخه ولاړ.
باره يې ويل : ها دغه بل چيچى مي دي ستانو کر وي، خپل بل چيچى يې ورکى، او دې چيچي ته يې وويل چې هوښ کوه چې بې وفايي ورسره ونه کې ځني ولاړ نه سې !
باره دى او د سيمرغ مرغه چيچى دواړه سره را رهي سول هله هله بيا پر هغې زمرى پېښ سو.
زمرى بيا خيال د هغه دمخه سړي پر وکى چې منډه يې د ښځې ښځه ځني کښلى و، زمرى وويل چې زما زوى درښخه وتښتېدى؟
ده ويل : هو !
باره يې بل زمرى ورکى، پر دې زمري يې ټينګار وکى چې که دي بېوفايي وسره کړې وه لکه هغه بل ټوکر ټوکر به دي کم.
زمري ويل بېغمه اوسه ! دى دي مي بادار وي زې مريى يم.
دلته يې ښه ترا يقين سو چې ورور مي پر دغه روده تللى دئ، او هغه ته يې هم زمرى او سيمرغ مرغه ور کړي دي، يه نو دغه لار او ليکه پسي اخله که خداى ﷻ کول پيدا کېږي. لنډه دا چې د زمرى ښځه را رهي سو، هله هله زمرى يې دمخه دئ سيمرغ مرغه يې پر سر ځي، سيورى يې پر کړى دئ، او د ده هم کټ مټ د ورور رنګ دئ، دا دئ راغى هغه ښار ته چې

باچا يې د ده د ورور خسر دئ.

خلکو چي وليد يو وار نارې او چکچکي سولې چي د باچا زوم راغی.

پر باچا زېرى وسو چي هغه ورک زوم دي راغی، دستي باچا و مخي ته ورته راغی حرمسراى ته يې بوت ستړې مسې يې ورته وکړه.

باچا ورته وويل : چي چيري وې؟

ده ويل : دغسي تللی وم کار مي و، کار مي ونه سو يو وار کور ته راغلم بير ته څو شپې باد ځم.

هغه ورېنداره يې ورته راغله، سلام يې ور واچاوه، پر مخ يې دسمال ور تېر کی روغبړ يې وسره وکړ، واى ښه وچي خداى ﷻ ته راوستلې.

ده فکر وکی چي دا مي ورېنداره ده، باچا مي د ورورو خسر دئ، او ورور مي لکه چي بيا تللی دئ، ورک دئ، يه ږغ مه کوه چي ودي نه پېژني.

خير ! ماښام سو، ورېنداري يې ځاى اوار کی، خيال نه بلکي يقين يې دئ چي دا مي مېړه دئ، ولي خو يو رنګه رنګونه يې دي، او پر زمري او سيمرغ مرغه خو بالکل د شکه وتلې ده چي دى دئ، ځاى چي يې اوار کی سره پرېوتله.

ده توره وکښله تر مابين يې کښېښووله، نو يې ورته وويل چي ږغ به هم نه کوې، او که دي تر دغه توره لاس يا پښه را واړوله غوڅ به يې در څخه پرې کم.

د باچا لور اريانه سوه، چي دا څه نکل دئ؟ خو پوښتنه يې ځني وکړه چي ولي، څه ګناه څه تعدى څه سوي دي؟ دا دونه عمر ورک وې مسافر وې، اوس به لا خوشحاله واى ته داسي کارونه کوې ولي؟

ده ويل : ږغ به نه کوې، نه به پوښتنه دا څو شپې کوې، او نه به دليل غواړې، خپل خوب دي کوه، په ما غرض مه لره. لنډه دا چي څو شپې پر دغه ډول تيري سوې، چي هوسا سو فکر يې وکی، چي څو تر څو به دلته اوسې، را رهي سوې په ورور پسي چي ورور پيدا کې او دلته کښېنستې. لنډه دا چي په دا سبا په پټه را رهي سو، خپل زمرى او سيمرغ مرغه يې ورسره را رهي کړه.

د باچا زوم بيا ورک سو، خو هله هله د نکل کار دئ، څه سر دي ګرځوم دخداى کارونه دي، بيا پر هغه بوډۍ پېښ سو چي د ده ورور يې ګټلی و، او

ستن کړی يې و، پر ګرېوانه يې جګ کړی و.

بوډۍ ورته وويل چي: ځوانه سطرنج نه کوې؟

ده ورته وويل چي: ولي يې نه کوم.

"بوډۍ هم ورته اريانه ده چي يو دغسي سړی خو ما په شطرنج کي وګاټه چي دغسي رنګ يې و، دغسي زمری او سيمرغ مرغه ورسره وه، دا څنګه نکل دئ؟"

خو مدعا دا ده چي بوډۍ ورته وويل چي سطرنج درسره ايږدم که مي يوړې، ته مي وګټلې، او که دي راځخه يووړی زه دي وګټلم.

ده ويل: ښه دئ، چي سطرنج يې سره کښېښو، پيشي ورته ناسته ده، چي بوډۍ به پيشي ته اشاره کوله پيشي به څراغ وواژه.

ده چپلاخه ورته ونيوله پيشي يې په چپلاخه ووهله، پيشي الا کړه، سطرنج يې د بوډۍ څخه وګاټه، او بوډۍ يې هم وګټله.

باره بوډۍ ورته ويل چي دغسي سړی لکه ته، ما تر اوسه نه و ليدلی، بيا سطرنج کوې؟

ده ويل: هو!

بيا يې سطرنج سره کښېښو، بيا يې په دغه ډول ځني يووړی، بوډۍ د ګرېوان څخه ستن راوکښله دم يې پر وکی، بير ته يې د ده ورور د انسان پر ډول کی.

ده چي ورته وکتل خپل ورور يې دئ، سره ويې پېژندل پوښتني او ګروېږني يې سره وکړلې، هر يوه خپل تېر نکلونه سره وکړه.

هغه ورور يې وويل: ته څنګه راغلې؟

دې ورور يې ورته وويل: چي داسي پر عادت راهي سولم، پر هغه بوډۍ راغلم، بيا ستا يعني د ملنګ پر کلا، بيا پر سيمرغ مرغه او زمری راغلم، هغوی خپل يو يو چيچی راسره کړ چي دا يې ستا، بيدا خدای ﷻ و چي ستا د خسر پر کور پېښ سوم هغه باچا و، ورېنداره وه زې نه پېژندلم دوی چي ويل زوم مو دئ، ولي چي زما او ستا رنګونه يو شی وه، ستا سره هم زمری او سيمرغ مرغه وه زما سره هم، څو شپې مي د ورېنداري سره تيري کړې چي هوسا سولم نو بير ته راهي سولم چي تا پيدا کم څو دا دئ خدای

ﷻ فضل وکی ته مي پیدا کړې، ژوندی مي ولیدې اوس نو د خدایه نور ارمان نه لرم.

ده هم خپل ټوله نکل سر تر پایه ورته وکی، چي داسي مي ملنګ مړ کی ادم خور و، داسي دنیا یې وه ښکلې وه، داسي مي د سیمرغ مرغه د چیچانو ښخه مار مړ کی، د زمرۍ د پښې ښخه مي منډه وکېښ، بیا ښکلې او ښکلې و، داسي اوداسي، هه هه ځو دا دئ د خدای ﷻ په فضل او ستا په مړانه سره زه بیر ته سړی سوم او ما و تا سره ولیدله، اوس نو درځه چي کور ته ولاړ سو، خپله ټوله دنیا به هم راسره واخلو، ځو به خپل مور او پلار او و خپل وطن ته، ویل ښه دئ.

باره سره را رهي سوله، هله هله دا ورور چي په ده پسي راغلی دئ، دمخه دئ هغه بل مشر په پسې دئ، باره پر لاري د دې مشر ورور په زړه کي ور وګرځېده چي نه چي دا ورور به مي مایني ته ورغلی وي، ولي هغې خو نه پېژندی، ګمان بې د خپل مېړه پر کړی وي، دئ به ورسره پرېوتلی وي، اوبل مي خسر او ماینه دی ټینګ نه کي چي دا مو زوم دئ، تا به وشړي نو دي ځه د لاسه ورسره کېږي؟ باره یې د شیطان لعین په خوله وکړه، تر شا ټک سو خپل ورور یې وویشت مړ یې کی، هلته یې پر دښت پرېښود، دی ځني را رهي سو. هله هله دا دئ کور ته راغی، بړغ نه کوي، دا پلا دوه زمریان او دوه سیمرغ مرغان ورنسره دي، خو بیا ستړې مسې او روغبړ ونه ورسره وسوله، ماښام سو کور ته راغی، د مایني سره پرېووت. دستي یې مینه او محبت ورسره وکی. پس له هغه ښخه یې مایني ورته وویل چي سړیه ! زه یوه پوښتنه درڅخه کوم !

ده ویل : وکه !

دې ورته ویل چي هغه پلا چي په سفر تللی وې، ورک وې چي راغلې. ماښام راسره پرېوتلې ولي دي توره په مابین کي کښېښووله. نه دي لاس راوړی نه پښه، او نه دي زه پرېښووم چي لاس مي در وړی وای؟ او دا پلا چي راغلې، دستي دي مینه محبت راسره شروع کړه، په دې کي څه سر و، جواب یې راکه؟

ده لاسونه سره ټک وهل چي ورور مي پاک وناحقه مي مړ کی، منکر

چې اوس ږغ کوم وایم نو څه فایده، باره یې ماینې ته ویل چې څې کوې، زه په هغه وخت کې د کار نه وم.

لنډه دا چې څو عمر باد یې خسر ته وویل چې زه خپل وطن ته ځم.

باچا هم رخصت ورکی.

خپله ماینه او بارونه یې را رهي کړه، پر هغه خپله کلا راغی، څه دنیا چې وه ټوله یې را بار کړه، هله هله هله دا دئ راغی خپل وطن او مور او پلار ته، خوشحالي سوله.

و پلار ته یې ویل چې ما او ورور سره پیدا کړه، منګر هغه مړ سو، ده دا خپل نکل ټوله ورته وکی.

# ککرۍ

یو سوداګر و، په ښکار وتلی و، د ورځې به یې په غره کې ښکار وکی، ماښام به کور ته راتلی، پر دښت راځي وښی خواته یې نارې دې چې "سل مې وژلي دي، سل به لا مړه کم".

سوداګر دا نارې واروېدلې، اریان سو، چې دا څه نکل دئ، پېری دئ نارې وهي او کـه انسان دئ، څه بلا ده هیڅوک هم نه معلومېږي، باره ویل چې ته وده درک یې معلوم کم چې څه دئ، چې نارې وهي؟

څـه سر دي ګرځـوم پـر دغـه نارو رارهي سو، هلـه هلـه چې راغـی کـه ګوري د انسان یوه ککرۍ ده د دې ککرۍ څخه نارې راوزي چې وایي "سل مې وژلي دي سل به لا مړه کم".

سوداګر تـه درد ورغـی ویـل : تـه څنګـه ککرۍ یې چې سل دي وژلي دي، سـل نـور وژنـې، بـاره یـې دا د انسـان ککـرۍ پـورتـه کـړه د مځکـې یـې وویشته، ورسته ککرۍ ټوکر ټوکر سوه.

آواز ورک سو، باره سوداګر یو کوچنی هډوکی لکه زېی، راواخیستی په جېب کې یې واچاوه نو کور ته راغی باره یې هډوکی هېر سو، په دا سبا په سودا پسي بازار ته ووت سودا یې وکړه کور ته راغی، خیال یې دئ چې په دا بل سبا په سوداګرۍ پسي ولاړ سي، ماښام یې کورتۍ کښلې ده، په موړې یې ځړېږي، دی دباندې وتلی دئ، لور یې د کورتۍ په جېبو کې ګرځي، چې د پلار په جېبو کې مې څه شي دي، د ښاره به یې کم شی می د خورک له پاره راوړی وي، باره یې دا هډوکی په لاس ورغی، چې را وې ایستی دې چې ویل "سپیني ژاولي دي" باره یې خولې ته واچولې یو وار یې په سا وواهه هډوکی ځني تېر سو، زیاته یې ږغ ونه کی.

سهار یې پلار په سوداګرۍ ولاړ، هډوکی مډوکی یې هېر سو، لور یې

پېغله وه مېړه ته يې نه وه ورکړې، د لور يې هم د ياده وواته، چې ما هډوکی تېر کی، څه سر دي ګرځوم درپيمه مياشت باد، يې د لور نس وپړسېدی لکه امېندواره چې وي اريانه سوله چې خدايه ما خو جماع هم د چا سره نه ده کړې، دا امېند مي د کمي خوا سو، چې اتمه مياشت سوله بيخي يې نس تر خوله وخوت، د شرمه تر کلي، کور او موره پوري ستر ګي نه لري، چې نهمه مياشت رانوې سوله، پلار يې د سوداګرۍ څخه راغی، باره خبر سو، چې لور دي پسات کړی دئ ټنډه سوې ده.

سوداګر ته خورا درد ورغی چې نوم مي په کور و کلي کي بد سو، سبا به خلک پېغورونه راکوي، دا څنګه کار سوی دئ، باره يې دستي لور راوغوښتله، توره يې ورته کش کړه چې دا ولي دي داسي کار کړی دئ، زما نوم دي په ټولو سوداګرو او کور و کلي کي بد کی؟

لور يې ورته ويل چې ما خو بد کار د چا سره نه دئ کړی، او نه ما لره څوک راغلي دي خدای ﷻ خو راخبر دئ، ته وده څو شپې مي و لنګېدو ته پاته دي که زه رشتيا پاکه وم نو به زه خپل چنګوټی تر خولې وغورځوم، او که بده وم بد کار مي کړی و، نو به هغه لکه نوري ښځي لنګه سم، بيا مي مړه که ما نور بد کار نه دئ کړی يوه ورځ ستا په جېب کي ګرځېدم ما ويل : "د بابا په جېب کي به پلمېټ يا بل د خورک شی پيدا کم مګر بل شی مي پيدا نه کی يو کوچنی سپين هډوکی و، ما چې ويل ژاولي دي، و خولې ته مي واچاوه چې وې ژويم باره مي په ساه وواهه هډوکی را څخه تېر سو د هغه راهيسي په ځان وپوهېدم نس مي ډک سو." نور څه مي نه دي کړي.

سوداګر ته ور په ياد سو، چې هوی هغه خو د هغي ککرۍ هډوکی و، زما هېر سو، ولچي که و هغه يې سبب دئ زياته يې لور ته ړغ ونه کی. لنډه دا چې د لور د لنګېدو موده پوره سوله، ناجوړه سوه مور او دايي ګاني ورته ناستي دي.

هله هله زورونه زورونه په آخر کي يې هک وهل کوچنوټی وړوکی هلک يې تر خوله وغورځاوه، دستي دايي ګانو او مور يې واخيست، په اوښي کي يې وپېچی، پلار ته يې خبر ورکی چې لور دي هلک تر خوله وغورځاوه، راسه هر څه چې يې کوې.

پلار يې راغی چرت يې ورته وواهه، چي که اوس يې مړ کم يا لور مړه کم، ګټه او فايده يې څه ده، خبره خو هغسي سره تيته سوې ده، او بل دا چي د لور خبره مي هم رشتيا سوله چي دې ويل: "که مي تر خوله وغورځاوه نو معلومه دا چي زه پاکه يم" اوس يې هغه دئ تر خوله وغورځاوه باره يې پر دې فيصله کړه چي وي دي، زوی نه لرې دا بې پلاره لمسی دئ لکه سکه زوی داسي دئ، را لوی به سي نو يو سر يم، اوړه به مي سپکه وي.

باره يې خپلي ماينې او دايي ګانو ته وويل چي وي دي خير دئ! دا هلک ښه ساتئ چي ناجوړه يا مړ نه سي لويوی ياستې، ښه دئ زوی نه لرم د زوی پر ځای بې ونيسم، خدای ﷻ بې را لوی کي.

دوی ويل: ښه دئ.

څه سر دي ګرځوم د نکل کار دئ شپې او ورځي دي تېرېږي، هلک هم داسي ژر ژر لويېږي په استراحت دئ په دغه کوچنيوالي داسي هوښيار دئ لکه نيکه.

سوداګر هم په خوشحاله دئ، څو دا هلک د لسو کالو سو غټ سو.

يوه ورځ يې نيکه چي ګواکي د پلار پر ځای يې دئ په سوداګري ځي، دا هلک ورته وايي: ما هم درسره بوزه زه هم درسره ځم.

سوداګر هم ويل ښه دئ راځه د سوداګرۍ په کسب به هم بلد سې.
باره سوداګر او لمسی دواړه په سوداګرۍ ولاړه، يوه بل ښار ته ورغله، سوداګر دا ښه قيمت بها او ګران ګران شيان رانيسي، دا لمسی يې ورته وايي چي دا مه رانيسه! داسي ارزان بها شيان رانيسه چي وطن ته يې يوسو، ټوله خلک ورته اړ وي، په کار يې وي او د ټولو خوار او غريب وس په ورسېږي، دا ډېره ګټه کوي او په دې شيانو چي ته يې اخلې د خوار سړي وس نه رسېږي او نه ورته اړ دئ د دې له پاره به يو وخت خريدار پيدا کېږي، چي خورا دولتمن وي، يه! ته دا پلا زما په خوله وکه چي څه کوي؟

سوداګر ويل: ښه دئ.

آبس! سوداګر هم ارزان بها داسي شيان واخيستله چي خوار و بداى ټوله ورته اړ وه، سودا چي يې وکړه رابار يې کړه خپل ښار ته يې راوړه.

څه در ته وايم ورور که! چي خرڅ يې کړه يو په دوه يو په درې يې تر

پخوا گټه زیاته وکړه، او په پنځه ورځي کي یې مال ویلي سو، پخوا به په میاشتو میاشتو پروت و.

پر سوداګر دالمسی خورا ګران سو، د لمسي یې داسي عقل دئ چي توبه، د خوبونو معناوي باسي، حاضر جوابه دئ په هر شي یې عقل رسېږي، څو د ده د هوښیاري خبر او چو کچو که تر باچا پوري ورسېده.

باره باچا هلک او سوداګر یې ځان ته وروغوښت، و سوداګر ته یې وویل چي ما اروېدلي دي چي دا ستا زوی خورا پوه او هوښیار دئ.

ده ور ته وویل: هو!

باره د ازمیښت له پاره باچا د خپلي سپارلی آس راوغوښت چي دې هلک ته یې ښکاره کي چي اصل دئ که بدل، آس چي یې راووست دوې قیضې یې وراچولي دي، په دوو تنو یې نیولی دئ پر دوه دوه نوکه کېږي.

باچا و هلک ته وویل چي څنګه! دا زما آس اصل دئ که بدل؟

ده چي ور ته وکتل ویل: بدل دئ کمصل دئ.

باچا اریان سو، ویل: د څه څخه دي معلوم کی، چي کمصل دئ؟

ده ویل: د خرې شیدې یې رودلي دي، که یې نه مني ځین ځني واخله امبار ته یې ایله که پر دغه امبار او ایرو کي ورغښت خو معلومه ده چي د خره خوی پکښې کي دئ او که ونه رغښت نو زه درواغجن یم.

آس چي یې شاتوری کی پر امبار او ایرو یې ایله کی آس دستي پکښې ورغښت او ورغښت.

باره باچا وویل: بېشکه هوښیار یې ستا پر شیدو دي آفرین وي چي تا رودلي دي.

باره باچا ډېر خوشحاله سو چي داسي هوښیار زما په باچهي کي پیدا سو، و سوداګر ته یې وویل چي دا زوی دي ماته راکه.

سوداګر وویل چي دغه دئ تر تا دمخه دئ، منګر زه بل زوی نه لرم.

باره باچا ور ته تینګ سو، یه! پرېږدم دي نه، خامخا بې راکوې، او په عوض کي یې هر شی چي غواړې درکوم یې، تې ښه نه سې ساتلای.

سوداګر ور ته تینګ سو چي یه قطعې یې نه درکوم منګر دغه دئ زما کره دي وي، که دي کله کله په کارېدی درغواړه یې، زه به یې په خپل لاس

در ولم.

باچا ويل : ښه دئ.

لنډه دا چي سوداګر او لمسى يې را رخصت کړه کورته راغله.

کارونه د خداى ﷻ دي، يوه ورځ همدغه باچا په ښکار ووت لاړ درياب ته د مايانو ښکار يې کاوه، چي درياب ته يې تور ور وغورځاوه، يو خورا ښه ښايسته تک سور ماهى يې په تور کي بند سو، چي تور يې راپورته کى دا سور غټ ماهى پکښې بند دئ.

باره باچا ويل چي دا ماهى د مرګ وړ نه دئ، د اوبو په دغه لوښي کي يې واچوئ، زه يې ژوندى کورته وړم، ماهى يې د اوبو په لوښي کي واچاوه کورته يې راوړى.

د باچا پنځوس مايني دي، د دې مايينو يې پنځوس مينځياني دي، هر يوه سرې سر يوه يوه مينځه لري.

باچا ماهى کورته راوړى په کور کي يې د اوبو په تش کي ايله کى، داپنځوس مايني او پنځوس مينځياني يې پر راټولي سولې، د ماهي سيل کوي چي دا ځنګه تک سور ښايسته ماهى دئ، يو وار نابيره ماهي وخندله، دوى اريان ولاړه چي اوهو دې ماهي ځنګه وخندل.

باچا واى درواغ مه واياست نو په خپله ورته رانژدې سو، ماهي بيا د باچا دمخه وخندل.

باچا او دانوري مايني يې داسي ډوب ورته ولاړه چي دا څه نکل دئ، زياته ماهى چوپ سو.

باره دستي باچا رااووت وزيران او نور هوښياران يې راوغوښتله ورته وې ويل چي زه نن د ماهيانو په ښکار پسي وتلى وم، په درياب کي مي يو سور ماهى ونيو کورته مي راوړى ښځي او مينځياني باندي راټولي سولې، زه هم وم، سيل يې کاوه يو وار ماهي وخندله بيا يې وخندله، د دې معنى به راته واياست، چي په دې کي څه حکمت دئ او څه معنى لري؟

ټولو وزيرانو چرت پکښي وواهه وواهه، باره ويل صاحبه ! زموږ عقل او چرت نه ور لوېږي هغه د سوداګر زوى راوغواړه ګوندي د هغه سد ور ولوېږي.

باچا دستي سړي ور واستاوه د سوداګر زوی یې راووست.
باره باچا و دې هلک ته وویل چې داسي زموږ کره د ښځو او مینځیانو او زما په مخ کي ماهي وخندل، د دې معنی به را کوې.
هلک وویل چې څې کوې، که مي معنی درته وکړه داسي به دي خوا بده سي لکه د تازي د خاوند، او ډېر ارمان به وکې، یه پرې یې بږده تر دې تېر سه!
باچا وویل د تازي خاوند څنګه و؟ څنګه یې خوا بده سوه؟ او څنګه یې ارمان وکی؟
هلک ورته وویل چې ته غوږ ونیسه!
باچا ویل: ښه!
ویل چې وه دوه کسه وه خورا یو د بله سره ګران وه، سره اشنایان وه دې یوه اشنای یې یو تازي درلود خورا پر ګران و داسي پر ګران و چې بې ده یې ډوډۍ نه خوړله. باره دې بل اشنای یې ورته وویل چې اشنایه! دا تازي څه خوی لري چې داسي دربا ندي ګران دئ؟
ده ورته ویل: چې څې کوې؟
هغه ویل: یه خامخا به راته وایې.
ده ویل: بیا به ارمان وکې زه بې هم وکم.
هغه ویل: یه راته ووایه.
باره ده ویل چې دا تازي دا خوی لري چې څوک غلا وکي، دی امر کې هغه غلا دستي پیدا کوي.
آبس! اشنای یې ورته وویل چې دا ماته راکه.
ده هم دستي وویل: ښه دئ هغه دئ واخله، تازي یې اشنای ته ورکی، اشنای یې تازي کور ته بوت.
څو ورځي باد یې هغه اشنای غلا وکړه، باره وهم واخیستی چې دا تازي څوک امر نه کي دستي به دا غلا په لاس ورکي، باره یې د تازي په غاړه کي کاغذ ور وځړاوه ار ایله یې کی.
تازي برابر راغی د هغه زاړه خاوند دروازې ته، دروازه تړلې ده، تازي ورته پرېووت، یو ګړی باد یې خاوند راووت چې وې کتل تازي پروت دئ،

باره يې بې فكره متار پورته کی تازي يې وواهه، تازي يې مړ کی چي ته ولي زما د اشنای څخه راوتښتېدلې، وروسته چي يې غاړي ته وکتل يو خط يې په غاړه دئ، چي خلاص يې کی پکښي ليکلي يې وه چي "تازي مي در ولېږی، ما غلا کړېد، ما ويله نه بايده چي دا تازي مي رسوانه کي".

باره دې خاوند يې ډېر ارمان وکی خوا يې بده سوله.

نو باچا صاحبه ! يه ! ته به هم ارمان وکې، د ماهي د خندا معنی مه غواړه.

باچا ويل : دانو څه نکل و چي تا وکی، دانو څه ارمان و چي د تازي خاوند وکی، ژر کوه د ماهي د خندا معنی راته راکه.

ده ويل چي ته ورسه کور ته هغه ګراني ماينې ته دي دا نکل چي در ته ومي کی وکه چي هغه څه وايي.

باچا ويل : ښه دئ. باچا کور ته راغی و ګراني ماينې ته يې دا نکل وکی. هغې ورته وويل چي يه ورسه، مې پرېږده معنی ځني وغواړه، دانو څه ارمان و چي د تازي خاوند کړی دئ.

باچا راغی هلک ته يې ويل چي د ماهي د خندا معنی راته وکه نه دي پرېږدم.

هلک ورته وويل چي مه کوه داسي ارمان به وکې لکه د "باز" خاوند چي په باز پسي وکی.

باچا ويل : څنګه ؟

هلک ويل : چي يو سړی و باز يې درلود او په ښکار راوتلی و غرمه ده تږی سو، اوبه نسته، د ليري څخه د غره د ګاري څخه روني اوبه ځلېږي، چي د غره څخه رابهېږي، دا سړی راغی چي څنګه ښه روني اوبه مي پيدا کړې، ورغی اوبو ته چي لپه په ډکه کي چي خولې ته يې پورته کي، باز ور په هوا سي لاسونه يې په منګلو او په وزرو ووهي اوبه ځني توی کي، خو څو کرته يې اوبه پورته کړې باز ځني توی کړې، خو تندي غلبه پر کړې ده، باره يې باز ونيو سر يې غوڅ ورپرې کی، وروسته يې فکر وکی چي ته وده چي زه وګورم دا باز بې څه نه و.

باره دغه د اوبو رکښ يې پسي راواخيست چي راغی کې کتل چي يو

لوی اپي ښامار مړ دئ، د خولې څخه يې زهر تويېږي لاندي لکه روښي اوبه رابهېږي، ده لاسونه سره ټک وهل خوا يې ډېره بده سوله، ډېر ارمان يې په باز پسي وکی.

نو يه ! ورک يې که د ماهي د خندا معنی مه غواړه.

باچا ويل : يه غواړم يې.

ده بيا ويل چي ته ولاړ سه کور ته و ګراني ماينې ته دي ووايه چي د ماهي د خندا معنی څني وغواړم که يه ؟ او دا زمانکل ورته وکه.

باچا راغی بيا يې و ګراني ماينې ته وويل چي داسي نکل يې راته وکی، وای ارمان به وکې د دې معنی مه غواړه.

ماينې يې ورته وويل چي ورسه معنی يې څني وغواړه، دانو څه ارمان و، چي د باز خاوند کړی دئ. باچا راغی ويل هلکه ! نه دي پرېږدم چي د دې معنی راته ونه کې. هلک ويل : مه کوه ! داسي ارمان به وکې لکه د "طوطي" خاوند چي په طوطي پسي وکی.

باچا ويل : څنګه ؟

هلک ويل : ته وا، ښه ! يو باچا و، يو طوطي يې په قفس کي اچولی و، دې طوطي ښې خبري کولې پر باچا خورا ګران دئ خورا يې ښه ساتي.

يوه ورځ په هوا نور طوطيان دي سېل يې دئ تېرېږي، يو طوطي د هوا د سېل څخه را جلا سو، راغی د باچا د طوطي پر قفس سر بېره ورته کښېنوست، يو ګړی ناست و، چغ و بغ يې سره وکی بير ته والووت، ولاړ په خپله سېل ګډ سو، هغه طوطي چي ولاړ، دې طوطي وژړل.

باچا ورته وويل چي ولي ژاړې او څه يې در ته وويل؟

طوطي ورته وويل چي "راته وې ويل چي دا ستا د ورور واده دئ، دا دي د ورور د واده ورا ده" زما لړ څه زړه درد وکی ولي بندي يم.

باچا ورته وويل : چي ور ايله دي کم بيا به راسې؟

طوطي وويل : هو.

باچا ويل : څه شي به راته راوړې؟

طوطي ويل : خدای و هست يو شی به در ته راوړم.

باچا هم دستي طوطي ايله کی، طوطي په سېل پسي والووت.

څه سر دي ګرځوم څلرمه پنځمه ورځ باد طوطي بیر ته باچا ته راغی، یوه سپینه مندکه یې په خوله کې ور ته نیولې ده.

باچا وای : دا دي راته راوړه؟

طوطي ویل : هو !

باچا ویل : دا نو د څه په ښه ده؟ طوطي ویل : دا چي سپین ږیری وخوري ځوانیږي، او ته یې دستي مه خوره، دا واخله شنه یې که، چي لو سوله نوري مندکي کوي، هغه به زړو خلکو ته ورکوې ځوانیږي به، نه به تماميږي.

لنډه دا چي طوطي په خپله په قفس ننووت.

باچا مندکه شنه کړه، د نکل کار دئ مندکه شنه سوله، لو درخته سوله، مندکي یې وکړې.

باچا پيرې پر ودرولې چي څوک یې غلا نه کي، او باچا هم په خپله سپین ږیری دئ، باره یې فکر وکی چي ته راسه په دې مندکو ازمینښت وکه نه بایده دې طوطي چم نه وي کړی.

باره یې یو زوړ هندو راووست، یوه مندکه د درختي رالوېدلې ده، دا مندکه یې هندو ته ورکړه، چي دا وخوره ځوان به سې.

هندو چي مندکه وخوړه پر هغه ځای دستي ټک له ټکه واوښت مړ سو. "دا مندکه یوه اپي مار په خوله کي رغړولې وه، د هغه مار په زهر و وه". باچا دستي د طوطي سر غوڅ پرې کی، چي ستا خوله دي وچه سي زه دي وژلم.

باره یې جار وواهه چي دغه درخته د زهر و ده، مندکه یې زهر دي څوک دې نه خوري، اوس نو هیڅوک د وهمه نه ور نژدې کېږي، او نه حیوان ور پر پېږدي.

څه سر دي ګرځوم څو ورځي باد یوه سپین سرې ښځه ده، د بني د لاسه په عذاب ده، میړه یې په باک نه راوړي.

باره یې وویل چي تر دې ژوند مي مرګ ښه دئ، باره ولاړه د دغي درختي څخه یې یوه دانه مندکه وخوړه، سپین سرې دستي د دوولسو کالو نجلۍ سوله، چټه ښایسته پېغله سوله، باره اریانه سوله چي دا څه نکل دئ،

کور ته راغله، مېړه ته یې دا بیان وکی، پر مېړه هم داسې ګرانه سوله لکه هغه بله.

دا خبره تر باچا پورې ورسېده چې داسې یوه بوډۍ تللې وه، د بنې ښځه په عذاب وه، ځان یې واژه، چې مندکه یې وخوړله، پر هغه ځای ځوانه سوله.

باچا دستې یو بل زوړ سړی راوغوښت، یوه مندکه یې د درختې ښځه پرې او ور یې کړه چې څه په کوې؟

زاړه چې مندکه وخوړله نوی ځوان سو.

څه سر دې ګرځوم درو څلورو سپین ږیرو وخوړه، ټوله ځوانان سوله.

باره باچا ډېر ارمان په طوطې پسې وکی، منګر لاس ته یې څه نه ورغله.

هلک ویل : ته به هم ارمان وکې، پرېږده معنی یې مه غواړه، ورسه ګرانې ماینې ته دې هم ووایه، دا نکل ور ته وکه ښه صلاح ورسره وکه.

باچا کور ته ولاړ بیا یې ګرانې ماینې ته وویل چې داسې نکل هلک راته وکی، معنی یې ځنې وغواړم که یه؟

ماینې یې وویل : ورسه مې پرېږده ضرور د ماهې د خندا معنی ځنې وغواړه.

باچا راغی ویل : ژر کوه ارمان نه کوم، د ماهې د خندا معنی راکه.

هلک ور ته وویل : مه کوه ارمان به وکې !

باچا ویل : نې کوم.

ده ویل : نې کوې؟ باچا ویل : یه !

هلک ویل : ستا پنځوس ماینې دې، دا پنځوس مینځیانې یې ګرده نر دې، هرې یوې ستا په غلا د ځان له پاره یو یو نر د ښځې په بڼه ساتلی دئ، ته نه یې په خبر.

ماهې پر وخندل. باره هلک نارې کړې چې "سل مې وژلې دې سل به لا نور مړه کم" باره په مځکه ننووت ورک سو.

باچا دستې کور ته راغی، چې مینځیانې یې وکتلې ټوله نر وه.

باره باچا توره پسې لښته کړه، دا پنځوس ماینې او پنځوس مینځیانې چې نر وه ټوله یې مړه کړه چې دا سل سې.

وروسته باچا تر وزیرانو پورې ډېر خجل سو، ډېر ارمان یې وکی، چې کشکې مې معنی نه وای ځنې غوښتې.

# شرمښ او سره بوزه

چي وه يوه سره بوزه وه، دوه يې مرغومي وه، د يوه نوم "شليل" و د بل نوم "ماشليل" وو، دا زامن خورا پر ګران وه، سهار به يې د خوني دروازه پسي وتړله، دوی ته بې ويل چي "بېله زما بې بږغ څخځه هيچا ته دروازه مه خلاصوئ" نو دا به ځني ولاړه، ماښام به يې په ښکرو کي واښه ورته را اخيستي وه، غلامځه او تي به يې د شيدو ډک وه نو به راغله و زامنو ته به يې ور بږغ کړه : "شليل ماشليل دروازه را خلاصه که، ښکر مي ډک دئ د وښو، تي مي ډک دي د شيدو".

واښه بې وخوړله، شيدې به يې ورودلې ماړه به سوه نو به بيده سوه. دا بوزه داسي غښتلې او زړه وره وه چي شرمښان او چغالان ټوله ځني بېرېدله، او د دې د ښکر نوم په ټولو حيواناتو کي پروت و.

يوه ورځ يو شرمښ ورته پټ دئ بوزه چي ماښام راغله زامنو ته يې ناره کړه، چي : "شليل ماشليل" دروازه راخلاصه کئ، ښکر مي ډک دئ د وښو، تي مي د شيدو !

شرمښ دا ناره وختي ځني زده کړه نو ولاړ.

دا بل ماښام وختي لا شرمښ راغی، ور ناره يې کړه "شليل ماشليل" دروازه راخلاصه که، ښکر مي ډک دئ د وښو، تي مي ډک دئ د شيدو.

مرغومانو چي دروازه ور خلاصه کړه شرمښ پر ور وغورځېدی دواړه مرغومان يې وخواړه، باره ولاړی په خپل غار ننووت بيده سو.

بوزه چي راغله هر څو نارې چي يې مرغومانو ته وکړلې د مرغومانو بږغ نسته، باره يې دروازه په ښکر ووهله، دړې وړې يې کړه ورننوتله، که ګوري ځای سته جولا نسته، مرغومان نسته څه ويني ميني توې سوي دي، ويل "هی هی زما مرغومان مو په چم راڅخه خوړلي دي" ډېر افسوس يې وکی.

څه سر دي ګرځوم دستي په دغه مانښام را رهي سوه هله راغله د چغال غار ته، و چغال ته يې ور بږغ کړه :

ما هوای جنګ دارم

ما توره تفنګ دارم

شرمښ په جواب کي ورته وويل :

ما نه هوای جنګ دارم

ما نه توره تفنګ دارم

شلیل ماشلیل نه بردم و نه خورده ام

بیا راغله د شرمښ غار ته، و شرمښ ته يې ور بږغ کړه :

ما هوای جنګ دارم

ما توره تفنګ دارم

شلیل ماشلیل ما که برده و که خورده

شرمښ د غاره سر را وایسته وې ویل :

ما هوای جنګ دارم

ما توره تفنګ دارم

شلیل ما خوردم ماشلیل ما بردم

لنډه دا چي بوزې ورته وويل چي سبا میدان ته راووزه، جنګ دئ، اوس چي دي هر څه د لاسه کېږي وې که، سبه ماپښین زما او ستا جنګ دئ.

آبس ! سهار وختي شرمښ هم راغی آهنګر ته، بوزه هم راغله، و آهنګر ته يې وويل چي نن ماپښین زما او د شرمښ پر پلاني میدان جنګ دئ، دغه زما ښکر به را تېره کوې ښه به يې را جوړوې.

شرمښ ورته وويل چي زما غاښونه به رانوي کوې زاړه سوي دي، خورک نه په کېږي، نوي ښه غاښونه به راکښېنوې. آبس ! آهنګر و بوزې ته ښه تېره د پولادو د ښکرو پوښونه يې ور جوړ کړه، د بوزې په ښکرو يې واغوستله د شرمښ غاښونه يې وکښله، د پنداني غاښونه يې ور کښېښوله.

ماپښین سو، بوزه او شرمښ دواړه د جنګ میدان ته راوواته، د خدای جل جلاله عالم و سیل ته راوتلی دئ، دوی په میدان کي سره ودرېدله.

سره بوزه وایي : "واری دي کوه اول وار ستا دئ".

شرمښ وایي : "یه ! اول وار ستا دئ، ته واری وکه !"

بوزه وایي : "یه ! واری ستا دئ چي بیا دي ارمان په زړه کي نه سي پاته".

آبس بوزه ورته ودرېدله، شرمښ پر شا ولاړ ولاړ تاو یې راوکیښ، چي را الا یې کړه په بوزه یې خوله ولګوله، غاښونه یې د یوې واري توی سوله باندي، په بوزې یې هیڅ ونه کړه، یو وېښته یې لا ځنې ونه کیښ، اوس وار د بوزې دئ.

شرمښ ورته ودرېدی، بوزه ولاړه د لیري څخه یې تاو راوکیښ، چي را الا یې کړه وې واهه په دغه نس کي تر نس یې ښکر ور وکیښ، لري او کولمې یې پر ډاګ ور کوټه کړه شرمښ یې مړ کی.

بوزې مخ و دغه سپلانیانو ته راوګرځاوه ویل : آخلکو !

زه یو نصیحت درته کوم، باید دا زما خبري ټینګي په غوږ کي ونیسئ : "باید تاسي هیڅکله غیرت او همت د لاسه څخه ور نه کئ، او د زورور دښمن څخه ونه بېرېږئ، که څه هم لکه ما غوندي ضعیف یاست، لا باید د دښمن په مقابل کي ځان ضعیف ونه بولئ، بلکي د ډېره غیرته څخه ځان زورور اوقوي وبولئ، او که کم ظالم دښمن ستا مال او اولاد او ناموس ته ناحقه لاس وغځوی باید غچ یې ځني وکاږئ".

وروسته د جنګ میدان او مجلس په ډېرو چکچکو سره ختم سو.

# د سوداګر زامن
# یا
## درې هوښیاران ورونه

ته وا، ښه ! ښه .

چې و یو سوداګر و، چې په عقل خورا مشهور و.

د دې سوداګر درې زامن وه، دوه زامن یې د یوې مایني څخه وه، یو کشر زوی یې د بلې مایني څخه و، سوداګر خپله دنیا په ژوند لا ور وویشله.

سوداګر ناجوړه سو، خپل درې سره زامن یې راوغوښتله وصیت یې ورته وکی، چې دنیا مې په ژوند لا در وویشله، د دې له پاره چې بیا جنګ پر ونه کئ، او ستاسې د دښمنۍ او بې اتفاقۍ سبب نه سي، او د یوې خوني او یو صندوخ کلي یې دغه کشر زوی ته د ورونو په مخ کې ور کړه، ورته وې ویل چې دغه خونه تر هغو مه خلاصوه چې دنیا مو تمامېږي، هر وخت چې مو دغه موجوده دنیا تمامه سوله، نو دغه خونه خلاصه کئ، په خونه کې صندوخ دئ هر څه چې پکښې وه هغه به هم سره وویشئ درې ځایه به یې کئ.

دوی ویل : ښه دئ.

کارونه د خدای ﷻ دي سوداګر مړ سو، دوی یو د بله هیڅ غرض نه سره درلود، هر یوه خپله ډوډۍ خوړله.

دا کشر ورور یې د خپلې کمبلې سره پښې سمې غځولې دی اصراف نه کوي، دا نور دوه ورونه لږ څه اصراف کوي، عیش او عشرت کوي، وایي : "پلار مو هوښیار سړی و، ډېره یې راګټلې ده نه تمامېږي، په هغه خونه او صندوخ یې زړه پوره دئ، په پنځه شپې کې یې دنیادربدره کړه." باره یې

دغه کشر ورور ته وویل چي زموږ دنیا تمامه سوله، دزځه د خوني دروازه را خلاصه که، چي ددغي خوني شیان سره ووېشو.

دغه کشر ورور یې دمخه لا د دوی په پټه خونه او صندوخ خلاص کړی وه، په صندوخ کي درې خورا ګران قیمت بها غمیان وه یو یې ځني پټ کړی و".

کشر ورور وویل : ښه دئ راځئ، چي راغله خونه یې خلاصه کړه، بیا یې صندوخ خلاص کی، که ګوري په صندوخ کي دوه غمي دي.

باره وروڼو یې ور ته وویل چي دا خو خامخا درې غمیه وه، بابا داسي کار نه کاوه چي دوه غمیان یې په صندوخ کي ایښوول چي زموږ پر جنګ وای، موږ درې وروڼه یو، غمیان هم درې وه، یو غمی تا غلا کړی او پټ کړی دئ.

کشر ویل : مانه دئ غلا کړی، نه مي پټ کړی دئ زما هغه ده نور دنیا لا کوټه پر ته ده، زه هغه نه سم تمامولای، زه کم مسکین یم چي غمی مي هم غلا کاوه، دغه نوره تر مرګه نه سم تمامولای.

دوی ویل : ښه دئ چي نه یې منې نو درځه ښار ته حاکم ته به موږ دا کیفیت ووایو، هر څه حکم چي یې وکی موږ یې پر غبرګو سترګو منو.

ده ویل : ښه دئ، درځئ !

لنډه دا چي درې سره وروڼه سره را رهي سوله، چي تر کلي راووتله، پر لاري یې یو د اوښ پل ولید.

دغه مشر ورور ویل چي دا پل د ښځي اوښي دئ.

هغه مېنځوي ویل چي دا اوښه په یوه سترګه ړنده ده.

دغه کشر ویل چي بارداره ده، بار پر باندي دئ، یو انډی یې عسل دئ، بل انډی یې غوړي دي.

دا خبري یې د اوښ پر پله سره وکړې، پر لار راځي چي د شا د خوا یو صحرایي دئ پسي راغی و دوی ته وایي :

آ ځوانانو ! یوه اوښه مو ونه لیده؟

مشر ویل چي اوښه وه؟ ده ویل : هو !

هغه مېنځوي ویل : په یوه سترګه ړنده وه؟

صحرايي ويل : هو !

دې کشر ويل چي پر يوه خوا يې عسل پر بله خوا يې غوړي باندي وه؟

ده ويل: هو !

دوی ورته ويل چي يه ! کاکانه مو ده ليدلې.

صحرايي ويل : ځنګه مو نه ده ليدلې، نښاني مو وويل اوس واياست نه مو ده ليدلې، عجبه ده، ولاکه مو پرېږدم چي اوښه رانه کی، اوښه تاسي غلا کړېده، درځئ حاکم ته يا اوښه راکئ؟

دوی ويل چي اوښه مو نه ليدلې ده، نې در کوو، راځه زموږ سره دعوا ده حاکم ته ځو، ستا سره به يې هم هلته فيصله کو.

ده ويل : ښه دئ درځئ.

باره ځلور سره رارهي سوله، هله هله تر يوه ځايه چي راغله پر لاري بيا د خلکو پلو ته ګوري، يو پل دئ، دا مشر ورور وايي : دا پل د ښځي دئ.

دغه مېنځوی وايي چي دا ښځه راتښتېدلې ده، کشر وايي چي دغه ښځه اميندواره ده.

صحرايي دا خبري واورېدې.

يو ګړی وروسته يو سړی دئ راځغلي نارې وهي، چي راغی وايي : آ خلکو ! يو څوک په مخه نه درغله؟

دغه مشر وايي : ښځه وه؟ دی وايي : هو !

دا مېنځوی وايي : تښتېدلې وه؟ هغه وايي : هو !

دا کشر وايي : اميندواره وه؟ دی وايي : هو !

دوی وويل : ولاکه مو په سترګو ليدلې ده.

هغه دمخه صحرايي د اوښي خاوند اريان سو، چي دا څه نکل دئ. دغه سړی تېنګ سو چي ښځه تاسي پټه کړې ده، ښځه په لاس راکئ.

دوی وايي نه مو ده ليدلې، که ډېر نه درېږې راځه حکومت ته.

صحرايي ورته وايي : کاکا زما هم داسي اوښه ورکه ده، د دوی څخه مي پوښتنه وکړه، دوی ناديده نښاني ووېلې، ما دوی تېنګ کړه، چي اوښه تاسي پټه کړې ده، اوس چي مي دا حال وليد يقين مي سو، چي دوی نه ده ليدلې، زه ناحقه ورسره راخوار سوم، دا دئ کاکا زه ورسره وم ته ومنه که

ګرد سره ښځه په مخه راغلې ده، ولاکه یا دوی لیدلې ده، یا ما، دا ښه خلک دي د غیبو لکه چي ګډ دي.

د ښځي خاوند وایي : څنګه د غیبو ګډ دي، زه یې نه پرېږدم، تې هم مه پرېږده راځه حاکم ته، چي هر څه حاکم حکم وکی، هغه مو قبول دئ، خپل کیفیت به ورته ووایو زړه به مو پر آرامه سي، که دوی پټ کړي وه، حاکم به حکم وکي خپل مال به په لاس راکي، او که یې حکم پر ونه کی هغه دئ پر خپله تړه به ځو، بیا به یې بل ځای پوښتنه کوو.

صحرایي وایي : ښه دئ درځئ خوښه مي ده.

څه سر دي ګرځوم پنځه سره را رهي سوله، هله هله دا دئ ښار ته راغله، حاکم ته ودرېدل.

حاکم پوښتنه ځني وکړه چي تاسي څوک یاست او څه عرض لرئ؟

دغه درو ورونو ورته وویل چي موږ درې سره ورونه یو، د پلانکي سوداګر زامن یو.

حاکم وپېژندل، ځکه چي د دوی پلار یعني سوداګر په عقل او حاضر جوابۍ او بندوبس کي خورا مشهور و.

حاکم و دغه نورو دوو تنو ته وویل چي ښه ! تاسي څنګه ورسره یاست څنګه راغلي یاست څه عرض لرئ؟

دوی ورته وویل چي زموږ یوه ښځه او یوه اوښه ورکه ده پر لاري مو د دوی څخه پوښتنه وکړه چي تاسي نه دي لیدلي دوی یې نښانی ګرده راته وویلې، اوس وایي چي موږ نه دي لیدلي.

حاکم د سوداګر و زامنو ته وویل چي ورکه ورکئ یا یې جواب ووایاست.

دوی ورته وویل چي نه مو ښځه لیدلې ده نه مو اوښه !

حاکم ورته وویل چي نښاني مو څنګه ورته وویل؟

د سوداګر زامنو ورته وویل چي خدای ﷻ چاته عقل ورکړی وي ولي یې نه سي ویلای. باید د لږ علامې څخه سړی د پوره شي حقیقت ځان ته معلوم کي.

حاکم وویل : څنګه؟

مشر ورور ورته وویل چي د ښځي او نر پل، که حیوان وي که انسان چي سړی لږ څه عقل او ځر اکت ولري پېژني يې و دليل ته حاجت نسته.

مېنځوي ورور ورته وويل چي اوښه ما پر دې وپېژندله چي په يوه سترګه ړنده ده، چي د لاري د يوې خوا ځوزان او واښه خوړل سوي وه او د بلي خوا دا پاته وه.

دغه کشر وويل چي ما پر دې اوښه وپېژندله چي پر يوه خوا يې عسل او پر بله خوا يې غوړي دي چي د لاري پر يوه خوا پر خاشو مچمچې ناستي وې، او د لاري پر بله خوا پر خاشو مچان ناسته وه.

حاکم وويل چي ښځه مو پر څه و پېژندله، چي دا ښځه ده، تښتېدلې ده، اميندواره ده؟

مشر وويل چي د ښځي پل خو معلوم دئ، هر څوک يې پېژني دا د ښځي پل دئ، پوښتني ته حاجت نسته.

مېنځوي ورور وويل چي ښځه ما پر دې وپېژندله چي تښتېدلې ده، چي هر ځای يې تر شا کتلي وه، پل يې ګر ځېدلی و.

کشر وويل چي ما پر دې وپېژندله چي اميندواره ده چي هر ځای کښېنستلې وه چي ولاړه سوې وه دواړه لاسونه يې پر مځکه لګولي وه. حاکم د ورکي و خاوندانو ته وويل چي څه واياست؟

دواړو ومنله چي بېشکه دغسي ده، دوی غله نه دي، نې اوښه او ښځه ليدلې ده زموږ زياته دعوا په دوی پوري نه لرو دا دوه تنه ولاړه، ابرا يې ورته وکړه. وروسته حاکم د سوداګر د زامنو څخه پوښتنه وکړه چي تاسي څنګه راغلي ياست؟ دوی دا نکل سر تر پايه ورته وکی، دغه دوو ورونو ورته وويل چي زموږ پلار چي مړ کېدی، نوره دنيا يې په ژوند را ووېشله د يوې خوني کيلی يې و دغه کشر ورور ته ور کړه، چي دا خونه تر هغو مه خلاصوئ څو دا نوره دنيا مو تمامېږي، هر وخت چي مو نوره دنيا تمامه سوله، دغه خونه خلاصه کئ، په صندوخ کي هر څه چي وه هغه به سره درې ځايه کئ، اوس چي مو خونه او صندوخ خلاص کی، په صندوخ کي دوه غمي دي، دا نه سره وېشل کېږي نو زموږ پلار خو ډېر پوه او هوښيار سړی و داسي کار يې نه کاوه چي زموږ د جنګ او دعوا، بې اتفاقی او دښمنی سبب ګر ځېدلی وای، ضرور

يې غمې په صندوخ کې ايښې و اوس يو غمې معلومداره دغه کشر ورور غلا کړې او پټ کړې دئ، دی وايي چې ما نه غلا کړې دئ نه مې پټ کړې دئ، نه يې مني، او په پلار زموږ اعتماد و داسې د کم عقلۍ کار يې نه کاوه.

حاکم و دغه کشر ورور ته وويل چې څه وايې؟

ده ورته وويل چې ما نه غلا کړې، شاهد دې تېر کې يا دې په معقول صورت راباندې واړوي، زه خو يې نه منم.

حاکم وويل چې ښه دئ، دا نو قاضي ته سبا ورسئ دا مسئله د شريعت ده.

دوی هم وويل : ښه دئ سبا به قاضي ته ورسو.

ماښام حاکم قاضي راوغوښت، ورته يې ويل چې دا د پلاني سوداګر زامن دي، دغسې دعوه يې ده، او په عقل کې اول لمبر دي، داسې يې دعوه ور خلاصوې چې د عقل د لارې يې دوی درې سره ومني، او قانع سې حق و حقدار ته ورسېږي، قسم به په مابين کې نه وي، د ښځې او د اوښې د دعوا نکل يې هم ورته وکی، چې دوی په عقل سره د ښځې او د اوښې خاوندان قانع کړه، هغو د دعوا څخه ابرا وکړه او ولاړه.

قاضي اريان ولاړ، وارخطا سو چې د دوی په خپله دونه عقلونه دي په خپلو عقلو يې دوني لويې دعوې فيصله کړې نو زه به چيري دا دعوه په عقل ور خلاصه کم خو مخامخ يې دم درحاله و حاکم ته وويل : "ښه دئ دعوا به يې ورخلاصه کم" منګر په زړه کې خورا چرتي دئ چې دا دعوه به څنګه ور خلاصوي.

قاضي په دغه شپه کور ته راغی، خورا خوابدی دئ ډوډۍ نه خوري نه خبري کوي چرت وهي.

د قاضي يوه لور ده چې خورا هوښياره ده دې لور يې ورته وويل چې بابا! ولې داسې خوابدی ناست يې، چرت ولې وهې؟ قاضي دا نکل و لور ته وکی، چې داسې ورونه دي داسې دعوه يې ده.

لور يې ورته وويل چې دا اسانه کار دئ خوا مه بدوه سهار به زه درېشي وکم ور به سم د قضا پر مسئله به کښېنم زه به ووايم چې نن زه قضا کوم، قاضي صاحب ناجوړه دئ، زه به دا دعوه په دغسې ډول ور خلاصه کم چې په عقل سره دوی قانع سي، او حق به هم و حقدار ته ورسېږي، قسم به هم په

مابین کې نه وي.

قاضي ویل : ښه دئ، که دي د دې غمه خلاص کړم.

څه سر دي ګرځوم سهار د قاضي لور د نر دریشي وکړه راغله محکمې ته، د سوداګر زامن یې راوغوښتله، ورته وې ویل چې ستاسي څه دعوا ده؟

دوی اینه پر بینه دا خپل کیفیت ورته ووایه.

د قاضي لور ورته وویل چې تاسي درې سره غوږ ونیسئ چې زه یو نکل درته وکم، بیا به نو دعوا فیصله کوو.

دوی ویل : ښه دئ وکه !

د قاضي لور ویل : تاسي وا، ښه !

دوی ویل : ښه !

ویل چې و یو سوداګر و، ډېره دیندار‌ه او پرهېزګاره سړی و، په زړه هم صاف او سپېڅلی و، یوه ښه پاکه د بدو بېزاره ماینه یې وه.

دغه سوداګر په یوه لویه او لیري سوداګري تلی، نو یې ماینې ته وویل چې زه دا پلا په لیري واټن سوداګرۍ ته ځم ښایي چې ډېر عمر نه سم را، نو که زه دغه یو کال نه راغلم، ته زما د قیده څخه آزاده یې که دي بل مېړه کاوه درته اجازه ده وې که، او که راغلم راغلم، او هو، هوښ کوه چې بد ونه کې، د بل نامحرم سره ګوته بنده نه کې.

ماینې ویل : ښه دئ بېغمه اوسه، زه هم پښتنه یم.

لنډه دا چې سوداګر ولاړ په خپله سوداګرۍ پسي، ماینه یې په خپل کور کي په ستر ناسته ده، دباندي نه وزي خپله ګذاره کوي.

یوه ورځ دې سر غوږ ولی دئ کور ناسته ده سر مینځي، د دغه ښار باچا دوربین اچولی دئ شاوخوا ګوري په برج کي ولاړ دئ، یو وار یې د سوداګر ماینه ولیده، و کور ته یې دوربین برابر سو، د سوداګر پر ماینه مین سو، دا کور یې نښانې کی، باره یې وښځي ته حال را وکی، چې زما حرامسرای ته راسه.

دې په جواب کي حال ورواستاوه چي زه نه درځم، زه د سوداګر ماینه یم مېړه مي نسته، نه درځم نوم مي بدېږي.

باچا بیرته حال ور واستاوه چي پر پېړدم دي نه، خامخا به راځې زه پر تا مین سوی یم.

دې په جواب کې ورته وويل چې ښه دئ چې نه مې پرېږدې نو ته داسي وکه چې د خپله حرامسرايه څخه يو نغم په مځکه کې راواچوه زما تر سرايه پوري يې راورسوه، باره به په پټه سره ځو، او راځو، نه به ستانوم بدېږي، او نه به زمانوم بدېږي، ځکه د لوی سوداګر ماينه يم.

"د ښځي مقصد دا و چې ګوندي په دغه موده کې چې دی نغم کاږي سوداګر راسي".

باچا هم وويل ښه دئ.

لنډه دا چې باچا پټ سړي ور واچوله نغم پرې کوې هله هله تاته دې خداى ﷻ نېکه ورځ درکي د نکل کار دئ يو کال باد نغم تيار سو، د سوداګر هم وعده پوره سوله، نه راغی.

اوس نو باچا حال ورته راوکی چې په نغم کې راسه نغم تيار سو.

دې فکر وکی چې دا بهانه هم درباندي ودرېدله، نغم هم جوړ سو، سوداګر هم نه راغی، او د باچا سره دې هم د وسه نه ده پوره، او بل د سوداګر موده او وعده چې درته ايښې يې وه پوره سوله، که بيا راسي څه به نه درته وايي، نو ښه دا ده چې ورسم. باره يې ځان جوړ کی، کالي يې واغوستله، پسولونه يې په ځان پوري کړه په نغم ننوتله، هلته ږغ سو چې سوداګر راغی سوداګر سرای ته ورننووت، دا د نغم په خوله کې اېښه پېښه ودرېدله.

سوداګر چې خپله ماينه وليدله چې ځان يې جوړ کړی دئ د نغم په خوله کې ولاړه ده، دستي يې توره باندي راوکښله چې وهله يې، دې ورته ويل چې د خداى ﷻ پار دئ دغونه مې پرېږده چې زه تاته اصل حقيقت او کيفيت ووايم بيا که مې وژنې که مې پرېږدې؟

سوداګر وويل : ووايه څه وايې څه نکل دئ؟

ماينې يې ورته وويل چې نکل دا دئ : "چې ته ولاړې په هغه ورځ نه په دغه بله ورځ باچا دوربين اچولی و، زه يې په سرای کې وليدلم پر ما مين سو، زه يې نه پرېښوولم، نو ما بهانه ورته وکړه چې داسي نغم پرې که، زه او ته به په نغم کې ځو او راځو، څو دا دئ دا يو کال مې په دې نغم کښلو اخته کړی و، خطا ايستلی مې و، اوس ستا وعده هم پوره سوه نغم هم تيار سو، باچا وو، د لاسه مې نه ورسره کېده، نو د ناچارۍ اوس ورتلم." نکل دغسي دئ که

مي پر پرېدې که مي وژني؟ "

سوداګر ورته وویل چي پر تا دي شابس وي، منګر د دغه مخه ورځه، ما هغه باچا ته وربخښلې يې.

"غوږ دي دئ" ښه ! "ښه !"

څه سر دي ګرځوم باقي دی پاته سو، پوهېږې چي دا هم رارهي سوله راغله باچا ته.

باچا پوښتنه ځني وکړه چي څونه عمر دي وکی ولي؟

دې دانکل ورته وکی، چي داسي مي ځان جوړ کړی و په نغم ننوتلم نابېره سوداګر راغی رابانـدي، تـوره يـې رابانـدي وکښله، وژلـم يـې، مـا دا کیفیت ګرده رشتیا ورته ووایه سوداګر چي په اصل حقیقت خبر سو، نو يې وويل چي ورځه، ولاړه سه ما باچا ته وربخښلې يې، نو د دغه سببه ناوخته راغلم.

باچا ورته وويل چي سوداګر دونه ښه مړانه وکړه، نو يه ! زما خور يې ما بير ته هغه سوداګر ته د يوې مجمې بتکيو سره بخښلې يې ورځه !

باچا دستي يوه مجمه بتکۍ ورکړې رخصت يې کړله، دې هم د بتکيو مجمه پر سر راواخيستله په نغم کي بير ته را رهي سوله.

کارونه د خدای ﷻ دي غله په دغه نغم خبر سوي دي نغم يې پر منځ سوری کړی دئ، ناست دي چي داړه ووهي، دا ښځه پر راغله يوه مجمه د بتکيو ډکه يې پر سر ده، په پساله هم بار ده، ښايسته هم ده، چټه هم ده، بې خدای ﷻ څخه ماسيوا بل څوک هم نسته، لکه سپوږمۍ داسي ځلېږي، غلو چي ورته وکتل راوې ګرځول چي خدای ﷻ ډر کړه، اول يې طلاوي ځني واخيستلې، باره يې پوښتنه ځني وکړه چي دا مجمه بتکۍ چا درکړې، چيري تللې وې، چيري ځې، د چا ماينه يې؟

دې ښځي په رشتيا سره دا ټوله نکل سر تر پايه غلو ته وکی.

غلو وويل چي دوی دونه راستي او صداقت درسره کړي دي نو زموږ هم خور و مور يې ورځه په مخه دي ښه، بتکۍ يې بير ته په مجمه کي ور واچولې ايله يې کړه.

د سوداګر ماينه، بير ته د سوداګر کور ته راغله بيا يې دانکل ټوله

ورته وکی. سوداګر او ماینه بیرته سره کور او کهول سوه.

ښه ! اوس نو زه ستاسي څخه پوښتنه کوم چي په سوداګر او باچا او غلو کي کم یوه انصاف او مړانه وکړه، او کم یوه ښه وکړه ؟؟؟

مشر ورور وویل چي سوداګر ښه وکړه چي خپله ماینه یې د باچا او د ماینې پر صداقت و باچا ته وروبخښله.

مېنځوي ورور وویل چي باچا ښه وکړه چي بیرته یې ښځه د طلاوو سره سوداګر ته وبخښله، که نه وي باچا د چا څخه بیرېدی، او بیا سوداګر هم ور وبخښله، او پر مین هم و، د باچا څخه خو هیڅ باز خواست نسوای کولای. کشر ورور ورته وویل چي یه ! چیري ؟ غلو مړانه وکړه چي مفت پر داسي ښځه او بتکیو قادر سوله او بیرته یې دا وبخښله، ایله یې کړه، بتکۍ یې ور کړې، اصل انصاف غلو وکی. د قاضي لور وویل : وینې قاعده دا ده چي غل د غلو مل وي، ورکه ! غلا دي کړېده غمی ورکه ! ولي چي د غلو مل یې ! تا د غلو خوا ونیوله، نو غمی دي غلا کړی دئ ور یې که چي ته هم دغسي په انصاف والاوو کي حساب سې لکه ته چي وایي !

کشر ورته وویل چي بېشکه زه غل یم غمی مي اخیستی دئ، خپل غمي دي واخلي، پر تا دي آفرین وي، منګر قاضي صاحب که دي خوانه بدېږي، ته هم والله که نر یې، ښځه یې ښځه !!!

د قاضي لور ورته وویل چي پر تا دي آفرین وي، که زه ښځه وم نو والله که بل سړی مېړه کم، بې تا بل مېړه پر ما حرام دئ !!!

وروسته په دې خبرو او فیصلې قاضي او باچا خبر سوله راغله محکمې ته، باچا د قاضي لور ته آفرین ورکی، و کشر ورور ته یې وویل چي د قاضي لور بېشکه ستا ده، وروسته قاضي په هغه محکمه کي د خپلي لور نکاح په هغه دریشي کي د کشر سره وتړله، غمي یې یو یوه ته، یو بل بل ته ورکی.

باره درې سره وروڼه، باچا د قاضي د لور سره، رخصت کړه کور ته په خوشحالي راغله، پس له دغه یو تر بل سره جارېدله سره کور و کهول سوله.

ما ته یې وویل چي ورځه نکلچي ! د انصاف، اتفاق، ښه ورور ګلوي، راستي، عقل او سنجش دغه نتیجه ده، په یاد یې ولره، ځه په مخه دي ښه !!! زه دا یم راغلم دوی مي پرېښووله.

# حلاله مزدوري

يو ښکلی ځوان و، یوه یې مانینه، یوه یې سپین سرې مور، او دوه درې یې سر ونیمسر چیچیان وه.

مور یې ناجوړه سوله، دا زوی یې راوغوښت، ورته وې ویل چې زویه ! زه مرم فقط دوې خبرې وصیت درته کوم.

ده وویل : وکه ادې جانې.

مور یې وویل چې زویه ! یو مې دا وصیت دئ چې بېکاره او لټ به نه ګرځې، په خپل وچ متېه به خپل عیال ساتې.

دوهم وصیت مې دا دئ چې حلاله مزدوري به کوې، دا دوه وصیته مې پر ځای که، عمري به په آب و عزت یې، پر هر چا به ګران یې، دښمن به نه لرې، د چا به بد نه ایسې.

ده ویل : ښه دئ پر غبر ګولېمو.

لنډه دا چې مور یې مړه سوه، پخوا د عیال په نفقه او ګذاره کې مور ډېر کومک ورسره کاوه، اوس نو د عیال خواري او تکلیفونه خاص د ده په غاړه کې ولوېدله.

څو عمر په حلاله مزدوي پسې ګرځېدی، پوښتنه به یې کوله چې زه په حلاله مزدوري پسې ګرځم، حلاله مزدوري کوم، منګر چې چا به ورته وویل چې څنګه حلاله مزدوري کوې؟

ده به جواب نه سوای ورکولای، او نه دی او نه بل څوک د حلالي مزدورۍ په معنی پوهېدی، چې حلاله مزدوري کمه ده او څنګه وي؟

عیال یې بیخي بې پېردې سو، وږي او لڅ سوله، دی بېکاره ګرځي نه پوهېږي چې حلاله مزدوري نو کمه ده، چې زه یې وکم.

يـوه ورځ يـې مـاينې ورتـه وويـل چـي سـړيه ! تـه ولـي يـوه خـواري او مزدوري نه کوې؟ خو ګرده ورځ او لګ سولو، بېکاره او لټ ګرځې دا خو ښه کار نه دئ.

ده ورته وويل چي لټ نه يم، منګر چي ادې مړه کېده ماته يې وويل چي ته به حلاله مزدوري کوې، اوس زه په حلاله مزدوري پسي ګرځم، نه را پيدا کېږي، او زه نه پوهېږم چي حلاله مزدوي کمه ده؟

ماينې يې ورته وويل چي حلالي مزدورۍ خو ډېري دي، هره مزدوري حلاله ده، چي ته يې په خپل لاس ځانته مرداره نه کې.

ده وويل : څنګه ؟

مـاينې يـې وويـل : چـي حلالـه مـزدوري دا ده چـي پـر لـږ مـزدوري صبر وکې، په ډېره پسي ونه ګرځې، مطلب دا دئ چي که لږ وي که ډېره، ته بايد مزدوري وکې، ځان بېکاره پرې نهږدې، په يوه کار دي بايد لاس بوخت وي، داسي نه چي تـه نفس کوې اّو په سپکه مزدوري لکه جارو کښي يا په پنډي توب شرمېږې، په حکومت او منصب پسي ګرځې، يا دا چي وايي د دې کار مزدوري او پيسه لږ ده، په ډېره پسي ګرځې، بل دا دئ چي د هر چا کار چي دي ونيو، مزدور يې سولې، بايد د هغه سړي مزدوري او خدمت په ډېر صداقت او راستي سره وکې، او د ده تر خيال بايد زيات کار وکې، او په کار کي پس رانه سې، او په کار و خدمت کي يې سستي، لټي او نامردي ونه کې، او وس بايد وکې چي په کار کي خپل بادار خوشحاله او راضي کې چي تاته د هغه کار مزدوري در کوي، په ښه نيت، د زړه په اخلاص او په ورين تندي يې در کي، که څه هم لږ وي، نو به ستا په مزدوري او ګټه کي خداى ﷻ بر کت کښېږدي، دښمن به نه لرې، پر هر چا به ګران يې، په آب او عزت به يې، او که نفس کوې په سپکه مزدوري شرمېږې، يا په لږ مزدوري سر نه کښته کوې، په ډېره پسي ګرځې، يا په کار کي لټي او نامردي کوې، په راستي يې نه کوې هسي خپله ورځ تېروې، شپې او ورځي حسابې او خپله مياشت پـوره کـوې، بـادار بـه درڅخـه خوشحاله نـه وي پـه تريـو تنـدي بـه مـزدوري او پيسـه در کـوي، او درتـه وبـه وايـي چـي "واخلـه يـوه دي مـه دوه کېږه، په نس مه مړېږې." نو د هر يوه به بد درڅخه راځي، تل به خوار او بې

عزته گرځي، رزق به دي برکت نه کوي، نو يه ! ته بېکاره مه گرځه ولاړ سه يوه بل وطن ته که دلې څوک مزدوري نه در کوي، چي بل وطن ته ولاړې اول سړی چي هر څوک درباندي پېښ سو د هغه مزدور سه، په لږ و ډېر پسې مه گرځه، مطلب کار په راستي سره کوه.

نامردي مه کوه بېکاره مه گرځه !

ده وويل : ښه دئ.

لنډه دا چي را رهي سو، ځي بل وطن ته، هله هله يوه ښار تـه راغـی، باره يو سپين ږيری سړی پر پېښ سو.

سپين ږيری ور ته وايي : ځوانه د کم ځای يې، په څه پسې راغلی يې؟ ده ور ته وويل چي مثلاً د پلاني ځای يم پـه حلالـه مـزدوري پسي راغلی يم، چي کم ځای حلاله مزدوري وکم.

سپين ږيري ور ته وويل چي راځه زه به حلاله مزدوري درکم منکر هو په دې شرط چي ته يې ځان ته مرداره نه کې، يعني نامردي پـه کار کـي ونه کې، او بل به زما په خوله کوې، هر څه چي مي در ته وويل دلايل به نه راسره وايې، او جواب به نه راکوې، زياتـه نو بيا وگوره چي زما پيسه چي تاتـه يې درکوم څونه برکت کوي، او وگوره چي حلاله ده که يه ؟

ده وويل : ښه دئ څو راکوې د مياشتي؟

سپين ږيري وويل : درې ايکی درکوم.

دئ اريان سو، چي په درې ايکی به نو زه څه وکم، زه بې وخورم که بې عيال ته ور ولېږم، خو بيرته يې د مايني نصيحت ور په ياد سو ويل: "ښه دئ قبولي مي دي" سر له نن څخه زه ستا مزدور يم. آ ول ښه دئ.

آ بس ! د سپين ږيري مزدور سو، هغه کارونه وروښووله چي دا کـار بـه کوې، دغه کار به کوې هغه کار به کوې، ډوډۍ به هم زه درکوم.

سپين ږيری هم ښه سړی دئ، خپل لمونځ او وظيفه کوي دی خـورا پـه راستي سره کار کوي.

سپين ږيری پسي گوري چي ښـکه کـار کـوي، خـو دغـه د ده کـار يـې خوښ سو، هه هه څو مياشت پوره سوه، يوه دوې ورځي لا تيري سولې باره درېيمه ورځ سهار وختي سپين ږيري تـه ورغـی چي اوس مي نو مزدوري

راکه، که دي مهرباني کيږي.

سپين ږيري جيب ته لاس کی، ويل "پر دواړو لېمو !" دري ايکۍ يې د جيبه څخه ورته راوکښلې ويل ها، دغه دي زويه دا دي درې ايکۍ مزدوري واخله دارو دي سه، منګر ولاړ سه سبا وختي بازار ته په دروازه د بازار ور ننوزه څه، هر څوک چي اول په مخه درغی هر شي چي يې خرڅاوه که ښه و که بد چرت مه پکښې وهه څني رايې نيسه، نو وروسته بيا ګنج ته ورسه يا په بازار کې مطلقي د وطن په سرې پسي وګرځه چي شناخته دي وي، که دي پيدا کی دغه شی چي دي رائيولی دئ، وهغه ته يې ورکه او ورته ووايه چي دا واخله زما کور ته يې يوسه او زما عيال ته يې ورکه، بيا نو راځه خپل کار دي کوه.

ده ويل : ښه دئ.

څه سر دي ګرځوم ده هم د سپين ږيري په خوله وکړه، په دابل سبا وختي ولاړ بازار ته، اول وار يو سړی په مخه ورغی چي درې دانې انار ورڅخه دي، خرڅوي يې، ده ورته وويل : چي دا انار په څو دي؟

هغه ورته وويل : په درې ايکۍ.

ده دستي درې ايکۍ د جيبه ورته راوکښلې، انار يې څني رانيول، انار هم وچکلک دي، باره راغی په بازار کي وګرځېدی، وګرځېدی د خپل کلي يو سړی يې پيدا کی، دا درې دانې انار يې په دسمال کي ور وګنډل ورته وې ويل چي دا به زموږ کره يوسې، زما ماينې ته به يې ورکې.

هغه ويل : ښه دئ انار يې څني راواخيستله.

دی بير ته راغی خپله مزدوري کوي.

هغه سړي انار راوړه په دسمال کي يې ګنډلي دي د ده کور ته يې ور ړغ کړه، ماينه چي يې ورته راغله ده دا دسمال ورکی ورته وې ويل چي : "دا دي مېړه راکړي دي" نه يم خبر چي څه شي دي، سلام يې وايه او ويل يې : "دا مي ماينې ته ورکه !"

ماينې يې دا غوټه راواخيستله درې دانې کلک شيان پکښې کي دي، چي خونې ته ننوتله چيچيان يې باندي راټول سوه چي بابا مو څه شي رالېږلي دي، چي دسمال يې خلاص کی که ګوري وچکلک انار دي د ماينې يې خوا

بده سوله، د درده يې د مځکي وويشته چي ته دا دونه عمر تللی وې، تا دا وچکلک درې دانې انار راولېږله، دا نو څه کوو؟ دې چي انار وويشتله دا يو انار مات سو، دانې يې په خونه کي دانه دانه سولې، خونه په روښانه سوله، دې چي ورته وکتل که ګوري ګرده جواهرات او سره لعل دي، باره يې چابک چابک ګرده دانې راټولي کړې، هغه نور دوه انار يې هم راواخيستله چي ولچي دا هم د جواهراتو ډک دي، ګرده يې په صندوخ کي واچول صندوخ يې کلپ کی، يو څو دانې يې راوړې ښار ته پټ يې پر يوه صراف خرڅي کړې، وځان او عيال ته يې ښه کالي وکړه، غنم، وريجي، او غوښي يې واخيستلې، اوس نو په استراحت سوله، شکرونه کاږي او په مېړه پسې دعاوي کوي.

څه سر دي ګرځوم هلته يې د مېړه د مزدورۍ بيا مياشت پوره سوله، سړی بيا ورغی سپين ږيري ته يې وويل چي مياشت پوره سوله، اوس که مهرباني وکې چي مزدوري مي راکې؟

سپين ږيري بيا جېب ته لاس کی درې ايکۍ يې ورته راوکښلې ور يې کړې، او ورته وې ويل چي سبا بيا وختي ولاړ سه ښار ته، تر لومړۍ سودا مه تېرېږه هر شی چي په مخه درغی که يې خرڅاوه وايې خله کور ته او عيال ته يې ولېږه، منګر د يوه ښه سړي په لاس يې واستوه چي امين وي. ده ويل : ښه دئ.

سړی بيا سهار وختي ښار ته راغی، اول سړی په مخه ورغی يوه پيشي ورڅخه ده، ده ورته وويل : کاکا دا پيشي نه خرڅوې؟

هغه ويل : خرڅوم يې.

ده وويل : په څو ده؟

هغه ويل : په درې ايکۍ.

ده دستي توکل وکی درې ايکۍ يې ورکړې، د بادار په خوله يې وکړه، پيشي يې ځني واخيستله، بيا راغی وګرځېدی وګرځېدی، د دوی د کلي يو سوداګر دئ خورا ډېره دنيا لري ډېر معتبر دئ، دا يې پيدا کی، دغه پيشي يې ورکړه چي دا مي په مزدوري ګټلې ده، خدای ﷻ به کوي ته به کوې، دا پيشي به زموږ کره وړې، او زما ماينې ته به يې ورکوې.

سوداګر وخندل چې دا سړی لکه چې تازه لېونی سوی دئ باره یې وویل چې پیشي څه کوې، چې استوې یې، کور کې خو پیشیاني ډیري دي، هلته لږ دي چې ته نوري استوې؟

ده ورته وویل چې ته یې څه کوې که ښه کوې ته یې یوسه زما ماینې ته یې په لاس ورکه.

سوداګر ویل ښه دئ، که خدای ﷻ کول امانت به دي ورسوم بېغمه اوسه!

باره سوداګر پیشي واخیستله په قفس کې یې واچوله وې ویل: "زه سبا وطن ته ځم یو بې سم".

دی را رهي سو راغی د سپین ږیري مزدوري کوي.

سوداګر په دا سبا مخ د وطن او کور پر خوا را رهي سو، هله هله وایي په دغه شپه نه په دا بله شپه یوه داسي ښار ته راغی چې ګردسره پیشي پکښي نسته او نه چا لیدلې ده.

لنډه دا چې په کاروانسرای کي یې واړول، غټ سوداګر دئ نوم یې پروت دئ.

ماښام د دغه ښار باچا سوداګر مېلمه کی، سوداګر یې ور وغوښت.

سوداګر چې راغی دربار ته کښېنوست، د ډوډۍ وخت سو که ګوري چې د خوني په کونجانو او شاوخوا کي پیره داران ودرېدل، لښتي یې په لاسو کي ونیولې، سترخان هوار سو ډوډۍ راغله کښېښووله سوه، "یو وار ورور ته دي ووایم" د دباندي څخه او د خوني د کونجانو او شاوخوا څخه موږکان راووتل. پیره داران او نوکران یې په لښته وهي و سترخان ته یې نه پرېږدي شړي یې. څه سر دي ګرځوم دغه ډوډۍ یې په ډېر زحمت وخوړله سترخان ټول سو.

باره سوداګر ورته وویل چې صاحبه! ولي پیشي نه ساتې داسي په عذاب یې؟

باچا ویل: پیشي څه شي ده؟

ده وویل: ولي تا تر اوسه پیشي نه ده لیدلې؟

باچا ویل: یه!

بس سوداګر سړی واستاوه د هغه مزدور پیشي یې راوړه نو وې ویل : دغه پیشي ده، د موږکانو قاتله او دښمنه ده، دا چې په کور کې وي یو موږک به په سترګو ونه وینې.

آ بس ! باچا ویل : دا ماته راکه.

سوداګر ویل دا خو امانت ده، د بل چا ده، یو مسکین سړی دئ د هغه ده، د هغه کره یې وړم.

باچا ویل : یه ! دا به خامخا راکوې دغه دئ هر څو روپۍ چې غواړې وایې خله هغه مسکین ته یې ورکه.

څه در ته ووایم جکه جکه پیشي یې مثلاً په لس زره روپۍ باچا ته ورکړه.

باچا چې پیشي ایله کړه یو وار پیشي ور په هوا سوله څو موږکان یې ونیوله مړه یې کړه، څه چې پاته سوله ولاړه په غارونو تله، باچا خوشحاله سو. سوداګر په دا سبا رابار سو، روپۍ یې راواخیستلې د ځانه سره یې وویل : "ځه هغه نو پیشي څه کوي دا روپۍ د هغه له پاره ښې دي، پیشیاني خو هلته په کلي کې ډیري دي." څه سر دي ګرځوم سوداګر راغی وطن ته، د هغه سړي کره ورغی و ماینې ته یې لس زره روپۍ ورکړې، چې دا ستا میړه راکړي دي، هغه ویل چې زما عیال ته یې ورکه.

ښځې هم روپۍ ځني واخیستلې.

سوداګر خپل کور ته ولاړ. ښځه راولاړه سوله د ځانه سره یې وویل چې دا نغده دنیا څه کوو اوس مونو بس ده ولاکه یې زموږ کړوسی لا خلاصه کې، باره یې مځکې، باغونه او جایدادونه واخیستله، یوه ښه کلا یې واچوله جوړه یې کړه، ځان او کوچنیانو ته یې ښه نوکران، مینځیاني او مریان ونیوله، اوس نو بي بي سوله ګرده کلی لاس پر نامه ورته ولاړ دئ.

هلته یې د میړه بله میاشت پوره سوله، هغه بیا راغی بادار ته یې وویل چې زما مزدوري بس ده زه نوره مزدوري نه کوم، ځم کور ته چې خپل عیال ووینم.

سپین ږیري ویل : ډېر ښه دئ، د جیبه څخه یې درې ایکی راوکښلې ور یې کړلې، بیا یې ورته وویل چې سبا ښار ته ولاړ سه اول وار چې دي هر

شي رانيو، هغه شی به کور ته درسره یو سې، څه په مخه دي ښه، پر خدای ﷻ مي سپارلی یې پر رزق دي برکت سه په عزت اوسې، زه درڅخه خوشحاله یم ښه حلاله مزدوري دي وکړه آفرین! دی یې رخصت کی.
سهار وختي راغی ښار ته چي په دروازه ورننووت دستي اول یو سړی په مخه ورغی یوه زړه بنۍ یې په شا ده ناري وهي چي دا بنۍ خرڅوم.

ده ویل: ویل په څو ده؟

هغه وویل: په درې ایکۍ.

ده درې ایکۍ ورکړې بنۍ یې څني واخیستله، بنۍ ډکه ده دئ خوشحاله دئ چي دالکه چي جواري دي خوله یې نه کړه خلاصه، مخ د کور پر خوا را رهي سو د ځانه سره وایي چي څه دا یوه بنۍ جواري چي خورو، او خلاصوو یې څوک مړه څوک ژوندي، پوهان وایي: "چي د نن رزق دي پیدا کی، خدای ﷻ در ورساوه د سبا غم مه کوه" دا مو یوه میاشت بس ده، نور نو د انارو، پیشي او بنۍ په حال نه دئ خبر. څه سر دئ ګرځوم هله هله مزل پر مزل د نکل کار دئ دا دئ خپل کلي ته راغی، هغه ځیري غوړ پړ خیرن پیرن کالي یې اغوستي دي، چاودلي پښې یې دي، بنۍ یې په شا ده. د کلي خلکو وپېژاند، یو د بله یې سره ویل: "ګوره لا هغسي کنځکی اسکېرلی دئ".

باره چي ورغی خپل کور او سرای یې نسته، پر ځای یې ښه سپینه کلا او بنګله ولاړه ده، نوکران او مریان یې دروازې ته ولاړ دي، باره یې پوښتنه وکړه چي زما سرای، ماینه او عیال څه سوه؟

خلکو ورته وویل چي دغه کلا ستا د ماینې ده، دا نوکران او مریان دي د زامنو دي، عجبه ده چي ته تر اوسه نه یې خبر!!

لنډه دا چي دی غریب د وهمه او د بیري خپل کور ته نه سي ننوتلای.

باره یې یو مریي ته وویل چي دا کلا د چا ده؟

هغه ورته وویل چي د پلاني ده. " د ده نوم یې واخیست".

باره ده ورته وویل چي ورسه د دې کلا و خاوند یا بي بي ته ووایه چي پلانی نامی راغلی دئ، که یو وار مهرباني وکې دروازې ته راسې، یا ما در پر پرېږدې چي درسم.

مريې راغی وبي بي ته يې وويل چي داسي يو خوارکی سړی دئ په دروازه کي ولاړ دئ وايي " زمانوم پلانی دئ، که بي بي يو وار دروازې ته راسي، يا ما کور ته پرېږدي چي درسم کار مي دئ".

بي بي چي دروازې تـه راغلـه چـي داسـي يـې ورتـه وکتـل وې پېژانـد، دغسي يې کور ته ننيوست وې ژړل لاس و پښې يې ور مچ کړه، نو يې ورتـه وويل چي کور دي خراب سه ! تر کلي او کوره دي اوبه راوځړولې دا دونه دنيا دي وګټله راوادي ستوله، تـه لا هغسي اسکېرلی د بلا پـه ټکـي لړلـی راغلې، ولي ؟ خو زما و ستا کړوسی يې ولاکه تمامه کي.

دی اريان ولاړ ! ورته وې ويل چي مانو څه ګټه کړې ده، او څه شي او کومه دنيا مي درته رالېږلې ده؟ او دا يوه بنۍ مي رانيولې ده جواري دي که څه شي دي خوله مي لا نه ده ورخلاصه کړې.

دې ويل : د انارو په مينځ نه وې خبر؟

ده ويل : يه !

هغې وويل : هغه خو ګرده د جواهرو ډک وه سره لعل پکښي کي وه، ته راسـه دغـه دي دوه لا روغ دي چـي هغـه نـور دوه انـار يـې مـات کـړه ګـرده د جواهرو ډک وه.

ده دستي د بنۍ خوله خلاصه کړه چي دا بيا څه شي دي کې کتـل چي بنۍ هم د لعلو او جواهرو ډکه ده.

سوداګر يې راوغوښت چي پيشي دي څه کړه؟

هغه وويل چي پـه لس زره روپۍ مي خرڅه کړه، نکل يې ټوله وکی، روپۍ مي ستا ماينې ته ورکړې.

هغې ويل : ښشکه !

باره ده دا خپل نکل ورته وکی، چي په درې ايکۍ مزدور وم، دا شيان مي هري پلا په هغه درې ايکۍ رانيول را استول مي . ماينې يې وويـل : دغه ده حلاله مزدوري او د حلالي مزدورۍ برکت !!!

# مسګر او نجار

چې و، یو مسګر او یو نجار و، د دوی په منځ کې بحث سو یوه وویل: زه ښه کمالداره یم، بل ویل: زه ښه کمالداره یم.
نجار و مسګر ته وویل چې راځه چې سره معلومه یې کو.
مسګر وویل: ښه دئ ونیسه، ته هم هر رنګه کمال چې دي زده دئ راوې باسه، او زما هم هر څه چې زده وه میدان ته به یې در وباسم.
څه سر دي ګرځوم دوې هفتې یې مهلت سره کښېښو، پس له دوو هفتو څخه نجار یو صندوخ غوندي یو شی جوړ کی، دوه پیچونه یې پکښي کښېښوو له. چې د سر پیچ یې و پېچي سرې پکښي سپور وي په هوا کېږي چې د پای پیچ یې و پېچې راکښته کېږي.
مسګر یو د مسو ماهی جوړ کی چې سړی پکښي ننوزي او په اوبو کې چې ایله کې د دریاب ټوله ماهیان نیسي، او د دریاب لوی لوی نهنګان وژني.
لنډه دا چې دواړو خپل کمال و میدان ته سره راوړ، سره دعوا یې سوله، یوه ویل "زما کمال ښه دئ" بل ویل "زما کمال ښه دئ" خو نه سره ملامتېدل، وروسته یې پر دې صلح وکړه چې درځه چې باچا ته یې وروړو، د هر یوه کمال چې ښه و باچا به ووایي چې دا ښه دئ.
لنډه دا چې مسګر ماهی او نجار خپل صندوخ راواخیست راغله باچا ته، و باچا ته یې وویل چې صاحب، عرض لرو.
باچا وویل: ووایاست څه عرض لرئ؟ نجار ور ته وویل چې زه نجار یم، دغه سړی مسګر دئ زموږ په منځ کي سره بحث دئ سره دعوا مو ده، زه وایم چې زه کمالداره یم زما کمال ښه دئ، دی وایي "زما کمال ښه دئ زه کمالداره یم". نجار وویل چې ما دغه صندوخ جوړ کړی دئ، چې دغه د سر

پېچ یې وپېچی، او سرې پکنبي کښېنې، په هوا الوزي او دغه د پای پېچ یې وپېچی بیر ته راکښته کېږي.

مسگر وویل چي ما دغه ماهي جوړ کړی دئ د مسو دئ، چي سړی په ننوزي او په دریاب کي یې ایله کې، د دریاب هر رنگه لوی نهنگ چي وي پر برابر سي تر نس یې ښوی وزي وژني یې.

د باچا زوی ور ته وویل چي تاسي دغه دواړه موږ ته راکئ، چي موږ ازمیښت په وکو، بیا به حکم وکو چي د پلانی دا ښه کمال دئ، پلانی کمالداره دئ.

دوی وویل: ډېر ښه دئ.

دغه د باچا زوی د یو بل باچا پر لور مین و، چي په خوب یې ولیدلې وه، او هغه باچا خورا زورور و د ده هیڅ د لاسه نه ورسره کېده.

هغه باچا خپله لور په یوه داسي لوړه بنگله کي کښېنولې وه چي هیڅوک نه ورتلای او نه ورختلای سوای، د بنگلې خوله د ده تر تخت لاندي وه یوه مینځه یې ورسره کړې وه، چي د دې کار یې کاوه، ستې کړې یې وه، چي زما لور به نه څوک ویني او نه به یې چا ته ورکم.

آبس د باچا زوی پلار ته وویل چي په دې شیانو به زه تجربه وکم.

باچا وویل: ښه دئ ! "باچا د ده په مینتوب نه دئ خبر".

د باچا زوی څه بتکی ورسره راواخیستلې صندوخ یې دباندي راویوست پکنبي سپور سو، چي د سر پېچ یې وپېچی، یو وار صندوخ په هوا سو، جلو یې د هغه باچا د ښار پر خوا راوگرځاوه، چي دی یې پر لور مین و، چي په هوا سو راوې وهله و ښار ته نژدې سو، دا بل پېچ یې وپېچی صندوخ راکښته سو، صندوخ یې په شا راواخیست و یوه کلي ته راغی یوه مسکینه بوډۍ یې پیدا کړه.

بوډۍ ته یې وویل چي دغه دوې بتکۍ واخله ماښام به زه ستا کره تېره کم. بوډۍ ډېره خوشحاله سوله ویل خدای دي راوله د سره شل شپې تیري که، زه په کور کي نه لور لرم نه زوی، ته مي زوی یې.

باره د بوډۍ کره ورغی، ماښام یې ډوډۍ وخوړله وروسته یې بوډۍ ته یو موټ بتکۍ ورکړې چي دا واخله زه یوه پوښتنه درڅخه کوم، که دي

درک په لاس راکی، بیانو هر څه چي غواړې، زه یې درکوم.

بوډۍ ډېره خوشحاله سوله وې ویل: پر سترګو زویه په اور درسره ګډېږم، هر څه ستا کار چي وي کوم یې ووایه!

ده ورته وویل: د باچا دلور درک په لاس راکه.

بوډۍ ورته وویل چي زویه! مه کوه، د باچالور ته څه کوې، هغې ته خو مېږی نه سي ورتلای، پر باچا خورا ګرانه ده چاته یې نه ورکوي او نه تر اوسه چا لیدلې ده، هغه ستې ده مېړه نه کوي، او هغه خورا په لوړه بنګله کي ناسته ده، د بنګلې خوله د باچا تر تخت لاندي ده، هیڅوک نه سي ورتلای.

ده وویل: ته یې هسي سبا په اشاره راوښیه زیاته ما او خپل کار سره پرېږده.

بوډۍ وویل: ښه دئ.

سبا چي سو بوډۍ دمخه سوله، دی په پسې دئ، راغله اول یې د باچا باغ وروښو، بیا یې د لور بنګله ور وښووله چي سل ګزه لوړه ده، بیرته کور ته سره راغله.

ماښام چي سو د باچا زوی دستي په صندوخ کي کښېنوست صندوخ یې په هوا کي برابر ورغی، تر دربچه ورننووت صندوخ یې د بنګلې په پنجره کي کښېښو.

د باچالور چي داسي ورته وکتله که یې کتل چي یو کښېده ځوان دئ، چي سترګي نه پر رونېږي، دې هم د روه زړه پر بایلو، پر مینه سوله، منګر ډیر اریانه ده چي دا انسان دئ او که پیریان دئ په بڼه د انسان سوی دئ. باره هلک خپل حال ورته ووایه، چي دا اوه کاله کېږي چي ته مي په خوب کي لیدلې یې، منګر هیڅ رسد مي نه کېدی، اوس دغه دئ راغلم څنګه یې کوې؟ منګر ځای یې نه وروښود.

دې ورته وویل چي زما زړه دي هم په دغه یوه لیدو یووړی، بل مېړه پر ما حرام دئ بېتا ماسوا، منګر ته څنګه راغلې، رنګ دي د انسان دئ، انسان او دا ځای؟

ده ورته وویل چي زه انسان یم، شاهزاده یم د پلاني باچا زوی یم بېغمه اوسه اما خپل ځای نه درښیم.

لنډه دا چې شپه یې سره تېره کړه، د پېشلمي پر وخت بیر ته ځني راووت، په صندوخ کې سپور سو، را په هوا سو، د ګل باغ سره یوه ځګه ګڼه ونه ده، دلته کښته سو، د دې ونې په سر کې یې صندوخ کښېښو، بیر ته راکښته سو، راغی د بوډۍ کره.

وایي چې د باچا لور یې هر سهار د ګل ګلابو سره تلله په دې سهار چې یې وتلله تر پخوانی ډېره درنه سوله، او رنګ یې هم تک ژړ، شونډان یې وچکلک دي.

مینځه راغله و مور ته یې وویل چې نن بي بي د پخوا تر عادت په تاله کې زیاته وختله، رنګ یې هم تک ژړ او شونډان یې وچکلک دي.

مور یې راغله پوښتنه یې ځني وکړه چې "ولي داسي خرابه سوې یې، څه در سویدي؟"

لور یې وویل چې برایې یو سړی راغی تر سهاره راسره و، ږغ مي هم د بدنامۍ څخه نه سوای کولای سهار بیر ته ولاړ نور نو نه پوهېږم چې د کمي خوا راغی؟ مور یې راغله و پلار ته ویې وویل چې داسي نکل دئ. پلار ته یې خورا قهر ورغی، حکم یې پر پیره دارانو وکی چې که مو تر سهاره ستر ګې سره وروړې ستر ګې به مو وکاږم، دی هم راغی پر تخت پرېووت، منګر تر سهاره یې ستر ګې جګې نیولې وې.

سهار سو، مینځه راغله ویل : هغه آش هغه کاسه، بیا سړی راغلی و، بي بي بدخوابه پر ته ده لکه انسان دونه درنه ده، او تر پرون لا خراپه سوېده. مینځې چې دا بیان د بي بي و مور او پلار ته وکی، مور او پلار یې راغله لور ته یې وویل چې د کمي خوا سړی در ته راځي؟ ستا په مصلحت دئ، نه دئ څنګه چل دئ، ته بیان وکه؟

لور یې ور ته وویل: په نیمه شپه ماله راځي، په چا حصار نه دئ، موري هغه زما یار نه دئ، نه زما په مصلحت راځي، که زما په رضا وای ولي مي رنګ ژړېدی، او ولي به مي ویل چې سړی راځي، خو زه په خواږه خوب بیده یم دپاسه ترپ راننوزي، زیاته نه یم خبره چې د کمي خوا راسي.

باچا اریان ولاړ، و ماینې ته یې وویل چې د دې پای یې څه؟ اوس لا نور خلک نه دي خبر، سر ورخ دئ، که نور خلک خبر سوله، نوم به مو په تمامه

دنیا کي بد سي، اوس يې يوه چاره راښيه !
ماینې يې ورته وویل چي چل يې دادئ چي سهار دغه خوشبو او دوه درې ډوله رنګ به سره ګډ کو، پر لور به يې شاوخوا راګرځوو، او تر کړ کیو لاندي به يې هم واچوو، که انسان وچي راغی څراغ به نه وي ټوله ځان او کالي به يې په رنګ سي ته به سهار وختي لا حکم وکې چي جار ووهي چي د ښار او چار اطراپو ټوله خلک دي راحاضر سي هر سړی که پاته سوی وهغه د باچا غل دئ، حکم يې د مرګ دئ، که انسان و معلوم به سي او که پېری ونه به سي معلوم.
آ بس ماښام يې د کړ کیو لاندي رنګونه او خوشبو واچوله پر لور يې شاوخوا دغه پوخ رنګ راوګرځاوه، څراغ يې ځني یووړ.
ماښام د باچا زوی بیا په صندوخ کي سپور سو راغی تر دربچې ورننووت، د نجلۍ سره په مجلس اخته سو.
نجلۍ ورته وویل چي ګرده بنګله يې د رنګه ډکه کړې ده ټوله ځان او کالي دي په رنګ سوه، سهار دي دستي نیسي، د ژوند څکه ولاکه وکې، که مي بېولای سې خو ښه او که مي نه سې بېولای د ځان چاره وکه! ده وویل: توکل پر خدای دئ، خو شپه يې سره تېره کړه سهار پر سپېدو راووت، صندوخ يې د درختي په سر کي کښېښو د لمانځه مال دئ د دوبي کره راغی دوبي ته يې کالي وکښله ورته وې ویل چي ستا يو جوت کالي راکه چي وايې غوندم دغه به ژر پرېمینځې. دوبي کالي ورکړه وايې غوستله، دوبي بیا د ده کالي واغوستله، سهار وختي يې جار وواهه چي څه چي خلک دي که دننه که دباندي ټوله دي ارګ ته راسي، که يو پاته سوی وهغه د باچا غل دئ حکم يې د مرګ دئ.
څه سر دي ګرځوم دا دئ خلک جوپې جوپې ارګ ته راځي، د باچا په حضور کي تېرېږي، هه هه د خلکو په منځ کي دوبي معلوم سو، باره باچا نور خلک ایله کړه دوبي يې راوګرځاوه.
دوبي ناخبره دئ، باره يې د دوبي څخه پوښتنه وکړه، چي ته زما لور ته بنګلې ته راځې، دا کارونه ته کوې؟
دوبي ګوز و اروا سو، وې ویل: یه صاحب ! زه دوبي یم.

باچا وویل: دا کالي دي د څه وه؟

دوبي وویل: دا کالي سهار یو ځوان راکړه چي راپرېمینځه، زما کالي څیري وه چي راتلم دغه مي واغوستله زه خو دوبي یم د هر یوه کالي مینځم، مدام د بل کالي اغوندم.

باچا وویل: ورسه هغه سړی په لاس راکه، که نه وي ولاکه د ژوند څکه راڅخه وکې.

باره یې د دوبي سره پټ دوه کسه سپاهیان بې درېشۍ ورسره کړه.

دوبي راغی کالي یې ده ته راوړه ورته ویې ویل چي کالي دي نه پاکېږي دغه دي.

سپاهیانو دستي ورحمله کړه ځوان یې ټینګ ونیو، ویل درځه باچا غوښتی یې، دی هم زړه ور ورسره را رهي سو رایې وست باچا ته.

باچا پوښته ځني وکړه چي ته بنګلې ته راځې؟

ده وویل: هو.

باچا وویل: په څه چم؟

ده وویل: چم یې څه کوې، چم یې نه درښیم خو زه درځم.

باچا ورته وویل چي وژنم دي، که نه وي راتهووایه په څه چم راځې؟

ده وویل چي ټوکر ټوکر مي کې چم یې نه درښیم.

باچا هم دستي حکم وکی چي ورسئ حلال یې کئ.

دستي جلادانو راکش کی د ګلباغ د څنګه یې راتېروي باره دې ځوان جلادانو ته وویل چي د دغه ګلباغ سیل مي نه وکی، ما یې خورا صفت اروېدلی و، نو که تاسي دونه مهرباني راسره وکی چي یو وار دغي جګي درختي ته وخېژم تاسي لاندي راته ودرېږی چي زه ددغه باغ سیل وکم ډېر به ښه وي نور ارمان نو په زړه کي نه لرم او دننه خو مي څوک نه پرېږدي نه دونه وخت سته.

دوی وویل: ښه دئ ور وخېژه.

ځوان چي درختي ته ور وخوت په صندوخ کي کښېنوست وې ویل: د خدای په امان! ولاړ والوت!!!

جلادان ارياني واخیستل چي باچا خو مو وژني دا یې څه چل وکی، باره

يې سره وويل چې يو پسه به حلال کو نيچې به په سرې کو، موږ به ووايو "دغه دئ الال مو کي" نو حال به پلن واچوونه به وايو چې راڅخه ولاړ يا څنگه و څنگه سو.

باره يې يو پسه حلال کی لاسونه يې په سره کړه راغله چې حالا مو کی. باچا وويل : ډېر ښه !

اوس نو د باچا زړه ېغمه سو، چې ماښام سو د باچا زوی راغی بنگلې تـه تر دربچه ور ننووت.

د باچالور ته يې وويل : چې درځه په صندوخ کي کښېنه.

د باچالور او دی دواړه په صندوخ کي سره کښېنستله صندوخ په هوا کي ولاړه.

سهار چې مينځه راغله که گوري "ځای سته جولا نسته" باچا ته راغله چې بي بي خو نسته.

لنډه دا چې باچا هر څه پور تـه کښته سو د لور پته او خوان يې ور ک سو، باره يې حال پلن واچاوه.

د باچا زوی سره د ماينې کور ته راغی.

نغارې سولې چې د باچا زوی سره لـه ماينې چې څو کاله دی پر مين سوی و لاس ته يې راوستله.

وروسته باچا نجار تـه نهايتي ډيري روپی ور کړې، او وې ويل : ستا کمال پر سر دئ ولي چې عمومي فايده لري، او مسگر تـه يې هم آفرين او بخښښ يې ور کی، رخصت يې کړله، ماهی او صندوخ باچا و ځان تـه پـه بيه ځني واخيستله.

نوټ : د ماهي د ازميښت نکل مي نه دئ اروېدلی.

# ګیدړه او پړانګ

ته وا ښه ! ښه.

چې و یوه ګیدړه وه خورا وږې وه، ګرده ورځ یې په غره کې څه نه وه پیدا کړي.

باره یې وویل چې خدایه ! زمري او پړانګ ته دې دونه لوی صورتونه او تېرې تېرې چمبې ورکړي دي چې د غاره راوو تل دستي بیا ښکار وکې، ځان موړ کې، زه ګرده ورځ وګرځېدم، دغسې وږې پاته سوم، او دغسې عاجزه یم چې یو موړ ک په خواري نیسم، خو بیر ته یې شکر وکېښ وې ویل خدایه ! شکر دئ ماته دې تر ټولو حیواناتو پوهه راکړې ده. څه سر دې ګرځوم راځي چرت وهي، د لوږې یې پر ستر ګو پېروي را اوښتي دي، اوس غواړي چې د خپلې پوهې څخه کار واخلي، او خپل "مکر" خرڅ کې، خو هله هله دا ده نابیره پر یوه پړانګ پېښه سوله، پړانګ بیده دئ.

ګیدړه راغله وې ویل: السلام علیکم ستړی مه سې چیري وې چې نوکان مې درپسې وواته، دا یو کال کېږي چې درپسې ګرځېدم، ستا پلار دې خدای ﷻ وبخښي ډېر پهلوان او ګړندی و، تل مدام به تر دغه ګړنګ غورځېدی، او ته کوچنی وې زما و ستا د پلار سره آشنایي وه، ده به مدام ویل چې "خدای ﷻ مې دې تر هغو نه وژني څو په دغه زوی دغسې پهلواني زده کم، چې تر دغه ګړنګ وغورځي، بیانو که مړ سم ارمان نه لرم." بیا نو زه وطن ته ځني ولاړم، بیا مې تر اوسه ته نه وې لیدلی اوس مې دا دئ ولیدلې پیدا مې کړې، ښه انا دې جار سي خو شکر دئ ځوان سوی یې، او نه یمه خبره چې هغه د پلار مړانه او پهلواني درپکښې سته، که یه؟ ته به تر دغه ګړنګ وغورځې که به نه وغورځې؟

پړانګ وویل: انا عجبه دي وکړه نو زه خو هم د هغه پلار زوی یم، ولي دي داسي اوم ګمان دئ، درڅه سیل مي کوه چي څنګه تر دغه ګړنګ وغورځم.

ګیدړي وویل: ودي ګورم، که وغورځېدې بېشکه د هغه پلار زوی یې. پړانګ راغی د ګړنګ د سره یې تاو راوکیښ را په هوا سو، لاندي تر ګړنګ ولوېدی. هډونه یې میده میده سوله منګر مړ لا نه دئ.

ګیدړي دغسي ور الا کړه، ویې ویل: فضل وکې خدایه فضل! اما په زړه کي د خوشحالی ګوړي خوري، چي راغله د پړانګ حال یې ولیدی، ښه یې نظمونه وکتل پړانګ بېسده دئ. فکر یې وکی چي نه جوړېږي نو راغله ناره یې پر وکړه، څه بې ویلي وي. هر څه چي ویلي وه وابې وري:

ته بې عقل وې پلنګه
درته وایم راشوه سوې د ګړنګه
کل صورت دي رېز مرېز سو
دا د خیال وی لکی دي سوه په وینو رنګه

پړانګ فکر وکی چي اوس خو دي هیڅ د لاسه نه ورسره کېږي پسات یې در وکی، اوس دي بېعقل هم بولي، یه اوس خو ورته احتیاج یې، راسه د دوستی لاره ور دمخه که، نو یې ناره پر وکړه:

ګیدو راسه زما خدمت که
درته وایم غمخوري مي په صورت که
که د دي واري خدای جوړ کړم
درته وایم همېشه به ستا خدمت کړم

ګیدړي فکر وکی چي خدای دي خواره که، پړانګ ژوندی دئ، داسي پسات دي هم په وکی خو که جوړ سو رښکی به دي وباسي، یه راسه تر هغو یې خدمت کوه څو مري یا جوړېږي، که مړ سو هم، که ژوندی و جوړ سو بیر ته به یې دا بدګماني د زړه څخه ووزي، او یو د زړه ډاډ هم ورکه. نو راغله د پړانګ خدمت کوي، بدن یې ور مږي او چاپي کوي یې، د پړانګ سر یې پر زنګانه کښېښو، نو د زړه د ډاډ له پاره یې ناره پر وکړه:

زه هغه ګیدو یم
شېره پړانګه اموخته په مسخرو یم
ستا په مرګ مي خوا بدېږي
شېره پړانګه زه مینه ستا پر برېتو یم

پړانګ په دې ناره بیرته لږ څه د زړه تله وسوله، خو پروت دئ ژګېروی یې دئ بېسده سو.

ګیدړي خیال وکی چي لکچي مړ سو، نو راغله په کوناټي یې خوله ور ولګوله، د پړانګ د مخ پښې وښورېدلې، ژوندی دئ.

ګیدړي فکر وکی چي ژوندی دئ، او مري نه پاتېږي، دا پلا دي په کوناټي خوله ور ولګوله، په دښمني دي پوهېدی، چي ګیدړي پسات وکی، اوس که بیرته شل واره د زړه تسلي ورکم که جوړ سو والله که دي بېمر ګه پرېږدي وژني دي، که ځني وتښتې هم که جوړ سو در پسي ګرځي پیدا کوي دي، نو یه راسه داسي ناره پر وکه چي لا یې زړه ولوېږي مړ سي، نو یې ناره پر وکړه :

زه هغه ګیدو یم
شېره پړانګه چنګاو ستا په کوناټو یم
ستا په مرګ زه خوشحالېږم
منګر اوس دي ګماني د مخ په پښو یم

پړانګ ناره پر وکړه :

مېلې تا وکړې ګیدړي
ګیدوخانی همېشه دي چمبې غوړي
که د دې واري خدای جوړ کړم
دا د خیال چمبې به کړمه په تا غوړي

لنډه دا چي پړانګ آرام سو، ګیدړه راغله پر زړه یې لاس ور کښېښو، نظم یې وکوت، زړه یې نه غورځي، نظمونه یې لوېدلي دي، پړانګ مړ دئ، باره یې کوناټي ته وجوړېدله یو کوناټی یې وخوړ، شکر یې وکیښ.

ګیدړه خوشحاله ده، چي هره ورځ به داسي ځان مړوم، دا ورځ او شپه تېره سوه.

دا بله ورځ بیا راغله دغه بل کوناټی یې وخوړ، خورا یې ځان موړ کی، تېغونه یې وکښله، را رهي سوله چې اوس نو یو ځای یخ سیوری پیدا کې او تر لاندي بیده سي، چې راغله یو پاڼ دئ تر دغه پاڼ لاندي پرېوتله، دراز یې وکیښ، وې خندله وې خندله باره یې د ډیري خوشحالۍ څخه د توانه ووتله ناره یې وکړه :

ګیدو څه بده مړه ده

درته وایم چې یو پړانګ د دې مېله ده

هره ورځ په سره کرتۍ کې

درته وایم تر دې پاڼ لاندي بیده ده

وې شېر ګلابي – وې مسته شرابي

یو بل پړانګ دئ په دې غره کې ګرځي، دې پړانګ دا ناره واورېدله، داسي درد ورغی چې توبه ! باره یې بې څنګه وڅه په ګیدړې پسي را الا کړه چې دا څه وایې ستا جګنات وچه سه.

ګیدړې ځني را الا کړه، هله هله دا دمخه ده پړانګ په پسې دئ، څو یو ځای یې په خاشو کې ګیر کړه په خاشو ننوتله، ګیدړه خورا ستړې سوله، نو یې پر پړانګ مخ را وګرځاوه، د پړانګ څخه ګیله کوي چې "تا ماته شکنځل هم وکړه، او دونه دي لا هم وځغلولم" ناره پر کوي :

پړانګه تا وکړه بې باکه

درته وایم زما صورت دئ درې چاریاکه

راسه دا وار مې ایله که

درته وایم صورت مې ووتی د واکه

پړانګ په جواب کې ناره پر کوي :

ګیدو تا وکړه بې باکه

درته وایم زما صورت دي کی بېواکه

ګیدو تا به زه پرې نږدم

که مې پرېښوې ماینه پر ما طلاقه

یعني تا داسي بېباکه خبره وکړه چې "یو پړانګ مې مېله ده" چې زما صورت درته د درده بې واکه سو، اوس دي کله ایله کوم.

ګيدړي فکر وکی چي اوس دي نو ولاکه پرېږدي چي شل باني ورته وکي، او په دې خاشو کي هم نه ځني خلاصيږي، باره يې زور کړه د خاشوها خواته ځني ووتله، ځني ټوپ يې کړه.

پړانګ هم پسي ټوپ کړه، هله هله ګيدړه يو غار ته راورسيده، دا چي غار ته ننوتله پړانګ ور حمله کړه لکۍ يې غوټه ځني پرې کړه، ګيدړه بې لکۍ په غار ځني ننوتله.

باره پړانګ پسي بږغ کړه چي اوس نو ننباني سولې ستا خوله وچه سه، ته ومنه که دي پرېږدم، يو ګړی د غار په خوله کي ورته ناست و، چي هوسا سو باره ځني ولاړ.

ګيدړي دغه شپه په غار کي تېره کړه، پر خپل ځان او پر خپل عقل يې ډېر تو کړه، چي د ګيدړي رنګ دي بد کی، پټ به دي ښايسته خپل پړانګ خوړلای، څله دي نارې وهلې، خلک فيلان او قافلې نوشوي او سهي يې، تا دغه لږ عيش نه سوای سهلای.

څه سر دي ګرځوم ورور ته دي ووايم، سهار راغله د غار خولې ته، کرار کرار يې شا وخوا وکتل پړانګ نسته، باره راووتله، چرت وهي چي د لکۍ چاره څنګه وکم، په زړه کي يې دغه د لکۍ چل وسنجاوه، باره راغله پر دښت پر يوه غونډۍ د غره څخه ليري وختله، وې انګولل وې انګولل خورا نابودي کړږي يې وکښلې، يو ګړی باد دپرش څلوېښت ګيدړي ورته راغلې. ګيدړو ورته وويل چي خيريت خو دئ، څنګه دي يوازي پر دې غونډۍ نارې کړه؟

دې ورته وويل چي هو ! خيريت دئ، څوک مي نه درلوده چي در استولی مي وای، زه سپين سرې وم د ترپ نه وم، کورو ته نه سوای در تلای، چي خبري کړي مي وای، نو مي دلته نارې کړه چي ټوله راسئ.

ګيدړو وويل: د څه له پاره دي راوغوښتو؟

دې ورته وويل چي زما د لمسی واده دئ، و يوه ښه باغوالا ته مي ورکړې ده، په باغ کي ښه انګور لري يوه ښه تنګاچه پکښي سته، نو هغه زوم مي راته وويل چي:

خوانښي ! ته به خپلي ښځي مځي، يا شناخته که لرې باغ ته به يې

راولې، هلته انګور هم سته، او د اتڼ له پاره لويه تنګاچه هم سته، او د کلي نامحرم نسته چي وې ويني.
نو اوس درځئ چي ولاړي سو باغ ته، دغه لمسۍ مي په يوه ښه درب واده کو، چي بيا مي زوم ونه وايي چي دا ماينه او خوابښې مي بېکسه دي.
ګيدړو وويل چي انا ښه دئ خدای ﷻ دي خير درکي، شل واره به درسره ولاړي سو، خدای ﷻ دي مه بېکسه کوه، دا خو ښادي ده درځه !!!
آبس ګيدړه دمخه ده نوري ګيدړي په پسي دي، دا دئ يوه ښه باغ ته يې راوستلې باغوان نسته.
اول ګيدړي ورته وويل چي وګرځئ په باغ کي انګور منګور په بېغمه زړه سره وخورئ.
ګيدړي په جوو کي سمي سولې انګور يې وخوړه، په کلي کي دودونه خيژي. دا ورته وايي: اوس نو يو ګړی باد ښه غوښي او وريجي راوړي، هغه دئ پخوي يې، تر هغو راسئ پر دې تنګاچه باندي يو ښه اتڼ واچوئ چي ارمان مو وخيژي. ګيدړي راغلې پر تنګاچه وختلې سره ګرځي.
دا ورته وايي چي دا مو اتڼ دئ، د دې زمانې اتڼ به وي دغسي؟
دا نوري ګيدړي وايي چي نو څنګه اتڼ وکو؟ انا ته يې راوښيه، موږ خو نجوني يو، نه مو دئ زده.
ګيدړه راغله د ټولو ګيدړو لکۍ يې ټينګي سره غوټي کړلې، پر تنګاچه يې د اتڼ پر ډول ودرولې، دا په خپله په منځ کي ودرېدله.
په دې مابين کي باغوان باغ ته ور ننووت چي داسي يې وکتل پر تنګاچه دېرش څلوېښت ګيدړي کتار د اتڼ پر ډول ولاړي دي، يوه يې په منځ کي ولاړه، لکۍ د ټولو سره غوټي دي، بير ته باغوان کلي ته ولاړ، دا نکل يې د کلي خلکو ته وکی. باره خلکو سپي او تازيان را رهي کړه کرار د باغ په دروازه ور ننوتله. دلته ګيدړي د اتڼ ناره کوي :

ناره مي پر ناره
دا زما لمسۍ له ما څخه نن ولاړه
که به زما دعا قبلېږي
باغوان او تازي راولې همغاړه

يو وار د هې خوا تازيانو او سپو او خلکو باندي را الا کړه.

لنډۍ ګيدړه وغورځېده الا يې کړه، تازيان ورته راورسېدله، دوی سره زور کړه، د ټولو لکۍ د بېخه وختلې ولاړې.

لنډۍ ګيدړه نو اوس بېغمه سوله، د ځان په شان يې نوري هم پيدا کړې، د دغه وروسته به په بېغمه زړه په غره کي ګرځي.

يوه ورځ هغه پړانګ پر پېښ سو، باره يې ورته وويل: هی خدای په لاس راکړې! ګيدړي ورته وويل چي ولي ولي خير خو و؟

پړانګ پر الا کړه په چمبو کي يې سپکه واخيستله وې ويل: دا ته يې چي پړانګ دي مېله و، ها!؟

ګيدړي ورته وويل چي ايله کوه مي چي اوس به دي وښويوم په مځکه به دي ژوندی ننباسم، ته مانه پېژنې؟

پړانګ وويل: پېژنم دي چي زما ورور دي وژلی و، او را ځخه الا دي کړه، په غار ننوتلې لکۍ مي در ځخه پرې کړه.

ګيدړي وويل: توبه وکاږه زه دي ولاکه تر اوسه ليدلې يم، موږ بسته قوم يو، دا څو شپې کېږي چي د هندوستان ځخه راغلي يو، په لنډېزی سره مسمی يو، او ستانه هم يو، ګرده لکۍ نه لرو، هوښ کوه چي يوه لنډېزی ته بږغ ونه کې وبه دي ښويوي، که دي زړه ته نه لوېږي راځه هلته چي ټوله لنډېزی دروښيم. پړانګ وايي: درځه! چيري دي؟

ګيدړه د مخه سوله پړانګ يې راووست په يو پټ ځای کي يې ودراوه، و پړانګ ته يې وويل: چي دلته ودرېږه! ګوره يې چي څو لنډېزی راځي، منکر دوی نابلده دي، د بدو بېزاره ګرده عمر خپلي تسپې اړوي، نه بايده چي در ځخه ستر ګه ونه کي. پړانګ وويل ښه دئ!

ګيدړه راغله پر هغه لوړه غونډۍ وختله نارې کړه، نارې يې کړه، يو ګړی چي وسو د هري خوا بې لکۍ ګيدړي راغلې، د غونډۍ سر په ډک سو.

ګيدړه راغله پړانګ ته يې وويل: چي زما دا دي ومنله؟

پړانګ وويل: بېشکه! بېشکه! د ګيدړي لاس و پښې يې ور مچ کړه، ورته ويې ويل: چي توبه مي ده، لنډېزی انا و مي بخښه!

لنډېزی وويل: ځه زويه ما بخښلی يې باره بې هوښه کار مه کوه.

# خمړی

ته وا ښه ! ښه.

چي وه يو بوډۍ وه، يو کوچنی د لسو کالو زوی يې و، نور يې هيڅ نه درلوده، د دې زوی نوم يې "خمړی" و، د خمړي مور خونو خوار کۍ کونډه او سپين سرې وه، خورا مسکينه وه.

دا زوی يې خورا لټ و، يوه خاشه يې پر بله نه ايښووله، هيڅ کار يې نه کاوه، مور به سبق ته ولېږی دی به ولاړی د لوچکانو هلکانو سره به يې په ختو او لوشو کي بازۍ وکړلې کالي به يې ګرده په ختو ولړله ټوکر ټوګر به يې کړله، نو به کور ته راغی.

مور خوار کۍ به ورته وويل چي کور دي ډاک سه ! سبق ولي نه وايې چي د دين و دنيا ګټه ده، سبا به لوی سې زه به مړه يم څوک په ګوله نه در کوي.

ده به غوږ نه پر نيوی، مور خوار کۍ به يې کالي بيا په نوک و اورۍ سره ور وترپله ور پينه به يې کړله.

نور هلکان چي به د سبق څخه خلاص سوله، کور ته به راغله ډوډۍ به يې وخوړله دستي به په خپلو بوټو پسي تله خمړی چي به وږی سو را به غلی ډوډۍ به يې وخوړله بير ته به په لچري پسي ولاړ.

د مور يې خورا خوا بده وه، چي دا زوی مي بې سبقه او بې خطه پاته سو، کار هم نه کوي فکر يې وکی چي زوی مي نه په ملا راګرځي، نه په وهلو اړ دئ، نه نصيحت اغېزه پر کوي، سبا به مړه يم دغسي به لوچک ګرځي، بې کماله، بيعمله، بې خطه به وي، څوک به ګوله نه ور کوي، د دې پای يې څه؟
باره يې چرت وواهه چي راسه د بلي لاري يې اصلاح که ! باره د خمړي مور د غنمو نينې وکړلې، د کلي هلکان يې راوغوښتله يو يو مټ نينې يې و هلکانو

ته ور کړې، و دغه هلکانو ته يې وويل چې خمری به تاسي رضا کوئ، سبق ته به يې بياياست، سبق به په واياست د ځانه سره يې کښېنوئ.
هلکانو وويل: ښه دئ !
هلکان په خمري پسې سوه چي راځه سبق وايه، هلته به مو سات تېر وي، خمری يې رضا کی، سبق له يې بوت، هلکانو سبقونه ور واخيستل خپل سبق وايي، خمری هلته کښېنوست.
هلکانو ورته وويل چي خمريه سبق ووايه !
خمري وويل: ولاکه ټکی لا ووايم، ګوره زما مور تاسي ته يو يو مټ نينې در کړي دي د هغو په عوض کي به زما پر ځای تاسي سبق واياست.
څه سر دي ګر ځم سبق يې ونه وايه، مانښام کور ته راغی.
مور يې ورته وويل چي خمريه ! سبق دي ووايه؟
خمری وايي: يه ! زما پر ځای نورو هلکانو ووايه !
مور يې ورته وويل: کور دي ډاک سه ! نو تا ولي نه وايه؟
خمري وويل: ګوره ! نينې دوی وخوړلې، سبق لا هم زه ووايم، دوی به سبق وايي چي نينې خوري، زې ولي ووايم.
مور خوار کی يې اريانه سوله چي خدايه ! څه ورسره وکم ؟ "اوه د مور زړه دئ"
د خمري مور بله ورځ بيا هلکان راوبلل، بيا يې يو يو مټ نينې ور کړې چي دغه خمری رضا کئ، بوتو ته يې درسره بياياست ګوندي په کار اموخته سي.
هلکانو وويل: ښه دئ.
آ بس هلکان په پسې سوله چي راځه خمريه ! بوتو ته به ولاړ سو، مور خوار کی ته دي بوتي راوړه، واښکی راواخله بازی به هم وکو، بوتي به هم مورته راوړې، چي تې رانه وړې نو يې څوک ستا مور ته راوړي، په کوڅه کي به نو څه وکې، کالي څيري کې، په ختو يې ولړې نو کور ته راسې.
خمري وويل: ښه دئ، ورغی د کوره څخه يې واښکی او کړکی راواخيستله، دی او هلکان ولاړه ځنګله ته، هلکان بوتي کوي، خمری دغسي ورته کښېنوست.

هلکانو وویل: خمریه ! ولي بوټي نه کوې؟

خمرې وویل: خو ادې تاسي ته نینې در کړېدي، زما پر ځای یې هم وکئ، ولاکه لاس لا ور وړم.

هلکانو وویل: کور دي ډاګ سه ! اوس نو څه په وکو؟

دوی خواران ناعلاجه سوله په ټولو یې یو یو مټ ور وکړه ورته کوټه یې کړه چي دغه دي اوس خو یې په خپل واښکي کي وتړه وایې خله په شا خو یې که؟

خمرې وویل: نینې به تاسي خوړلي وي، بوټي به زه وړم، ولاکه مټ لا واخلم، ادې تاسي ته نینې در کړېدي بوټي بې هم تاسي اخلئ وړئ به یې.

هلکان اریان سوله چي خدای دي خوار که تا خمرې، څه بلا دئ؟

څه سر دي ګرځوم، تاته دي خدای ﷻ نېکه ورځ درکي، کور دي په الله سره ودان، پوهېږې، چي دئ، دا ډا، وادي وربېدو، ورور ته دي ووایم، غوږ دي دئ؟ تاته دي وویل سي، باقی دی پاته سو، زما زړګیه ! په دې خبرو خبرو کي یو وار باندي ماښام سو.

هلکان ناچاره سوه د خمرې د بوټو غوزی یې هم راواخیست په شا یې کی.

خمرې تش په پسې دئ راځي "غوږ دي دئ ورور ته دي ووایم" پر هلکانو تاریکه سوله، د کور و کلي لار ځني ورکه سوله، هلته یوه لیري د اور رڼا معلومېږي، او یوه خواته د سپو غپا ده.

خمرې وایي: دوري راځئ، هغه زما انا اور بل کړی دئ ور به سو.

هلکانو وویل : یه هغه به یا غله یا بل شی وي، دوري راځه دغه سپی مو د کلی دئ.

خمرې وویل: یه ! ولاکه درسره ولاړ سم، زه خو دوري ځم تاسي پر هره چي ځی، ورځئ !!

آبس خمرې ځني رهي سو "جان لالا ته دي وویل سي" مخ د اور پر خوا. هلکانو فکر وکی چي ګور دي ډاګ سه، هلک راباندي تاوان سو، ور ک به سي یا بې چغالان او شرمښان وخوري، یه راځئ په ده پسي، بیا بې مور وایي چي زما زوی مو څه کئ؟

"غوږ دي دئ ورور که؟" د ناچارۍ څخه هلکان هم پسي رهي سوله، هله هله خمرۍ دمخه دئ دوی په پسې دي، يو وار شرمښ په مخه ورغی.

شرمښ و خمرې ته غربړۍ کی، خمرې بُغاري کړې.

د دې خوا هلکانو باندي هی هی او کوچ کوچ کی شرمښ بیر ته الا کړه، خمرۍ يې ځني خلاص کی.

څه سر دي ګرځوم "جان لالا ته دي وويل سي" بيا چغال په مخه ورغی، باندي هو يې کړه، بيا پړانګ په مخه ورغی، باندي غوړمب يې وهل.

وروره نيمه شپه ده خمرې بيا بُغاري کړې، خو په دغه کوچ کوچ او له ها ها او له ها ها سره يې د دې څخه ځانونه او خمرۍ خلاص کی.

هلکان ورته وايي: خمرۍ يه ! راځه بير ته وګرځو، اور ليري دئ، دا شرمښان دي وليده؟

خمرې وويل: يه دغه دئ زما د انا کور دئ زه ورځم دا دئ اوس نو راغلو.

خو هله هله څه درته ووايم ورور کيه ! دا دئ راغله پر دښت يوه خونه ده مخه ته يې يوه بوډۍ ده روې ده ناسته ده، روي چي هلکان وليدله ومخي ته يې راولاړه سوله، وې ويل: لمسيانو خدای مو راوله، ځونه مي در ته وکاته.

خمرې وويل: ويني ما ويل چي زما د انا کور دئ، تاسي ويل: "يه".

"ورورجانه" روې ولاړه سوله ښه ماليده يې ورته وکړه، چي راځخه ونه بېربړي، ونه تښتي، يو يو به کرار کرار چاغوم خورم به يې، خدای ﷻ تياره مېله راکړه.

خمرۍ بيعقل خوشحاله دئ، پورته پورته غورځي، ماليده يې سره وخوړله.

روي ورته وويل: دالته بيده سئ ! دوی پر پوتله بيده سوله.

روې دباندي ووتله، چي چاړه او غاښونه ورته تېره کي، چي يو دستي وخوري، نور هلکان بيده دي.

خمرۍ ويښ دئ، د چړې کښهاري يې واورېدی، وپوهېدی چي ولچي پسات وسو، او کار زما د لاسه وخوت، دا نور مي په بلا اخته کړه هغه نور بيده

دي.

دا کښهاری چې خمرې واروېدی ناري يې کړه:

کښ د چړې کښ

دا نور هلکان بيده دي

خمرې خوار کی ويښ

روې وايي: څه کوې خمريه! ولې نه بيدېږې؟

خمرې وايي: زما نوم "خمرې" دئ، ته ما نه پېژنې! زه پر ادې داسي ګران وم، ماته بې په نيمه شپه د ولې څخه په چُغل کي اوبه راوړلې، مابه چښلې نو به بيده سولم.

روې وايي: زه به هم اوبه در ته راړوم، نو بيدېږې؟

دی وايي: ښه دئ انا رايې وړه.

آ بس روي چُغل راواخيست رود ته راغله.

روې چي راووتله خمرې پر هلکانو برغ وکی چي در څغلئ دا روې ده، الاله يې مو انانه ده.

هلکانو دوې پښې داغه کړې دوې نوري، را الا يې کړه، د خمرې د بيري پښې لنډي کېږي، غړي يې وښويېدل.

هلکانو ته يې وويل چي زه نه سم تلای، ما په شا کئ!

هلکانو برغ ونه کی څني ولاړه، دی پاته سو "په زړه خو يې نو يو الله خبر دئ" اوه، اوس خمرې يوازی روي ته پاته سو. خمرې وايي: خدايه! که دا پلا خلاص سوم، بيا به د مور پښې مچوم، سبق به وايم کار به کوم.

څه سر دي ګرځوم، خمرې د بيري د روي د خوني پر بام وختی، پر کولک ورته کښېنوست.

روي هلته څو واره چُغل په اوبو کي غوټه کی، چي راپورته به يې کی اوبه به بير ته تر توی سولې، فکر يې وکی چي ولچي ځان يې در څخه خلاص کی، يه! ورځغله چي تللي به وي چي راغله هلکان نسته!! وای، هی هی ارمان راڅخه ولاړ است؟

خمرې د بيري په کولک کي غوځار سو، خاوري پر روي ور توی سولې.

روې وايي: ښه در پوهېږم چي موږک يې، ولاکه اوس درتلم چي مړ خو دي کم.

خمړي د بيري او خوشامنده ور ناري کړه چي انا ! زه يم هغه نورهلکان ولاړه، زه په هغو پسي پر بام راوختلم، ما ويل چي وګورم چي پر کمه ولاړه.

روې وايي: هی هی خمړی يې، بس پسي راوغورځېدله راغله خمړی يې ونيو، وايي ولاکه مي دا پلا خطاباسې ! هغه نورهلکان دي لا زما د چمبې څخه وايستله، اوس نو څه در وکم؟ ها !

خمړی وايي: ملامت يم ! ملامت يم ! د مرګ وړ يم ! د خوړلو وړ يم ! د چا په خوله مي نه کوله، سبق مي نه وايه، بد عمل مي کاوه، د مور په خوله مي نه کول، يه ! اوس نو ما په جوال کي واچوه، ولاړه سه يو لوی سوټی پرې که، را يې وړه، ما په دغه جوال کي په وهه ! وهه ! وهه ! هر وخت که مي ستا د دغه ګليګي رمباړي وکړې، نو مي ايله که، که دي نه ايله کولم، مړ مي که، ومي خوره !

روي ورته وويل چي بېشکه د دغسي سختي سزا لايق يې، دغسي چم در کوم چي زړه در سوړ کم.

آبس تا ته دي ووايم، خمړی يې په جوال کي واچاوه، خوله يې په يوه رښکی پسي وتړله.

روې ولاړه سوټی پرې کوي.

خمړي زور کړه، رښکی وشلېدله، د جواله راووت، دستي يې د روي ګليګی په جوال کي واچاوه، خوله يې ټينګه پسي وتړله.

خمړي را الا کړه مخ د کور پر خوا، نو مه ځغله ! داسي ځغلي چي تر شانه ګوري.

روې چي راغله، لوی ډانګ يې پر غاړه را اړولی دئ، دا ده خوني ته رانتوته، ډب سو جوال يې وواهه، د ګليګي رمباړي سولې.

روې وايي: ولچي شل واره زما د ګليګي رمباړي وکې که دي پرېږدم. خو واهه يې واهه يې د ګليګي هډوکي يې هلته په جوال کي ور اوړه او اوبه کړه، چي خوله يې ور خلاصه کړه غوښت يې چي وې خوري، که ګوري خمړی نسته خپل ګليګی يې دئ.

آبس ویل : هی هی راڅخه ولاړې خمړیه ! ولاکه دي پرېږدم ! دغسي یې په خمړي پسي راالا کړه، چي ستا خوله وچه سه ! بیا دي خطا ایستم، که دا پلا په لاس راغلې، ولاکه دي پرېږدم، چي اوم دي ونه خورم ! هله هله دا چي په خمړي پسي رسېدله پسي برغ یې کړه، چي نه به ځې !

خمړی په کلي ځني ننووت، کور ته ورغی، دغسي د مور په پښو کي ور غوځار سو، چغاري یې کړلې، چي موري ! ویې خوړلم !

مور په زړه پوري ونیو وې ویل : کور دي ډاګ سه ! چیري وې؟ څه نکل دئ؟

د خمړي یو ساعت ژبه تړلې وه، بېسده و، چي په سد کي سو دا نکل یې سر تر پایه و مور ته وکی.

مور یې ورته وویل : باره دي توبه ده که نه؟ سبق وایې که یا؟ کار کوې که یا؟

ده ویل : مور کي جاني توبه مي ده، چي دا پلا خلاص سوم، بیا به عمري ستا پښې مچوم، ستا په خوله به کوم، بد کارونه او بدعملونه به نه کوم، کالي به نه څیرم، په مردارو ختو کي به لاس و پښې نه لړم، د کوره څخه به د شپې نه ځم، چي د سبقه خلاص سم، برابر به کور ته راځم، پر وخت به سبق ته ځم، پر وخت به راځم !!!

آبس خمړی د دغه هیسته پر سبق ټینک سو، چي د سبق څخه به خلاص سو د مور لاسونه بې مچول په خپل کار پسي به تلی، د مور په خوله بې کوله، وروسته نو ښه هلک ځني جوړ سو، ولې پر سر یې وخوړله، نو تاسي هم باید پام کوئ د خمړي په شان بد عمل مه کوئ، د مور و پلار په خوله کوئ، که نه وي داسي کانه به در وسي لکه په خمړي !!!.

# د زعفرانو سوداګر

يو سوداګر و، د کندهار څخه يې زعفران بار کړي وه، چې د کوټي و ښار ته نژدې سو يو ځای يې واړول، درې کسه ورته راغله چې زعفران در څخه اخلو، خو هغه جکه چنې چنې نه سره جوړېدله.

آخر ته دغو درو کسو ورته وويل چې ښه دئ زعفران دي رابار که، پلاني کاروانسرای ته يې راوړه، ستا زعفران به داسي در څخه واخلو چې د هر منه په عوض کي به يو خاني من هر شي چې ستا خوښ وي در به يې کو.

سوداګر وويل: ښه دئ قبول مي دئ، دوی ځني ولاړه، سوداګر سهار هغه کاروانسرای ته چې دوی ورښوولی و زعفران ور وړه.

هغه درې کسه راغله خپل مهرونه يې پر بار ووهل، ورته وې ويل چې ته خپل چرت ووهه، هر شي چې دي خوښ دئ، هغه راته ووايه چې در يې کو، بير ته سرې ځني ولاړه.

سوداګر چې زعفران بيه کړه، په سرو زرو دوه سره خرڅېږي، نو يې د ځانه سره وويل چې ولچې يو پسات يې در وکی، ولي چې دوی يې ماته راکي يو خاني سره زر به په يو خاني زعفرانو راکي، تر سرو زرو خو بل قيمتي شی نسته، خورا خوابدی سو.

څه سر دي ګرځوم سوداګر دغسي راووته بازار ته موچنه يې څېري ده، دا يې پينه دوز ته ورکړه، چې راوې ګنډه.

پينه دوز پسي بږغ کړه چې بيا به مي خوشحاله کوې؟ سوداګر وويل : ښه دئ خوشحاله به سې، د موچي څخه چې راتېر سو، يو سړی دئ ټينګ يې سوداګر تر لاس ونيو چې ولاکه دي پرېږدم، زما د پلار سترګه دي کښلې ده، خدای ﷻ په لاس راکړې.

سوداګر ناحقه په غم کښېووت، د هغې خوا بير ته راوګرځېدی. هغه

سړي ته يې ضامن ورکی، چي زه په پلاني سرای کي د زعفرانو سوداګر يم،
بيا به سهار دعوه سره کوو، بيرته راغی موچي ته چي زما موچڼه راکه.

هغه ورته وويل: چي زه نه يم خوشحاله ما خوشحاله که !

ده دوې روپۍ ورکړې چي دغه دي تې خوشحاله.

موچي وايي: اوهو ! په دې زه چيري خوشحالېږم، هر شی چي ما
غوښت هغه به راکوې، نو زه خوشحالېږم که نه وي حاکم ته دي بيايم.

لنډه دا چي موچي ته يې هم ضامن ورکی، ځان يې ځني خلاص کی، د
ځانه سره وايي : "کور دي خراب سه په هغه شيطان وطن، خو ګرده شيطان
دئ، يو غم نه دئ هغه د زعفرانو رانيوونکي، موچي او هغه سړی چي د پلار د
سترګي دعوا يې په کړېده، ټوله يوه ونکی دي".

خير چي ماښام سو سوداګر راغی په لاندي پوړ کي يې يوه کوټه
ونيوله، د خدای ﷻ کارونه دي سربېره پر دغه کوټې د موچي او د هغه نورو
استوګنه او کډه ده.

ماښام سوداګر پروت دئ، چرت وهي، دوی سربېره سره ګډ دي، هغه
درې کسه وايي چي ښه مو د زعفرانو سوداګر خطا يوست.

ښځي يې ورته وويل چي څه مو خطا يوست؟ نو که سوداګر درته وويل
چي "زه يوه خاني د ماشو غوړي غواړم، څه به کوی؟

دوی وويل: چيري يې دې ته پام دئ، هغه چي ډېر زور ووهي نو به
ووايي چي سره زر راکه.

موچي وويل ښه ما به څنګه خوشحاله کوي.

ماينې يې ورته وويل : که يې درته وويل چي "هغه ورځ خو د باچا زوی
زوکړی وو، کې درته وويل چي د هغه زېری مي دربانډي وکی ته نه
سوېخوشحاله؟"

ده وويل: چپ که چيري دونه عقل لري.

هغه بل سړي چي د پلار د سترګي دعوه يې په کړېده، وويل :

د پلار سترګه مي خدايي تازه ختلې ده، زما څخه به څنګه ځان
خلاص کي.

ماينې يې ورته وويل چي ولې، که يې وويل چي : "بېشکه مي کښلې

ده، پلار دي غل و، ما يې په دغه كش و بګير كي ستر ګه وكښله، راځخه ايله سو، كه نه وي دغه بله ستر ګه مې هم كښله، چي بيا بل يو دغسي كار ونه كي، او كې دا بل كار هم لا وكى چي سهار وختي سلاخانې ته ولاړ او يوه ستر ګه د پسه يې رانيوله او حاكم ته يې وويل چي هو ! غل و، ما يې ستر ګه وكښله، منكر ته د ده پلار راوغواړه، دا بله ستر ګه يې هم وكاږه، د دې سره يې تول كه، كه سر پر سر وه نو په رښتيا چي د ده د پلار ستر ګه ما كښلې ده.

ده وويل: چپ كه چيري دونه عقل لري.

لنډه دا چي دا خبري تړوله سوداګر واورېدلې په بېغمه زړه بيده سو، سهار وختي ولاړ سلاخانې ته د پسه ستر ګه يې رانيوله په پنبه كي يې وپېچله په جيب كي يې واچوله راغى د خپلو زعفرانو د بارو سره كښېنوست.

دستي هغه هغه خلك ورته راغله چي زعفران مو ړ درځخه اخيستي دي، اوس غواړه يوه خانۍ ځه شي غواړې؟ نوم خو يې نه دئ معلوم.

ده ورته وويل چي نه مي دي درباندي خرڅ كړي.

موچي وايي: زما سره دي قول كړى دئ.

هغه بل ويل: زما د پلار ستر ګه دي كښلې ده، ديت و تاوان راكه يا درځه حاكم ته !

سوداګر وويل: تړوله درځئ، حاكم ته هر ځه حكم چي يې وكى هغه مو منلى دئ.

لنډه دا چي حاكم ته راغله، اول هغو درو كسو عرض پر وكى، چي دغه سوداګر زعفران په يوه خانۍ شي راسره كړي دي اوس يې نه راكوي.

حاكم ورته وويل چي ځه وايې؟

سوداګر وويل چي بېشكه رشتيا وايي، اوس هم پښېمانه نه يم، زه يوه خانۍ د ماشو غوړي غواړم.

حاكم حكم وكى چي ورسئ يوه خانۍ د ماشو غوړي وركئ، زعفران واخلئ.

پينه دوز وويل: صاحب ! ما يې موچني كنډلي، ما ويل مزدوري يې راكه، ده ويل بيا به دي خوشحاله كم، زما سره يې خوشحالي كړې ده ما دي

خوشحاله کي.

سوداګر وويل: بېشکه مي خوشحالي ورسره کړې ده، منګر ما خوشحاله کی.

حاکم وويل: په څه شي؟

ده وويل: په هغه ورځ د باچا زوی زوکړی و، ما يې زېری پر وکی خوشحاله سو.

حاکم ورته وويل چي په دغه زيري خوشحاله سوې؟

ده وويل: هو!

حاکم وويل: څه ورک سه زياته دعوه دي نسته پوري!

هغه بل وويل چي صاحب! زما د پلار سترګه يې کښلې ده، تاوان دې راکي، اوس مي دغه دئ ونيو.

حاکم ورته وويل: څه وايې؟

سوداګر وويل: بېشکه مي کښلې ده، هغه په نيمه شپه راغی کاروان ته زعفران يې غلا کوله، نور ملګري يې هم وه خو يو غل په لاس راغی پېژندی مي نه، په کش مکش کي مي سترګه څني وکښله، سترګه يې د جيبه ورته راوکښله، چي سترګه يې دغه ده، منګر ته د ده پلار راوغواړه دا بله سترګه يې هم څني وکاږه د دې سترګي سره يې تول که، که سر په سر وه نو بېشکه د ده د پلار سترګه ده، بايد بازخواست څني وکې، او که نه وه ورسره برابره هم بايد بازخواست څني وکې، ولي چي ناحقه دعوه يې کړې ده، دا پساتي دئ د خدای ﷻ عالم زهيروي.

حاکم دستي حکم پر وکی، چي ورسئ پلار يې راوله.

يو دم يې پلار راووست، يوه سترګه يې نسته، دغه بله سترګه يې څني وکښله چي په ترازو کي يې سره تول کړې، د پسه سترګه پر درنه وه.

سوداګر وويل: وينې صاحب! ناحقه يې زه مسافر زهيرولم، دا خلک پنځه سره يوونکی ده؟ عمري دغه پساتونه کوي.

باره حاکم حکم پر وکی، ټوله يې دايمي بنديان کړه، سوداګر يې ايله کی. سوداګر خپل زعفران خرڅ کړه، کور او وطن ته راغی، باره يې د کوټي د بناره ښخه توبه وکښله.

# سپېږ کونډه او فیل

یوه سپېږ کونډه وه، په یوه چمن کې یې ځاله جوړه کړې وه، چیچیان یې ایستلي وه، یو فیل دئ هم په دغه چمن کې څر کوي.
سپېږ کونډي ورته وویل چې فیله ! پام کوه زه غریبه یم، همسایه دي یم، عاجزه یم، دلته دغه زما ځاله ده، سره چیچیان مي دي، زه کله کله په ملخانو پسي ورکه یم، دغه چیچیانو ته رزق برابروم چې دغه چیچیان مي تر پښه لاندي نه کې.
فیل وویل چې څه څه ! زه دي باغ نه وینم ته وا تارو درغی، زه به چیري هر ګړی پښو ته ګورم چې د سپېږ کونډي چیچیان دي، څه څه ورکه سه ! فیل ګام واخیست پښه یې پر ځاله کښېښووله چیچیان یې ور مړه کړه.
سپېږ کونډه راغله په سرو اوښکو پر باز یې عرض وکی چې فیل زما پر ځاله پښه کښېښووله چیچیان یې رامړه کړه.
باز وویل: درڅه نور څه د لاسه نه ورسره کېږي ستر ګي خو بې وکاږم ړوند خو بې کم. دې وویل: ښه ! د ده دي دالوی غوږونه وچ سي.
باز راغی پر فیل یې ځان غوټه کړ، یو وار یې یوه ستر ګه څني وکښله، بیا یې پر غوټه کړه بله ستر ګه یې څني وکښله، فیل یې ړوند کی.
سپېږ کونډي و باز ته سر تور کی دعا یې و باز ته وکړه چې ستا سایه دي زما د سره نه کمېږي، چې دغه زما ظالم دښمن دي را ړوند کی، چې زه ژوندۍ یم ستا دعاګویه یم. سپېږ کونډه راغله فیل ته، ورته ویل یې چې فیله ! ته زما همسایه وې، تا زما سره ظلم وکی، منګر زه وفا درسره کوم اوس ته ړوند سوې وږی تږی ګرځې، راځه زه یې ستا په پیمانه نه پیمانه کوم، زه دي ښه ښه وښو ته بیایم، زه به دمخه یم چونګی به لرم، دغه زما په چونګي پسي راځه، اوس خو اپیجي سولې زړه مي درباندي سوځي. فیل وویل: ښه دئ

خدای ﷻ دي خیر درکي، نیکي پر بدي د مړو کار دئ. فیل یې را رهي کی، دا دمخه ده چونکی لري فیل په پسې، هله هله فیل یې پر یوه لوی ارهډ راووست فیل درب سو په ارهډ کي ولوېدی مړ سو. سپېر کونډي و خدای ﷻ ته شکر و کیښ چي دغه کوچنۍ مرغۍ ته دي دونه توفیق ورکی، چي یو غونډ فیل یې مردار کی.

وروسته سپېر کونډي و خپلي همسایه جور کي" ته وویل چي ته ولاړه سه چي وس دي کېږي ټوله مرغان خبر که چي و پلاني چمن ته به راسي، سپېر کونډي غوښتي یاست.

د سپېر کونډي څلور پنځه لغړي چیچیان په ځالۍ کي یوه لوی ظالم په قصد سره دیده ودانسته د کبر او لویۍ او غرور له کبله تر پښه لاندي وژلي دي، نو د دغو ماشومانو د پاتا عذر به هم ورته وکئ، او د هغه متکبر ظالم د مرګ ډول به هم ووینئ، چي څنګه یې د ژوند د کبر او ظلم کاسه نسکوره سوه. جور که هم رهي سوه، ټوله مرغان یې په دغه نکل خبر کړه. په سېلو سېلو مرغان هغه چمن ته راغله، سپېر کونډه یې ولیده په سرو ساندو ناسته وه ژړل یې. مرغانو د زړه تسلي ورکړه، لاس یې ورته پورته کی. وروسته سپېر کونډي پېښه ورته بیان کړه.

مرغان ټوله راغله د ارهډ پر غاړه ورته ودرېدله دغه لوی فیل یې ولید چي په ارهډ کي سر کُل پروت دئ، مغزی یې غوټ مات دئ. نو ټولو مرغانو وویل چي بېشکه د ظلم پای خراب دئ، د کبر کاسه نسکوره ده.

متل دئ وایي چي : "لوی مي کې لویي را مه کې".

ټوله راغله د خپل مشر باز څخه یې تشکر وکړ، او ټولو بیعت ورکړ چي ته زموږ باچا یې، خدای ﷻ دي تل پر ظالمانو بری درکي، چي سترګي یې وکاږې او په دغسي کنده کي مړ او مردار ولوېږي.


PROPERTY OF ACKU 13892



اروانښاد محمد ګل نوري

(۱۳۲۰ هـ ق - ۱۳۹۳ هـ ق مړ)

## د مؤلف چاپ او نا چاپ اثار

**چاپ اثار**:

لیك ښوونكی، دوه ټوكه، ۱۳۱۷ ل

ملي هينداره، درې ټوكه. ۱۳۱۸، ۱۳۲۵، ۱۳۵۲ ل

پښتو اصطلاحات

ملي سندري او لنډۍ

پښتو متلونه

دينيات

مدني اخلاق، دوه ټوكه.

مدني معلومات: دوه ټوكه.

پښتو قاموس (نوراللغات) : چي ۴۵ زره لغات لري، اروانښاد نوري خپل دغه اثر د خپلي لور طيبې په ملګري ترتيب كړی، چي وروسته د پښتو ټولني له خوا په دوو ټوكونو كي چاپ سو.

رحمة اللعالمين

د مينو ستاينه

**ناچاپ اثار يې**:

ملي لوبي، يو ټوك

پښتو اهنګونه، چي تر شلو زيات اهنګونه لري

ملي دودونه، يو ټوك.

خوږ باندار، درې ټوكه، چي حكايتونه او فكاهيات لري.

د خوشالخان ختك حل اللغات، يو ټوك.

د خوشال منتخبات، يو ټوك

د عبدالقادر خان منتخبات، يو ټوك

د احمد شاه بابا منتخبات: يو ټوك

پښتو ياد، يو ټوك

د احد غزا، يو ټوك

ديارلس نكلونه، يو ټوك

د نوري ديوان

د شين خالو نارې، يو ټوك

سنګلېچي قاموس، يو ټوك

واخي قاموس، يو ټوك

اشكاشمي قاموس، يو ټوك

منجي قاموس، يو ټوك